دغه شان علماؤ لیکلی دی چه یو ظاهری جهاد وی او بل باطنی. ظاهری جهاد خو هم دغه وی چه کافرانو وغیره سره وی او جهاد باطنی دَ خپل نفس ناجائزو امورو کښې مخالفت او دَ شریعت دَ تابعدارئی نوم دې.

دې نه پس تاسو دا اوګنړئی چه په بعض روایاتو کښې دې جهاد ته چه نفس او باطن سره وی هغه ته جهاد اکبر ګرځولې دې ځکه چه کافرانو سره جهاد خو کله کله وی خو دَ نفس سره دَ سړی مقابله هر وخت او هره ګهړئی وی نو په دې وجه دا اهم او اکبر دې.(۱) دغه شان بیهقی په کتاب الزهد (۲) کښې د حضرت جابر رضی الله عنه روایت نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ دَ غزوه نه واپس تشریف راوړو اوونئی فرمائیل "رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر" (۳)

**جهاد فرض کفایه دې که فرض عین؟**: دې نه پس په دې خبره پوهه شئی چه دَ امت دَ علماؤ دَ جهاد په حکم کښې اختلاف دې. جمهور علماء جهاد ته فرض کفایه وائی یعنی هغه جهاد چه کافرانو سره وی هغه فرض کفایه دې چه دَ څه خلقو په ادائیګئی سره دَ ټول امت نه ساقطیږی او که څوك هم دَ کافرانو سره دَ جهاد دَ پاره اونه ځی نو ټول امت به ګناهګار وی.

لیکن الله دې نکړی که کافرانو په دارالاسلام باندې حمله اوکړه نو په هغه صورت کښې دَ هغه ځائ په خلقو باندې جهاد فرض عین دې. ترهغې چه دَ هغوی حمله زیاته شی نو بیا چه په کوم کوم ځائ کښې د هغوی رخ وی نو دَ هغه ځائ دَ خلقو دَپاره جهاد فرض عین دې.(۴) او یو وخت داسې هم راتلې شی چه جهاد به په ټولو مسلمانانو باندې فرض عین شی.

علامه عینی رحمه الله "بنایه" کښې عمرو بن دینار، عطاء بن ابی رباح، ابن شبرمة او سفیان ثوری رحمهم الله نه نقل کړی دی چه جهاد مطلقاً واجب نه دې (۵) او دَ ابن المسیب رحمه الله مسلك دا دې چه جهاد په هر حال کښې فرض عین دې. (۶)

---

۱) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ ص۲۰۷-۲۰۸)-

۲) (اتحاف السادة المتقین(ج۸ص۶۵۷) وتعلیقات لامع الدراری(ج۷ص۲۰۸)-

۳) (انظر کشف الخفاء للعجلونی (ج۱ص۴۲۴) علامه عجلونی رحمه الله په دې حدیث باندې کلام کولو سره فرمائی "قال الحافظ ابن حجر فی تسدیدالقوس: هو مشهور علی الالسنة وهومن کلام ابراهیم بن ابی عبلة"- محمد بن زیاد المقدسی فرمائی "سمعت ابن ابی عبلة وهو یقول لمن جاء من الغزو: قد رجعتهم من الجهاد الاصغر فما فعلتم بالجهاد الاکبر جهاد القلب؟" (سیر اعلام النبلاء ج۶ ص۳۲۵) او شیخ السلام علامه تیمیه رحمه الله فرمایی "لااصل لهو ولم یروه احد من اهل المعرفة باقوال النبی صلی الله علیه وسلم" مقدمة مشارق الاشواق الی مصارع العشاق (ج۱ص۳۱). حضرت شیخ الاسلام مدنی رحمه الله په خپل یو مکتوب نمبر ۱۰۵ کښې لیکی: "صوفیاء په کتابونو کښې "رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر" ته صحیح حدیث وئیلې شویدې. لیکن دَ عسقلانی (کشف الخفاء ج۱ص۴۲۴) قول دې چه امام نسائی دَ ابراهیم بن عبله کلام خودلې دې دَ الفاظو رکاکت یو زبردست قرینه ده چه دا د حضور ﷺ قول نه شی کیدې او نه دَ حدیث متداول کتابونو کښې شاه عبدالعزیز رحمه الله غوندې متبحر محدث کتلې دې....." (مکتوب شیخ الاسلام ج۱ص۳۰۷-۳۰۸)-

۴) (بدائع الصنائع (ج۲ص۹۸) فصل واما بیان کیفیة فرق الجهاد...... والهدایة (ج۲ص۵۵۸)-

۵) (البنایة (ج۲ص۷۸۹)-

۶) (اوجز المسالک (ج۸ص۱۹۹) وتنظیم الاشتات لحل عویصات المشکوة(ج۳ص۹۰)-

د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د جهاد څه حکم وو د دې متعلق تفصیل "باب وجوب النفیر" کښې راځی، انشاء الله په دې به هم هلته خبرې کیږی.
**مشروعیت جهاد** د جهاد مشروعیت په مدینه منوره کښې شویدې. په شروع کښې نبی کریم ﷺ ته همدغه حکم ورکړیشوې وو چه په تاباندې کوم احکام نازلیږی هغه ته په ښکاره اعلان کوه او بیانوه. د الله تعالی ارشاد مبارك دې ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ (۱) نو واوروه په کولاؤ وینا سره دوی ته څه چه تاته حکم وی او د مشرکانو پرواه مه کوه.
دې نه پس حضور اکرم ﷺ ته د مجادله حسنه اجازت ورکړیشو اوفرمائیلې شو ﴿اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ﴾ (۲) یعنی راغواړئی د خپل رب لارې ته پخو خبرو باندې ئی پوهه کړه او نصیحت ورته په ښه شان سره واوروه، او الزام ورته ورکړه څنګه چه بهتر وی.
بیا د هغې نه پس مدینې طرف ته هجرت اوشونو په شروع کښې مدافعانه جهاد اجازت ورکړیشو. یعنی چه کله په تاسو باندې حمله اوشی یا په مسلمانانو باندې حمله اوشی نو دا حمله بندول او د دې د مقابلې کولو اجازت ورکړیشو. ارشاد اوفرمائیلې شو ﴿اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقٰتَلُوْنَ بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا ۚ وَاِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيْرٌ﴾ چه حکم شویدې هغه خلقو ته چا سره چه کافران جنګیږی، په دې وجه چه په هغوی باندې ظلم اوشو او الله تعالی د هغوی په امداد کولو قادر دې.
بیا دې نه پس ارشاد اوشو ﴿فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَخُذُوْهُمْ وَاحْصُرُوْهُمْ وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ﴾ (۳) بیا چه کله تیرې شی میاشتې د پناه نومشرکان وژنئی، چرته چه مومئی اود هغوی د نیولو راګیرولو د پاره هر ځائې کښې په لټون کښې کینئی. دلته مطلقاً د اقدامی او دفاعی جهاد حکم نازل شو. (۴)

## ۱- بَاب: فَضْلِ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ

**د سیر لغوی معنی** سیر۔ بکسر السین المهملة وفتح الیاء — سیرة جمع دې. د دې معنی طریقه راځی او د دې باب ضرب دې. (۵)
**د سیر اصطلاحی معنی** نبی اکرم ﷺ او صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین په مختلفو غزواتو اوجنګونوکښې چه کومه حکمت عملی اوطریقه پاتې وه هغې ته سیر وئیلې شی. (۶)

---

۱) (الحجر: ۹٤)-
۲) (النحل: ۱۲۵)-
۳) (التوبة: ۵)-
٤) (انظر البنایة (ج۲ص ۷۸۹) وزادالمعاد فی هدی خیر العباد (ج۳ ص۶۹-۷۲)-
۵) (انظر تاج العروس (ج۳ص ۲۸۶-۲۸۷) مادة "سار" وعمدة القاری (ج ١٤ص۷۸) والکرمانی (ج۱۲ص۹۲)
۶) (انظر عمدة القاری (ج ١٤ص ۷۸) والمغرب (ج۱ص۴۲۷) حیث قال الامام المطرزی: "و....الاانها غلبت فی لسان الشرع علی امور المغازی کالمناسک علی امور الحج"-

**د ترجمة الباب مقصد** د امام بخاری رحمه الله د دې باب د ترجمې نه مقصد د جهادفضيلت، د هغې اهميت او په دې باندې د اجراو ثواب بيانول دی. (۱)

**وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ إِلَى قَوْلِهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ** [التوبة: ۱۱۱-۱۱۲]

**قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحُدُودُ الطَّاعَةُ**

**اختلاف نسخ** د باب د ترجمه لاندې ذکر شوې پورتنی مذکوره آيت کښې د صحيح بخاری مختلف نسخو اختلاف دې، د نسفی او ابن شبويه روايت داسې دې چه د اصيلی او کريمه نسخو کښې دواړه آياتونه مکمل ذکر دی. اود ابوذر په روايت کښې اول آيت ﴿وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا﴾ پورې دې بيا د الی قوله: ﴿وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ دې. (۲)

**د آيت شان نزول:** امام قرطبی رحمه الله د دې آياتونو شان نزول بيانولوسره فرمائی چه دا آياتونه د بيعت عقبه ثانيه په موقعه نازل شوی دی. داسې اوشوه چه کله د مدينې منورې نه اويا کسانوپاندې مشتمل ډله د عقبه مقام ته راورسيده نو د حضور ﷺ د ملاقات د پاره حاضر شو نو په دې موقع باندې حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه د نبی کريم ﷺ خبرې اوريدونه پس اوفرمائيل "**اشترط لربك ولنفسك ماشئت**" يعنی تاسو ﷺ د خپل رب د پاره اود خپل ذات د پاره کوم شرط په مونږ باندې منل غواړئ هغه ومنئ. حضور اکرم ﷺ اوفرمائيل چه د الله تعالی د پاره خو شرط دا دې چه تاسو صرف د هغه عبادت کوئ او څوك د هغه شريك مه گرځوئ. او د خپل ځان د پاره شرط دا دې چه تاسو د خپل ځان او مال حفاظت کوئ اوزما هم کوئ. په دې باندې انصارو عرض اوکړو که دا شرطونه مونږ پوره کړل نو مونږ ته به څه ملاويږی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل "**الجنة**" هغه وخت د انصارو زړه د خوشحالئ نه باغ باغ شو او وئې وئيل دا سودا خو ډيره گټندويه ده. اوس به نه دا سودا پخپله ضائع کوو او نه به تاسو نه د دې ضائع کولو خواهش کوو. (۳)

**د آياتونوترجمه:** بيشکه الله تعالی د مسلمانانونه د هغوی ځانونه اود هغوی مالونه د دې خبرې په عوض اخستې دی چه هغوی ته به جنت ملاويږی. هغه خلق چه د الله تعالی په لار کښې جنګيږی په کوم کښې چه قتل کيږی او قتل کوی په دې باندې رښتونې وعده اوکړې شوه په تورات کښې، انجيل کښې او قرآن کښې. اود الله تعالی نه زيات خپله وعده پوره کونکې بل څوك دې؟ تاسو خلق په خپله دې بيع باندې د کوم چه تاسو معامله اودروله خوشحالی اوکړئ او دا لويه کاميابی ده.

هغوی داسې دی چه توبه کونکی دی، عبادت کونکی دی حمد کونکی دی روژه ساتونکی

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۷۸)-

۲) (حواله سابقه-

۳) (بيان القران (ج۱ص۱٤۳) مع تغيير يسير-

دي، روكوع او سجده كونكى دى، د نيكو خبرو تعليم كونكى او د بدو خبرونه منع كونكى اود الله تعالى د حدودو خيال ساتونكى دى او داسې مؤمنانوته خوشخبرى واوروه.
**د دې اياتونو ذكر كولو مقصد:** د امام بخارى رحمه الله څنګه چه معروف عادت دې چه د خپل طرف نه ترجمه كولونه پس آياتونه ذكر كوى چه د دې خبرې دليل دې چه دا آياتونو د باب د ترجمه دپاره دليل دې. (۱)
دلته هم د امام بخارى رحمه الله مقصد د دې آياتونو ذكركولونه د جهاد په فضيلت باندې دليل پيش كول دى.

**قوله:** قال ابن عباس: الحدود الطاعة:
**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق ابن ابى حاتم د على بن ابى طلحه په طريق باندې موصولاً نقل كړيدې. (۲)
**د مذكوره تعليق مقصد:** د حضرت ابن عباس رضي الله عنه مذكوره پورتنې تعليق ذكر كولو وجه دا ده چه سابقه آيت كښې چه "حدود" لفظ ﴿وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ﴾ كښې ذكر كړيشويدې دينه مراد اطاعت الهى دې ځكه چه څوك د الله تعالى مطيع او حكم منونكې وى او د هغه هر حكم په ځائ راوړونكې وى او د كومو څيزونونه الله تعالى منع كړې دې د هغې نه ځان ساتونكې وى نو لكه دا تفسير د باللازم د قبيل نه دې. (۳) د مقرر حدودو حفاظت د الله تعالى د تابعدارئى نه بغير نشى كيدې په دې وجه د حدود د حفاظت كولو د پاره اطاعت به لازم وى.

## حديث باب

[۲۶۳۰] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ الْوَلِيدَ بْنَ الْعَيْزَارِ ذَكَرَ عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۴) سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ قَالَ الصَّلَاةُ عَلَى مِيقَاتِهَا قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ ثُمَّ بِرُّ الْوَالِدَيْنِ قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَسَكَتُّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوِ اسْتَزَدْتُهُ لَزَادَنِي [ر: ۵۰۴]

## تراجم رجال

۱- حسن بن صباح: دا ابوعلى الحسن بن صباح بن محمد بزار رحمه الله دې، د دوى تذكره ((كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه)) لاندې تيره شوې ده. (۵)

---

۱) (كشف البارى (ج۱ص۱۷) ومقدمة لامع (ص۳۲۹-۳۳۰)-
۲) (انظر فتح البارى(ج۶ص ٤) وتغليق التعليق (ج۳ص٤٣٠)-
۳) (انظرعمدة القارى (ج١٤ص٧٩)-
٤) (قوله: عبدالله بن مسعود رضى الله عنه: الحديث: تقدم تخريجه فى باب مواقيت الصلاة-
٥) (كشف البارى (ج۲ص٤٦٧)-

۲- محمد بن سابق تميمي: دا ابوجعفر محمد بن سابق تميمي رحمه الله دي. (۱)

۳- مالك بن مغول بن مغول: دا مالك بن مغول كوفي رحمه الله دي. (۲)

۴- الوليد بن عيزار: دا وليد بن عيزار بن حريث عبدي كوفي رحمه الله دي. (۳)

۵- ابوعمرو الشيباني: دا ابوعمروسعدبن اياس بن شيباني رحمه الله دي. (۴)

۶- عبدالله بن مسعود: دا مشهور صحابي حضرت ابوعبدالرحمن عبدالله بن مسعود هذلي رضي الله عنه دي. دَ دوی حالات ((كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم)) كښي تيرشوي دي. (۵)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ پورتني حديث دَ باب ترجمه سره مطابقت بالكل واضح دي او ظاهره ده چه دَ حديث الفاظو كښي ((الجهاد في سبيل الله)) هم دي كوم چه دَ مانځه او برالوالدين نه پس افضل عمل ګرځولي شوي دي. (۶)

او دَ حديث باقي تشريح په (كتاب الصلاة كښي باب مواقيت الصلاة) كښي تيره شويده.

## حديث باب

[۲۶۳۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (۷) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا [ر: ۱۵۱۰]

## تراجم رجال

۱- علي بن عبدالله: دا مشهورمحدث امام علي بن عبدالله ابن المديني رحمه الله دي. دَ دوی تذکره ((كتاب العلم، باب الفهم في العلم)) په ذيل كښي تيره شويده. (۸)

۲- يحيى بن سعيد: دا يحيى بن سعيد بن فروخ القطان رحمه الله دي، دَ دوی حالات ((كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه....)) كښي تيرشوي دي. (۹)

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوصايا باب قضاء الوصي ديون الميت....-

۲) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوصايا باب الوصايا وقول النبي ﷺ ....-

۳) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلاة باب فضل الصلاة لوقتها-

۴) (حواله بالا-

۵) (كشف الباری (ج۲ص۲۵۷)-

۶) (انظرعمدة القاری (ج ۱۴ ص۷۹)-

۷) (قوله: عن ابن عباس رضي الله عنهما مر تخريجه في الحج باب لايحل القتال بمكة-

۸) (كشف الباری (ج۳)-

۹) (كشف الباری (ج۲ص۲)-

۳- سفیان: دا مشهور امام حدیث، حضرت سفیان بن سعید الثوری رحمه الله دې. د دوی تذکره ((کتاب الایمان باب علامة المنافق)) کښې تیره شوی ده.(۱)

۴- منصور: دا مشهور محدث ابوعتاب منصوربن معتمرکوفی رحمه الله دې د دوی حالات ((کتاب العلم باب من جعل لاهل العلم ایاما معلومة)) کښې تیرشوی دی.(۲)

۵- مجاهد: دا ابوالحجاج مجاهد بن مکی قرشی رحمه الله دې. د دوی حالات ((کتاب العلم باب الفهم فی العلم)) کښې راغلی دی. (۳)

۶- طاؤس: دا مشهورتابعی حضرت طاؤس بن کیسان رحمه الله دې. (۴)

۷- ابن عباس رضی الله عنهما: دا مشهور صحابی، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې د دوی تذکره "بدءالوحی" څلورم حدیث لاندې نقل شویده ده.

قوله: لاهجرة بعدالفتح: د فتح مکه نه پس هجرت نشته. د حدیث مطلب دادې چه هغه هجرت چه د مکې نه مدینې منورې طرف ته لازمی او ضروری وو هغه اوس د فتح مکه نه پس فرض او ضروری نه دې. (۵)
مطلب دا نه دې چه هجرت بالکل منقطع کړیشو، سنن ابی داؤد کښې حضرت معاویه بن ابی سفیان رضی الله عنه نه روایت دې:

قوله: سمعت رسول الله ﷺ یقول: لاتنقطع الهجرة حتی تنقطع التوبة ولا تنقطع التوبة حتی تطلع الشمس من مغربها:(۶) ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی فرمائیلې چه هجرت به نه موقوف کیږی تر هغه وخت پورې چه توبه نه وی موقوف شوې او توبه به هغه وخت پورې نه موقوف کیږی ترکومې چه نمر د مغرب طرف نه وی راوتلې.
د دې د پاره د باب په حدیث کښې د هغه خاص هجرت ختمیدلو ذکر مراد دې چه مکې نه به کیدلو.
اول داحکم ووچه کوم سړې به کوم ځائ کښې مسلمان شود حضور د معاونت د پاره د هغه حصاریدل په مدینه منوره کښې ضروری او لازمی وو. حافظ ابن حجر رحمه الله د امام خطابی رحمه الله نه نقل کړیدی چه د اسلام په شروع کښې په مدینه منوره کښې د مسلمانانو شمیر قوت او شوکت د کمیدلو په وجه باندې په هریو اسلام قبلونکی باندې مدینې منورې طرف

۱ ) (کشف البارى (ج۲ص۲۷۸)-
۲ ) (کشف البارى (ج۳ص۲۷۰)-
۳ ) (کشف البارى (ج۳ص۳۰۷)-
٤ ) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء الامن المخرجین....-
٥ ) (انظرعمدة القارى (ج١٤ص٨٠)-
٦ ) (سنن ابی داؤد (ج١ص٣٣٦) کتاب الجهاد باب فی الهجرة هل انقطعت؟ رقم(٢٤٧٩)-

نه هجرت فرض وو.دې دپاره چه د مسلمانانو تعداد قوت يو ځائ شي ليکن کله چه د الله تعالی په فضل سره مکه مکرمه فتح شوه او خلق په اسلام کښې ډلې ډلې داخليدل او ټول حجاز د هغوی د حکم او فرمان لاندې راغلونو په هجرت کښې د مکې نه مدينې ته فرضيت ساقط شو او دا حکم منقطع شو.(۱)

يا داسې اووايه چه کوم ښاربه فتح شو د هغه ځائ نه به دَ هجرت حکم اوچتيدلو ځکه چه هغه ښار به دَفتح نه پس دارالاسلام کښې شامل شو. دَ هغه ځايه به بيا دَ هجرت ضرورت باقی نه پاتې کيدو.

يا داسې اووايه چه دَ کوم هجرت نفی کولې شی هغه((هجرت مندوبه)) دې او هغه هجرت چه کوم ثابتولې شی هغه هجرت مفروضه دې. نو ((هجرت مفروضه من دارالکفر الی دارالاسلام))اوس هم باقی دې خو چه په دارالکفر کښې په احکام اسلام باندې عمل ممکن نه وی. (۲)

**قوله: ولکن جهاد ونية:** او ليکن جهاد او نيت خالص باقی دې. مطلب دا دې چه هغه هجرت کوم چه دَ جهاد دَ پاره يا دَ څه ښه نيت دَ پاره وی مثلاً دارالکفر نه دارالاسلام ته وربدليدل خو چه په دارالکفر کښې په اسلامی احکامو عمل کښې نه وی،دَ علم په طلب کښې وتل وغيره د دې ثواب او حکم باقی دې.(۳)

**قوله: واذااستنفرتم فانفروا:** او چه کله تاسو ته دَ جنګ دَ پاره اووئيلې شی نو اوځئی.

دَ دې جملې تشريح انشاء الله وړاندې ((باب وجوب الغزو)) لاندې راځی.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ پورته ذکر شوی حديث مناسبت دَ ترجمه دَباب نه بالکل واضح دې کوم چه دَ ((ولکن جهاد ونية، اذا استنفرتم فانفروا)) نه ظاهر دې.(۴)

## حديث باب

[۲۶۳۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ(۵) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ يَارَسُولَ اللَّهِ تَرَى الْجِهَادَ أَفْضَلَ الْعَمَلِ أَفَلَا نُجَاهِدُ قَالَ لَكِنَّ أَفْضَلَ الْجِهَادِ حَجٌّ مَبْرُورٌ[ر:۱۴۴۸]

## تراجم رجال

۱-**مسدد:** دا مشهور امام حديث مسدد بن مسرهد بن مسربل رحمه الله دې. دَ دوی مختصراً

---

۱) (انظر اعلام الحديث (ج ۲۱۳۵۴-۱۳۵۵) وايضاً فتح الباری (ج ۱ص۳۸-۳۹)-

۲) (بذل المجهود (ج ۱۱ص ۳۷۳)-

۳) (انظرفتح الباری(ج ۶ص ۳۹)-

۴) (انظرعمدة القاری(ج ۱۴ص ۷۹)-

۵) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها تقدم تخريجه فی کتاب الحج باب فضل الحج المبرور-

حالات ((کتاب الایمان، باب من الایمان ان یحب لاخیه....)) په ذیل کښې تیرشوی دی.(۱)

۲-خالد: دا خالدبن عبدالله الطحاوی رحمه الله دی. (۲)

۳-حبیب بن ابی عمره: دا حبیب بن ابی عمره اسدی رحمه الله دی. (۳)

۴-عائشه بنت طلحه: دا عائشه بنت طلحه تمیمیه قرشیه رحمها الله ده. (۴)

۵-عائشه بنت ابی بکر: دا ام المؤمنین حضرت عائشه بنت ابی بکر الصدیق رضی الله عنهما ده. دَ دوی حالات ((بدء الوحی)) دَ دوئم حدیث په ذیل کښې راغلی دی.(۵)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ پورته ذکر شوی حدیث دَ ترجمه دَ باب سره مناسبت ((نری الجهاد افضل العمل)) کښې دې. (۶) اودَ حدیث مکمل تشریح ((کتاب الحج باب فضل الحج المبرور)) لاندې تیره شویده.

## حدیث باب

[۲۶۳۳] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا عَفَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو حَصِينٍ أَنَّ ذَكْوَانَ حَدَّثَهُ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَدَّثَهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ قَالَ لَا أَجِدُهُ قَالَ هَلْ تَسْتَطِيعُ إِذَا خَرَجَ الْمُجَاهِدُ أَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُومَ وَلَا تَفْتُرَ وَتَصُومَ وَلَا تُفْطِرَ قَالَ وَمَنْ يَسْتَطِيعُ ذَلِكَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ إِنَّ فَرَسَ الْمُجَاهِدِ لَيَسْتَنُّ فِي طِوَلِهِ فَيُكْتَبُ لَهُ حَسَنَاتٍ

## تراجم رجال

۱-اسحاق بن منصور: دا ابویعقوب اسحاق بن منصور نوسج رحمه الله دی، دَ دوی تذکره ((کتاب الایمان باب حسن اسلام المرء)) کښې راغلې دې. (۷)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۲)-

۲) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من مضمض واستنشق....-

۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الحج باب فضل الحج المبرور-

٤) (حواله بالا-

۵) (انظرفتح الباری (ج۶ص٤-۵)-

۶) (قوله: ان اباهریرة رضی الله عنه الحدیث اخرجه مسلم فی صحیحة (ج۲ص۱۳٤) کتاب الامارة باب فضل الشهادة فی سبیل الله تعالی رقم (۱۸۷۸) والترمذی (ج۱ص۲۹۱) فی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضائل الجهاد رقم(۱۶۱۹)والنسائی فی کتاب الجهاد باب مایعدل الجهادفی سبیل الله عزوجل(ج۲ص۵۶) رقم(۳۱۳۰)

۷) (کشف الباری (ج۲ص٤۲۰)-

۲-عفان بن مسلم: دا عفان بن مسلم الصفار انصارى رحمه الله دې. (۱)

۳-همام: دا همام بن يحيى بن دينار عوذى شيبانى رحمه الله دې (۲)

۴-محمد بن جحاده: دا محمدبن جحاده ايامى ازدى رحمه الله دې. (۳)

۵-ابوحصين: دا ابوحصين بن عاصم اسدى رحمه الله دې. (۴)

۶-ذكوان: دا ابو صالح ذكوان الزيات رحمه الله دې.

۷-ابوهريرة رضى الله عنه: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. دَ دې دواړو حضراتو حالات ((كتاب الايمان باب امور الايمان)) لاندې تيرشوى دى.(۵)

**قوله:** ان اباهريرة رضى الله عنه حدثه قال: جاء رجل الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: دلنى على عمل يعدل الجهاد: ذكوان رحمه الله فرمائى چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه ماته بيان اوكړو چه يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشو او هغوى ﷺ ته ئى عرض اوكړو چه تاسو زما يو داسې عمل طرف ته لارخودنه اوكړئى چه دَ جهاد مماثل او برابر وى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ماته دَ هغه سړى نوم معلوم نه شو "لم اقف على اسمه".(۶)

**قوله:** قال: لااجده: حضور ﷺ اوفرمائيل زه خوئى نه مونډم.
مطلب دا دې چه د جهاد برابر يو عمل هم نشته (۷)

**قوله:** قال: هل تستطيع اذا خرج المجاهد ان تدخل مسجدك فتقوم ولاتفتر وتصوم ولاتفطر؟: بيا هغوى ﷺ دَ دې سړى نه تپوس اوكړو چه كله مجاهد (دَ جهاد دَپاره) اوځى نو ته دا كولې شې چه په خپل جمات كښې داخل شې او مسلسل په مانځه اودريږې او ستړې نشې، مسلسل روژه اونيسې او روژې ماتې اونه كړې؟
دَ حضور ﷺ دَ مذكوره فرمان مطلب دا دې چه دَ جهاد برابر يو عمل دادې چه سړې مونځ كوى او په مينځ كښې آرام هم نه كوى، اودې ستړې هم نه وى. دغه شان مسلسل روژې ساتى او روژې ماتې نه كوى نو هله به د دې سړى عمل دَ مجاهد دَ جهاد

۱) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب دفع السواک الى الاكبر-
۲) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب ترک النبى ﷺ والناس الاعرابى حتى....-
۳) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الاجارة باب كسب البغى والاما-
۴) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب العلم باب اثم من كذب على النبى ﷺ-
۵) (كشف البارى (ج ۱ ص ۶۵۸-۶۵۹)-
۶) (انظرفتح البارى(ج ۶ ص ۵)-
۷) (انظرعمدة القارى(ج ۶ ص ۸۲)-

برابر او مساوي کيدېشي کني نو نه کېږي.

**قوله**: قال: ومن يستطيع ذلك؟:نو هغه سړی اوونيل دا طاقت څوك لرلې شي؟ يعني مسلسل مونځ کول او نه ستړي کيدل، مسلسل روژې ساتل او روژې ماتې نه کول څوك کولې شي؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د الله تعالی په لارکښې دجهاد کونکي په نوروباندې دا بالکل واضح فضيلت او اوچتوالې دې اودا فضيلت د دې خبرې متقاضي دې چه د جهاد برابر بل يو عمل هم نشته.(۱)

**قوله**: قال: ابوهريرة: ان فرس المجاهدليستن (۲) في طوله (۳) فيكتب له حسنات: حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه د مجاهد اس چه په رسئی کښې توپونه وهی په دې باندې هم مجاهدد پاره نيکئی ليکی.

امام بخاري رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا قول موقوفاً نقل کړيدې او همدغه روايت ((باب الخيل ثلاثة)) لاندې ((زيدبن اسلم عن ابی صالح)) په طريق مرفوعا ذکرکړيدې. (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: د پورته ذکر شوی حديث مناسبت د باب د ترجمې نه بالکل واضح دې، په کوم کښې چه وئيلی شوی دی چه د جهاد مساوی او مماثل بل هيڅ عمل نشته.(۵)

## ۲-باب: أَفْضَلُ النَّاسِ مُؤْمِنٌ مُجَاهِدٌ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**دنسخ اختلاف**: په ټولونسخوکښې دمؤمن صفت کښې مجاهد اسم فاعل په وزن دې او د کشميهنی په روايت کښې دا لفظ صيغه مضارع سره **يجاهد** دې. (۶)

**د ترجمة الباب مقصد**: د دې باب د ترجمه مقصد د مجاهد فضيلت بيانول دي چه کوم سړي د الله تعالی په لارکښې خپل ځان او مال سره د صحيح نيت اوځی هم هغه د ټولونه افضل سړې دې.

**دماقبل باب سره سره ربط او مناسبت**: په تيرشوی باب کښې امام بخاري رحمه الله دا خودلې ووچه د تتولو نه افضل عمل جهاد او قتال في سبيل الله دې. په دې باب کښې دا خودل

---

۱ ) (انظرفتح الباری (ج۶ص۵)-

۲ ) (قال العلامة الفتهی استن استنانا: ای عدالمرحه ونشاطه شوطا ولاراكب عليه..... فاستن بتشديد نون: وهن ان يرفع يديه ويطرحهما معا..... انبر مجمع بحار الانوار (ت۳ص۱۳۲-۱۳۳) باب السن مع النون-

۳ ) (الطول والطيل بالكسر: الحبل الطويل يشد احدطرفيه فی وتداوغيره والطرف الاخرفی يدالفرس ليدود فيه ويرعی ولا يذهب بوجهه. انظرمجمع بحارالانوار(ج۳ص۳۲)وعمدة القاری (ج۱٤ص۸۳)-

٤ ) (انظر شرح القسطلانی (ج۵ص۳۲) وعمدة القاری(ح۱٤ص۸۳)-

۵ ) ( انظر عمدةالقار (ج۱٤ص۸۲)-

۶ ) (انظر فتح الباری (ج۶ص۶)-

غواړي چه د ټولونه افضل سړې هغه دې چه د جهاد او قتال فی سبیل الله فریضې سره تړلې وي او هغه پوره کوي او په هغې کښې خپل ځان اولګوي.

**وَقَوْلُهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ [الصف: ۱۰-۱۲]**

**د مذکوره آیت ترجمه:** اې د ایمان خاوندانو! تاسو ته داسې سوداګري اونه ښایم چه تاسو د یو دردناك عذاب نه بچ کړي (هغه دا ده چه) تاسو خلق په الله تعالی باندې اود هغه په رسول باندې ایمان راوړئی او د الله تعالی په لارکښې په خپل مال او ځان سره جهاد اوکړئی، دا ستاسو د پاره ډیره بهتره ده، که تاسو پوهیږئی (کله چه داسې کوئی نو) الله تعالی به ستاسو ګناهونه معاف کړي او تاسو به (دجنت) داسې باغونو ته داخل کړي د کومو د لاندې چه به نهرونه روان وي او په ښکلی مکانونو کښې به مو (داخل کړي) چه د همیشه اوسیدو باغونوکښې (جوړ) شوي وي، دا لویه کامیابی ده. (۱)

**دمذکوره آیت ذکر کولومقصد:** د باب د ترجمه په اثبات باندې د مذکوره آیت نه استدلال مقصود دې یعنی امام بخاری رحمه الله دا واضح کول غواړي چه د ایمان نه پس د ټولو نه بهترین تجارت ((جهادفی سبیل الله بالمال والنفس)) دې. لکه چه د آیت نه واضحه ده، نو په ځان او مال سره جهاد کونکې د ټولو نه افضل دې.

## حدیث باب

**[۲۶۳۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ اللَّيْثِيُّ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۲) حَدَّثَهُ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ قَالُوا ثُمَّ مَنْ قَالَ مُؤْمِنٌ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَتَّقِي اللَّهَ وَيَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ [۶۱۲۹]**

---

۱) (بیان القران (ج۱۲ص٤)-

۲) (قوله: اباسعید الخدری رضی الله عنه الحدیث اخرجه البخاری ایضًا فی صحیحه (ج۲ص۹۶۱) فی کتاب الرقاق باب العزلة راحة من خلاط السوء رقم (٦٤٩٤) ومسلم فی صحیحه (ج۲ص۱۳۶) کتاب الامارة باب فضل الجهاد والرباط رقم (٤٨٧٧-٤٨٧٨) والنسائی (ج۱ص۳۵۸) کتاب الزکاة باب من یسال الله عزوجل ولایعطی به رقم (۲۵۷۰) و(ج۲ص٥٤) کتاب الجهاد باب فضل من یجاهد فی سبیل الله بنفسه وماله رقم (۳۱۰۷) والترمذی (ج۱ص۲۹۵) فی فضائل الجهاد باب ماجاء ای الناس افضل؟ رقم (۱۶۶۰) وابوداؤد (ج۱ص۳۳۶) کتاب الجاهد باب فی ثواب الجهاد رقم (٢٤٨٥) وابن ماجه (ص۲۸۶) فی ابواب الفتن باب العزلة رقم(۳۹۷۸)-

## تراجم رجال

۱-ابوالیمان: دا ابوالیمان الحکم بن نافع حمصی رحمه الله دی.

۲-شعیب: دا ابوبشر شعیب بن ابی حمزه قرشی رحمه الله دی. دَ دې دواړو حضراتو تذکره ((بدء الوحی)) دَ شپږم حدیث په ذیل کښې تیره شویده. (۱)

۳-الزهری: دا مشهور امام حدیث محمدبن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دی دَ مختصر حالات ((بدء الوحی)) دَ دریم حدیث په ذیل کښې تیره شویدی. (۲)

۴-عطاء بن یزید اللیثی: دا عطاء بن یزیدلیثی رحمه الله دی. (۳)

۵-ابوسعید الخدری: دا مشهور صحابی حضرت ابوسعید سعدبن مالك خدری رضی الله عنه دی. دَ دوی تذکره ((کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن)) لاندې تیرشویدې. (۴)

**قوله:** قیل: یارسول الله: یوویونکی اوونیل یارسول الله صلی الله علیه وسلم.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ماته دَ هغه ویونکی نوم معلوم نه شو، خو دومره خبره ده چه دا قسم سوال حضرت ابوذر رضی الله عنه نه هم مروی دی(۵)

**قوله:** ای الناس افضل؟: کوم سړې دَ ټولونه افضل دې؟

**قوله:** فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: مؤمن یجاهد فی سبیل الله بنفسه وماله: نو جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو چه دَ ټولو نه افضل سړې هغه مؤمن دې چه دَ الله تعالی په لارکښې ځان او مال سره جهاد کوی.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه شاید مؤمن نه دا مراد وی چه کوم اولنی واجبات عینیه ادا کړی بیا هغه ته جهاد فضیلت دَ ځان او مال سره حاصل وی. دا بالکل مراد نه دی چه جهادخو کوی لیکن نور واجبات او فرائض پریږدی، په دې صورت کښې به دَ مجاهد فضیلت ظاهریږی ځکه چه په دې کښې مجاهد دَ الله تعالی دَ رضادپاره خپل ځان او مال لګولی دی او د دې نفع هم متعدی ده. (۶)

**قوله:** قالوا: ثم من؟: صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین سوال اوکړو بیا څوك افضل دی؟ یعنی دا مجاهد (چه خپل ځان او مال دَ الله تعالی په لار کښې اولګوی) نه پس دَ ټولو نه

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۴۷۹-۴۸۰)-
۲) (کشف الباری [۱ص۳۲۶)-
۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الوضوء باب لاتستقبل القبلة بغائط.....-
٤) (کشف الباری (ج۲ص۸۲)-
۵) (انظرفتح الباری (ج۶ص۶)-
۶) (انظرفتح الباری (ج۶ص۶)-

افضل سړي څوك دي؟

**قوله:** قال: مؤمن في شعب من الشعاب يتقي الله، فيدع الناس من

**شرح:** هغوى ﷺ اوفرمائيل بيا هغه سړي افضل دې چه په يو كنده كښې ناست وى اود الله تعالى نه ويريږى او خلق د هغه د شر نه محفوظ او په امن كښې وى.

((شعب - بكسر الشين المعجمة وسكون العين المهملة)) كندې ته وائى د دې جمع شعاب ده.(۱)

**خلقوسره يوځائ كيدل افضل دى كه خلوت نشيني:** حديث باب كښې حضور ﷺ د مجاهدنه پس د ټولونه افضل هغه سړى ګرځولې دې چه په كنده كښې د خلقو نه ځان له او جدا ناست وى او هلته د الله تعالى عبادت كوى اود هغه نه ويريږى، دې نه معلومه شوه چه خلوت نشينى د جلوت نه افضل ده.

ليكن دا افضليت على الاطلاق نه دې بلكه دا هغه وخت دې كله چه د فتنودور وى، د سړى د پاره خپل ايمان بچ كول ګران شى نو خلوت نشينى افضل ده.البته كه يو سړى په جلوت او خلقو سره اوسيدلو سره د خپل ايمان حفاظت كولې شى اوهغه ته په فتنوكښې د پريوتلو انديښنه نه وى اود ايمان د حفاظت د پاره هم معاون ثابتيږى نو د هغه د پاره بيا دا خلوت نشينى به صحيح نه وى.

حافظ ابن حجر او علامه نووى ﷫ دامت د جمهور علماؤ مذهب همدغه نقل كړيدې چه خلقو سره يو ځائ اوسيدل افضل دى خو په دې شرط چه په فتنه كښې د پريوتلوويره نه وى ګني نو نه.

د دې په خلاف يوه ډله دې طرف ته تلې ده چه خلوت نشينى افضل ده او هغه د حديث باب اود هغه احاديثو كوم كښې چه دا مضمون وارد شويدې نه استدلال كوى چه نبى كريم ﷺ دلته د مجاهدنه پس د ټولونه افضل خلوت نشينى ګرځولې ده. (۲)

**د جمهورود طرف نه جواب:** علامه نووى ﷫ د دې حديث د جمهورود طرف نه دوه جوابونه وركړى دى:

① يو جواب خودا دې چه دا حديث د سختو فتنو او جنګونو زمانه باندې محمول دې چه كله د سړى خپل ايمان هم محفوظ نه شى.

② دونم جواب دا دې چه د دې حديث محمل هغه سړي دې د چا د تكليفونونه چه نور خلق محفوظ نه وى اوهغه د خلقو د تكليف رسولونه صبر كيدې نشى. (۳)

ددې وجه علامه نووى ﷫ دا ذكر كوى چه ټول انبياء كرام صلوات الله وسلامه عليهم، جمهور صحابه كرام، تابعين او علماء او زاهدان خلقو سره هم په جلوت كښې اوسيدل او د اختلاط او جلوت فائدې به ئې حاصلولې لكه د جمعې د مانځه حاضرى، د جمع مونځ، د

---

۱ ) (انظر عمدة القارى(ج۱٤ص۸۳) وايضًا انظر مجمع بحار الانوار(ج۳ ص۲۲۳) حيث قال: هوما انفرج بين جبلين )

۲ ) (انظرفتح البارى (ج۱۳ص٤۳) وشرح النووى على مسلم (ج۲ص۱۳۶)-

۳ ) (انظرشرح النووى على مسلم(ج۲ص۱۳۶)-

جنازې مونځ، د بيمار تپوس اود الله تعالى د ذكر حلقې وغيره.(١)

اود جمهورود قول تائيد د دې حديث نه كيږي. ((المؤمن الذى يخالط الناس، ويصبرعلى اذاهم، اعظم اجرامن المؤمن الذى لايخالط الناس، ولايصبرعلى اذاهم)) (٢)

يعنى هغه مؤمن خلقو سره اختلاط ساتونكې وى اود هغوى په تكليفونو وركولو صبر كوى نود هغه اجرد هغه مؤمن نه ډير زيات دې چه خلقو سره اختلاط نه ساتى او د هغوى په تكليفونو صبرنه كوى.(٣)

داخبره په ذهن كښې ساتل پكار دى چه دا ټول اختلاف هغه وخت دې چه كله فتنه عام نه وى او كه چرې فتنه عام وى نو هم خلوت افضل دې ځكه چه د عامو فتنو محظوراتوكښې پريوتلو قوى انديښنه وى. خوداسې هم كيږي چه د الله تعالى عذاب هم د فتنوپه خلقو باندې راځى ولې د هغې اثر په غير اصحاب فتن باندې هم واقع كيږي لكه چه ارشاد ربانى دې ﴿وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِيْبَنَّ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَآصَّةً﴾ (٤) يعنى ويريږئى د هغه فتنې نه چه په تاسوكښې به صرف ظالمانوخلقوته نه رسى بلكه غيرظالمانوته به هم هغه عذاب راځى.(٥)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د پورتنى حديث مطابقت د باب د ترجمې نه بالكل ښكاره دې كوم كښې مجاهد په خلقو كښې افضل ګرځولې شويدې. (٦)

[٢٦٣٥] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ (٧) قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ وَتَوَكَّلَ اللَّهُ لِلْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِهِ بِأَنْ يَتَوَفَّاهُ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرْجِعَهُ سَالِمًا مَعَ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ [ر:٣٦]

## رجال الحديث

١- ابواليمان ٢- شعيب ٣- زهري: د دې درېواړودپاره د سابقه سند اولنى درې حضرات اوګورئى. (٨)

---

١) (حواله بالا-

٢) (اخرجه الترمذى فى سننه (ج٢ص٧٧) فى كتاب صفة القيامة باب رقم(٢٥٠٧) وابن ماجه فى سننه(ص٢٩٢) فى ابواب الفتن باب الصبر على الاذى رقم (٤٠٣٢)-

٣) (انظرعمدةالقارى (ج١٤ص٨٤)-

٤) (الانفال(٢٥)-

٥) (انظرفتح البارى(ج١٣ص٤٣) مزيد اوګورئ كشف البارى (ج٢يص٨٥-٨٨)-

٦) (انظر عمدة القارى (ج١٤ص٨٣)-

٧) (قوله: اباهريرة رضى الله عنه. الحديث تقدم تخريجه فى كتاب الايمان باب الجهاد من الايمان انظر كشف البارى (ج٢ ص٣٠٥)-

٨) (كشف البارى (ج١ص٣٢٦) و(ج١صض٤٧٩-٤٨٠)-

ج- سعيدبن المسيب: دا امام التابعين، حضرت سعيدبن المسيب قرشي رحمه الله دي. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب من قال: ان الایمان هو العمل)) کښي تيرشوی دی.(۱)

د- ابوهريرة رضي الله عنه: دا مشهور مکثرصحابی حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. دَ دوی تذکره ((کتاب الایمان باب امور الإیمان)) لاندي راغلي ده. (۲)

**قوله:** سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: مثل المجاهد في سبيل الله، والله أعلم بمن يجاهد في سبيله، كمثل ... إلخ: حضرت ابوهريره رضي الله عنه وائی چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلی دی چه د الله تعالي په لارکښي دَ جهاد کونکی مثال (او هم الله تعالی ښه پوهيږی چه څوک دَ الله تعالی دَ پاره جهاد کوی) روژه دار او دَ شپي اودريدونکی او عبادت کونکی په شان دی.

دلته دَ پوهيدلو خبره دا ده چه "والله اعلم بمن يجاهد في سبيله" جمله معترضه واقع شويده دَ کوم نه چه مقصد دَ نيت اخلاص طرف ته اشاره کول دی. يعني دَ هغه دَ نيت حال الله تعالی ته ښه معلوم دي نو که دَ هغه نيت خالص دَ اعلاء کلمة الله دَ پاره وو نو هغه مجاهد في سبيل الله دي. ليکن که دَ هغه نيت دَ دنيا مال او شهرت حاصلول وی نو هغه دَ الله تعالی دَ لاري سره دنياهم شريکه کړه اود هغه دا جهاد به نافع هم نه وی. (۳)

دَ پورتنی حديث مکمل تشريح ((کتاب الایمان باب الجهاد من الایمان)) لاندي تيره شويده. (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ پورتنی حديث دَ باب دَ ترجمي سره انطباق واضح دي کوم کښي چه مجاهد في سبيل الله ته دَ روژه دار او عبادت گذار په شان گرځولي دي، او په دي باندي مرتبه او اجر او فضيلت بيان کړيشويدي. (۵)

## ۳- باب: الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء

**دَ ماقبل باب سره ربط اومناسبت:** په وړاندينی بابونو کښي دابيان شوي وو چه جهاد دَ ټولو نه افضل عمل او مجاهد دَ ټولونه غوره سړي دي. نو چه کله دَ مجاهد او جهاد دا مرتبه او فضيلت دي نودَ دي مرتبي او فضيلت دَ پاره دعا هم کول پکاردی لکه څنګه رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين او نورو تابعينو وغيره نه دَ جهاد او شهادت دعا نقل ده.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ امام بخاری رحمه الله دَ دي باب دَ ترجمي نه مقصد دا دي چه څنګه سړي

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۱۵۹)-
۲) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۹)-
۳) (انظر عمدة القاری (ج۱٤ص۸٤)-
٤) (انظر کشف الباری (ج۲ص۳۰۵-۳۱۰)-
۵) (انظر عمدة القاری (ج۱٤ص۸٤)-

دَ جهاد او شهادت دَ پاره دعا كولې شي دغه شان ښځې هم دَ جهاد او شهادت دَ پاره دعا كولې شي. دَ شهادت په دې دعاكښې ښځه او سړې دواړه برابر دى او هيڅ فرق نشته.(١)
او علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى چه په دې امر باندې په خاص توګه دَ دې دپاره تنبيه فرمائيلې ده چه دَ شهادت دعا كولومطلب دا راوځى چه دَ كافرانو غلبه اوشى او مسلمانان مغلوب شى خو دا صورت مقصد نه دې نو په دې وجه كه يوسړې دَ خپل ځان دَ پاره دَ شهادت دعا كوى نو په دې كښې هيڅ مضائقه نشته. دا ځكه چه لوئ مقصد حاصلولو دَپاره غيرمقصود برداشت كولې شي او دَ كافرانو غلبه مطلوب اومقصود نه ده،بلكه غير مقصود غيرمطلوب ده، نودَ عظيم مقصد دَپاره دا غير مقصود برداشت كولې شي.(٢)
دا هم وئيلې شي چه دَ شهادت دعا كولونه كله دا لازميږى چه دَ كافرانو غلبه دې هم اوشي، زمونږ مقصد خو شهادت دې، بس چه مونږ ته شهادت ملاؤ شي، پاتې شو كافران نو دَ هغوي دَ علاج دَ پاره زمونږ نور رونړه شته چه دَ هغوى دَ راګيرولود پاره كافى دى. په دې وجه دَ شهادت په دعاسره دا نه لازميږى چه دَ كافرانو دَ غلبې په دې كښې احتمال پيداشي او دَ هغوى تسلط لازم راشي.

**قوله:** **وَقَالَ عُمَرُ اللَّهُمَّ ارْزُقْنِي شَهَادَةً فِي بَلَدِ رَسُولِكَ**:او حضرت عمر رضي الله عنه دَ دعا په توګه فرمائيلى وو چه اې الله ماته د خپل رسول صلى الله عليه وسلم په ښار كښې شهادت راكړې.

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله دَ ((زيدبن اسلم عن ابيه عن عمر)) په طريق موصولاً ((كتاب فضائل المدينة باب كراهية النبى صلى الله عليه وسلم ان تعرى المدينة)) ذيل كښې نقل كړى دى او هلته په دې باندې كلام هم تيرشوې دې.(٣)

**دَ مذكوره تعليق ذكركولومقصد:** په دې تعليق كښې دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ شهادت دَ دعا ذكر دې دَ دې دَپاره امام بخارى رحمه الله دَ خپل عادت موافق دا تعليق په توګه دَ **استدلال على الترجمة** ذكر كړې دې.(٤)

**[٢٦٣٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (٥) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

---

١ ) (انظرعمدة القارى (ج ١٤ص٨٥)-
٢ ) (انظر فتح البارى(ج٦ص ١٠)-
٣ )(انظرصحيح البخارى(ج١ص٢٥٣-٢٥٤) كتاب فضائل المدينة باب كراهية النبى صلى الله عليه وسلم تعرى المدينةرقم (١٨٩٠)-س
٤ ) (كشف البارى(ج١ص١٧٧) ومقدمة لامع (ص٣٢٩-٣٣٠)-
٥ ) (قوله: عن انس بن مالك رضى الله عنه: الحديث اخرجه البخارى ايضًا (ج١ص٣٩٢) فى كتاب الجهاد والسير باب فضل من يصرع فى سبيل الله فمات فهو منهم رقم (٢٧٩٩-٢٨٠٠) و (ج١ص٤٠٣) باب غزوة المراة فى البحر رقم (٢٨٨٧، ٢٨٧٨) و (ج١ص٤٠٥) باب ركوب البحر رقم (٢٨٩٤-٢٨٩٥) وفى كتاب التعبير (ج٢ص١٠٣٦) باب الرؤيابالنهار رقم (٢٠٠١-٢٠٠٢)....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ فَتُطْعِمُهُ وَكَانَتْ أُمُّ حَرَامٍ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَطْعَمَتْهُ وَجَعَلَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ فَقُلْتُ وَمَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ مُلُوكًا عَلَى الْأَسِرَّةِ أَوْ مِثْلَ الْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ شَكَّ إِسْحَاقُ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ وَمَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَا قَالَ فِي الْأَوَّلِ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ فِي زَمَانِ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِينَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ [۲۶۴۶، ۲۷۲۲، ۲۷۳۷، ۲۷۶۶، ۵۹۲۶، ۶۶۰۰]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن يوسف: دا عبدالله بن يوسف تنيسي دمشقي رحمه الله دي.

۲- مالك: دالامام الهجرة، حضرت امام مالك بن انس رحمه الله دي. دَ دي دواړو حضراتو تذكره "بدء الوحي" دَ دوئم حديث لاندې راغلې ده.(۱)

۳- اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه: داابويحيى اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه رحمه الله دي. دَ دوى دَ حالات ((كتاب العلم باب من قعد حيث ينتهى به المجلس...)) لاندې تيرشوى دى. (۲)

۴- انس بن مالك: دا مشهور صحابى خادم رسول، حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه....)) لاندې تيرشوى دى. (۳)

**قوله: انه سمع يقول: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يدخل على ام حرام بنت ملحان، فتطعمه:** اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه رحمه الله فرمائى چه ما دَ

....دنيرمخ بقيه حاشيه] ومسلم فى صحيحة (ج۲ص۱٤۱)فى كتاب الامارة باب فضل الغزوفى البحر رقم (٤۹۳٤) وابوداؤد (ج۱ص۳۳۵) فى الجهاد باب فضل الغزوفى البحر رقم (۲٤۹۰) والترمذى (ح۱ص ۲۹٤) فى فضائل الجهاد باب ماجاء فى غزوالبحر رقم(۱٦٤۵) والنسائى (ج۲ص ٦۲) فى الجهاد باب فضل الجهاد فى البحر رقم (۳۱۷۳) وابن ماجه (ص۱۹۹) فى ابواب الجهاد باب فضل غزوالبحر رقم(۲۷۷٦)-

۱) (كشف البارى (ج۱ص۲۸۹-۲۹۰) اودَ امام مالك رحمه الله دَ نورو حالاتودَپاره اوګورئ كشف البارى (ج۲ص۸۰)-

۲) (كشف البارى(ج۳ص۲۱۳)-

۳) (كشف البارى(جص۲ص٤)-

حضرت انس رضي الله عنه نه اوريدلى دي هغوى ونيل چه رسول الله ﷺ ام حرام بنت ملحان رضي الله عنها كره تشريف راوړولو نو ام حرام رضي الله عنها به په هغوى باندې خوراك كولو.

**حضوت ام حوام رضى الله عنها:** دا مشهور صحابيه ام حرام بنت ملحان مالك بن خالد بن زيد بن حرام بن جندب بن عامر بن غنم بن عدى رضي الله عنها ده.د دوى تعلق د مدينې منورې د انصارو د معروف قبيلې بنو النجار نه ده.

هغه د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه ترور ده (۱) اود ام سُليم رضي الله عنها خور ده.(۲)

دا هم په خپل كنيت باندې مشهوره ده. اود هغې په نوم كښې اختلاف دې، علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى ((لااقف لهاعلى اسم صحيح))(۳)اوبعض حضراتود هغوى نوم "الرميصاء" او بعض "الغميصاء" بيان كړې.(۴) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله په دوى باندې ردكولو سره فرمائى چه دا د ام سُليم رضي الله عنها اوصاف دى نه چه د ام حرام نوم دې. (۵)

د صحيح قول مطابق د هغې ړومبنئ نكاح حضرت عمرو بن قيس بن زيدبن سواد انصارى رضي الله عنه سره اوشوه (۶)

او عمرو بن قيس واقدى د بدريين نه شمير كړيدې او ابواسحاق ذكر كړې دى چه هغه د احد په شهيدانوكښې وو.(۷) اوحافظ ابن حجر رحمه الله په هغوى باندې د اهل مغازى اتفاق نقل كړيدې.(۸)

د هغه نه د ام حرام رضي الله عنها دوه ځامن قيس او عبدالله پيداشو.(۹)

د حضرت عمرو بن قيس رضي الله عنه د شهادت نه پس دا د حضرت عباده بن الصامت رضي الله عنه په نكاح كښې راغله اود هغې نه د ده يو ځوئ محمد پيداشو. (۱۰)

نبى كريم ﷺ به د هغې ډير اكرام كولو، هغې كره به ئې تشريف اوړلو او هلته به ئې كله كله قيلوله فرمائيله. (۱۱)

اودا د هغه صحابياتونه وه چا چه د رسول الله ﷺ په لاس باندې بيعت كړې وو.(۱۲) د هغې د پاره نبى اكرم ﷺ د هغې د پاره د شهادت دعا هم كړې وه. (۱۳)

---

۱ ) (انظر تهذيب الكمال(ج۳۵ص۳۳۸)-
۲ ) (سيراعلام النبلاء (ج۲ص ۳۱۶)-
۳ ) (الاستيعاب بهامش الاصابة (ج ٤ص٤٤٣)-
٤ ) (كذااخرجه ابونعيم كما فى الاصابة(ج ٤ص٤٤١)-
۵ ) (الاصابة (ج ٤ص٤٤١)-
۶ ) (تهذيب الكمال (ج۳۵ص ۳۳۹)-
۷ ) (الاصابة (ج۳ص۱۱) والمغزى للعلامة الواقدى (ج۱ص۱۶۲) باب تسمية من شهد بدراً من قريش والانصار
۸ ) (فتح البارى (ج ۱۱ ص ۷۳)-
۹ ) (الطبقات لابن سعد(ج۸ص۴۳۵)-
۱۰ ) (انظر الطبقات لابن سعد(ج۸ص۴۳۵)-
۱۱ ) (تهذيب الكمال (ج۳۵ص۳۳۹)-
۱۲ ) ( الطبقات لابن سعد(ج۸ص۴۳۵)-
۱۳ ) (تهذيب الكمال (ج۳۵ص ۳۳۹)-

د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې او د حضرت معاويه رضی الله عنه په مشرئی کښې ۲۷يا ۲۸ هجری کښې دا د خپل خاوند حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه سره د شام طرف ته د جهاد د پاره اووتله.(۱)

اودا د مسلمانانو رومبې لښکر وو چه د حضرت امير معاويه رضی الله عنه په امارت کښې د روميانو د ښکته کولو د پاره وتلې وو. دغه شان دا رومبې سمندری جنګ هم وو، د کوم پيشن ګوئی چه هغوی صلی الله علیه وسلم کړې وه او په دې جنګ کښې مسلمانانو قبرص فتح کړو.
واپسئی کښې د ام حرام رضی الله عنها د سورلئی د پاره قچر وړاندې کړيشو او په دې باندې سوريدو سره راپريوتله او شهيده شوه. او هم هلته خښ کړې شوه. (۲) د هغوی قبر عام زيارت ګاه او مرجع خلائق دې او هغه ئی "قبرالمراة الصالحة" سره موسوم کړيدې.(۳) علامه ذهبی رحمه الله خوتردې پورې ليکلی دی چه انګريز او نور غيرمسلم هم د هغوی په قبر مبارک باندې حاضرې ورکوی.(۴)

دوی د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه د حديث روايت کوی. او د هغې نه روايت کونکوکښې د هغې خورې حضرت انس بن مالک رضی الله عنه حضرت عطاء بن يسار، عمير بن الاسودا العنسی او يعلی بن شداد بن اوس رحمهم الله شامل دی.(۵) او د هغې خاوند حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه هم د هغې نه روايت کوی. (۶)

د هغې نه ډير احاديث مروی دی او په هغې کښې يو حديث متفق عليه دې. (۷) رضی الله عنها وارضاها-

**يواشكال:** د باب په حديث کښې اوس ذکر شوچه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم به حضرت ام حرام رضی الله عنها کره تشريف اوړلو او هغې به حضوراکرم صلی الله علیه وسلم باندې خوراک خورولو. او هغې به د پيغمبر علیه السلام په سر کښې سپګې لټولې.
اوس دا اشکال پيدا کيږی چه دا خو پردئی ښځه وه، پردئی ښځې سره ځان له کيناستل خو جائز نه دی نو بيا به هغوی صلی الله علیه وسلم څنګه هغې کره تشريف اوړلو؟

**جوابونه:** علماؤ د دې اشکال مختلف جوابونه ورکړی دی. ابن وهب، ابوالقاسم جوهری، داؤدی او ابن عبدالبر رحمهم الله فرمائی چه حضرت ام حرام رضی الله عنها د نبی کريم صلی الله علیه وسلم رضاعی ترور وه.(۸) همدغه قول د مهلب رحمه الله هم دې. (۹)

---

۱ ) (حواله بالا-
۲ ) (انظر عمدة القاری (ج ١٤ص٨۶-٨٧)-
۳ ) (حلية الاولياء (ج٢ص۶۲)-
٤ ) (سيراعلام النبلاء (ج٢ص٣١٧)-
۵ ) (تهذيب الکمال(ج٣٥ص٣٣٩)-
۶ ) (الاصابة (ج ٤ص٤٤٢)-
۷ ) (خلاصة الخزرجی (ص٤٩٧)-
۸ ) (فتح الباری (ج١١ص٨٧)-
۹ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص١٠)-

بعض حضراتو داسې فرمائیلي دي چه حضرت ام حرام رضی الله عنها د حضور اکرم ﷺ د پلار یا نیکه ترور وه، ځکه چه د هغوی ﷺ د نیکه عبدالمطلب مور د بنوالنجار نه وه. (۱)
لیکن حافظ شرف الدین دمیاطی رحمه الله فرمائي چه دا ټول تاویلات غلط دي او هغه وائي چه ام حرام رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ ترور ګرځول که هغه رضاعي وي او که نسبي په یو شان هم صحیح نه ده. ځکه چه د هغوی ترورياني که رضاعي دي او که نسبي هغه مشهورې او معروفې دي، ام حرام رضی الله عنها د هغوی نه نه ده. او د عبدالمطلب مور سلمی بنت عمروبن زید، بنوعدي بن النجار ضرور وه او ام حرام هم نجاریه ده، دا یوه رشته داسې ده چه په دې باندې د مجازي ترور اطلاق کېدیشي او د مجازي ترور کېدوسره د هغې د ورحم کېدل نه لازمیږي. اودا د هغوی ﷺ د دې قول په شان دی په کوم کښې چه هغوی ﷺ حضرت سعدبن وقاص رضی الله عنه باره کښې فرمائیلي وو "هذاخالی" چه دا زما ماما دې. ځکه چه د حضرت سعدبن وقاص رضی الله عنه تعلق بنوزهره نه وو چه د هغوی ﷺ د مور بی بی آمنه د رشته دارانو وو، نو حضرت سعد رضی الله عنه نه د حضرت آمنه نسبي رور وو او نه رضاعي. (۲)
علامه کرمانی رحمه الله فرمائي چه دا واقعه د نزول حجاب نه وړاندې ده چه نبی کریم ﷺ به هغې کره تشریف اوړلو. (۳)
لیکن دا حافظ ابن حجر ردکړیدی او فرمائي چه دا واقعه د حجة الوداع سره نزدې نزدې ده او هغه وخت د حجاب حکم نازل شوې وو. (۴)
او حافظ شرف الدین دمیاطی رحمه الله د دې اشکال جواب دا ورکړیدې چه ممکن ده حضور ﷺ د هغې د یو محرم په موجودګئ کښې تشریف فرما وو ځکه عادةً د مخدوم په راتلو باندې خادم او د هغه د کور خلق موجود وي (۵)
لیکن په دې جواب هم اشکال دې هغه دا چه په وړاندې حدیث کښې دی "وجعلت تفلی راسه" چه حضرت ام حرام رضی الله عنها به د نبی کریم ﷺ د سر نه سپګې راویستلې. نو سوال دا دې که هغه غیرمحرمه وه نود حضور ﷺ سر له ئې څنګه لاس اوړلې شو؟(۶)
د دې اشکال قاضي ابوبرک ابن العربي د بعض علماؤ په حواله سره دا جواب ورکړیدې چه دا د نبی کریم ﷺ د خصوصیاتو نه دی چه هغوی ﷺ ته فتنه او فساد واقع کیدونه په امن کښې کیدلو په وجه د دې خبرې اجازت ووچه اجنبیات سره خلوت کوه. (۷)
قاضي عیاض رحمه الله په دې جواب باندې اعتراض کولوسره وائي چه د خصوصیت د پاره

---

۱) (شرح النووی علی مسلم(ج۲ص۱۴۱) وعمدة القاری(ج۱۴ص۸۶)-
۲) (فتح الباری(ج۱۱ص۸۷)-
۳) (الخصائص الکبری (ج۲ص۲۴۷) باب اختصاصه صلی الله علیه وسلم باباحة النظر الی الاجتناب والخلوة بهن
۴) (فتح الباری(ج۱۱ص۷۸)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۸۶)-
۶) (فتح الباری(ج۱۱ص۷۹)-
۷) (عمدةالقاری (ج۱۴ص۸۶)-

دعوی کافی نه ده. د دلیل ضرورت وی. (۱)

**دلیل څه دې؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله جواب ته احسن الاجوبة ګرځولو سره فرمائی دلائل واضح دی. (۲) د غیرمحرم سره چه د کوم خلوت ممانعت کړې شوې دې هغه د فتنه د ویرې د وجه نه کړې دې او په دې وجه چه شیطان د ده په زړه کښې دننه څه خرابه وسوسه یا ګناه وانچوی او هغوی ﷺ خو معصوم وو. د هغوی ﷺ په حق کښې خلوت بالاجنبیه جائزوو، هلته دننه هم څه د ګناه ویره نه وه او نه د شیطان د وسوسې اچولو یا د غولولو او دهوکه کولو. نو علامه سیوطی رحمه الله (الخصائص الکبری) کښې لیکی:

((وقال ابن حجر: الذی وضح لنا بالادلة القویة ان من خصائص النبی صلی الله علیه وسلم جواز الخلوة بالاجنبیة والنظر الیها وهوالجواب الصحیح عن قصة ام حرام بنت ملحان فی دخوله علیها ونومه عندها وتفلیتها راسه ولم یکن بینهما محرمیة ولازوجیة)) (۳)

سراج الدین ابن الملقن رحمه الله چه د حافظ ابن حجر رحمه الله استاذ دې د خپلو بعض مشائخونه همدا نقل کړی دی. علامه جلال الدین سیوطی رحمه الله (الخصائص الکبری) کښې همدغه نقل کړی دی او هم دغه جواب مستند معلومیږی.

**قوله:** وکانت ام حرام تحت عبادة بن الصامت: او ام حرام رضی الله عنها حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه نکاح کښې وه.

**د حدیث په مختلف طرق کښې تعارض:** د حدیث د مذکوره ټکړې نه معلومیږی چه حضرت ام حرام رضی الله عنها د حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه نکاح کښې د اول نه وه، لیکن راتلونکی روایاتوکښې راځی دې هغې نه معلومیږی چه هغه د حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه په نکاح کښې روستوراغلې وه. ((باب غزوة رکوب البحر)) کښې ((محمد بن یحیی بن حبان بن انس)) په طریق کښې دی ((فتزوج بها عبادة فخرج بها الی الغزو)) (۴) دغه شان ((باب غزوة المراة فی البحر)) کښې ((ابوطوالة عن انس)) په روایت کښې ((فتزوجت عبادة بن الصامت)) دی.(۵) او د مسلم په روایت کښې په صراحت سره ((محمد بن یحیی بن حبان عن انس)) په طریق کښې ((فتزوجت بها عبادة بعد)) دی.

**د مذکوره تعارض حل:** د حدیث شارحین د دې تعارض درې جوابونه فرمائی:

---

۱) (فتح الباری (ج ۱۱ ص ۷۸)-

۲) (حواله بالا (ج ۱۱ ص ۸۹)-

۳) (الخصائص الکبری (ج ۲ ص ۲۴۷) باب اختصاصه صلی الله علیه وسلم باباحة النظر الی الاجتناب والخلوة بهن

٤) (انظر صحیح البخاری (ج ۱ ص ۴۰۵) باب رکوب البحر رقم (۲۹۴، ۲۸۹۵)-

۵) (انظر صحیح البخاری (ج ۱ ص ۴۰۳) کتاب الجهاد باب غزوة المراة فی البحر رقم (۲۸۷۷-۲۸۷۸)-

① علامه ابن التين رحمه الله فرمائی کیدیشی چه حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه اوډ هغې سره نکاح کړې وې، روستو طلاق واقع شوې وې، بیا ام حرام رضی الله عنها عمرو بن قیس رضی الله عنه سره نکاح کړې وې، اوډ هغوی دَ غزوه احد دَ شهادت نه پس دوباره حضرت عباده رضی الله عنه سره نکاح شوې وې.(۱)

② علامه نووی او قاضی عیاض رحمهما الله دَ دې تعارض جواب دا ورکړیدې چه دَ کومو روایاتونه دا معلومیږی چه هغه دَ حضرت عباده رضی الله عنه په نکاح کښې اول راغلله ، په دې کښې اِخبار عما یؤول دې یعنی چه کومه واقعه روستو اوشوه دَ هغې خبر ورکړیشویدې.(۲)

③ علامه مزی رحمه الله لیکلی دی چه ام حرام رضی الله عنها اول دَ عمرو بن قیس رضی الله عنه په نکاح کښې وه، هغې نه پس ئې بیاحضرت عباده رضی الله عنه سره نکاح اوشوه. (۳)

دَ دې آخری جواب تائید حافظ ابن حجر رحمه الله هم کړیدې. هغوی فرمائی :

((والذی یظهرلی ان الامر بعکس ما وقع فی الطبقات وان عمرو بن قیس تزوجها اولا فولدت له، ثم استشهد هوو ولده قیس منها، وتزوجت بعده بعبادة)) (۴)

**قوله: وجعلت تفلی رأسه:** او حضرت ام حرام رضی الله عنها دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په سرکښې سپګې لټولې. تفلي: دا دَ باب ضرب نه دَ فعل مضارع مضارع معروف صیغه ده ((فلیا)) دَ دې مصدردې او ((فلی)) دَ سر نه سپګې راویستلو اولټولو ته وائی.(۵)

**اشکال:** د حدیث په مذکوره ټکړه کښې دا بیان شویدې چه حضرت ام حرام رضی الله عنها دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ مبارك سر نه سپګې راویستلې نو په دې کښې دا اشکال کیږی چه سپګې خو دَ خولې وغیره دَ بدبوئې او خیرې نه پیدا کیږی او دَ حضور صلی الله علیه وسلم خوله خو ډیره خوشبوداره وه نود هغوی په سرکښې دَ سپګو موجودګئی څه مطلب دې؟

**دَمذکوره اشکال جوابونه:** ① دَ دې جواب دا دې چه کیدیشی دَ هغوی صلی الله علیه وسلم په سرمبارك کښې دَ ګردوغبار په وجه سپګې پیدا شوې وې او هغه حضور صلی الله علیه وسلم ته څه تکلیف نه رسوی. (۶)

② اودا هم کیدیشی چه د نورو خلقو دَ کپړونه ورختلې وی.(۷)

③ او دا هم کیدیشی چه په سرکښې سپګې وغیره نه وی او هسې حضرت ام حرام رضی الله عنها دَ هغوی صلی الله علیه وسلم دَ سر ویښته مبارك دَ آرام رسولو دَ پاره اخوادیخوا کول.(۸)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۷۶)-

۲) (انظرشرح مسلم للنووی (ج۲ص۱٤۲) وفتح الباری (ج۱۱ص۷۳)-

۳) (تهذیب الکمال (ج۳۵ص۳۳۹)-

٤) (انظر فتح الباری(ج۱۱ص۷۳) وکذاانظر الطبقات لابن سعد(ج۸ص٤۳٤)-

۵) (انظرعمدة القاری (ج۱٤ص۸۶) ومجمع الانوار (٤ص۱۷۷) مادة "فلی"-

۶) (قال محمدطاهر الفتنی: "..... ولم یکن القمل یؤذیه تکریمًا له" مجمع بحارالانوار (ج٤ص۱۷۷)-

۷) (الکوب الدری (ج۲ص٤۳۱) وتعلیقات بذل المجهود(ج۱۱ص۳۹٤)-

۸) (حواله بالا وبذل المجهود (ج۱۱ص ۳۹٤) وایضًا انظر اوجز المسالك (ج۸ص۳۷٤) وشرح المناوی علی الشمائل المحمدیة (ج۲ص۱۸۶)-

**قوله:** فنام رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم استيقظ وهو يضحك، قالت: فقلت: وما يضحكك يا رسول الله؟ قال: "ناس من امتي عرضوا علي غزاة في سبيل الله، يركبون ثبج(۱) هذا البحر ملوكا على الاسرة، اومثل الملوك على الاسرة:

بیا حضور ﷺ اوده شو او لږ ساعت په په خندا راویښ شو. ام حرام رضي الله عنها فرمائی چه ما عرض اوکړو یا رسول الله! څه څیز تاسو اوخندولئی؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل چه زما د امت څه خلق ماته پیش کړیشو چه د الله تعالی په لارکښې جهاد کولو سره د هغه سمندر په شا باندې د بادشاهانو په شان به په تخت سواره وی.

**د مذکوره عبارت مطلب:** حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه حضور ﷺ ته د هغه مجاهدینو په خوب کښې چه څوك به سمندری جهاد کوی د مثالی صورت اوخودلې شو چه هغوی به په جنت کښې په تختونو د بادشاهانو په شان ناست وی. الله تعالی د جنتیانو په صفت کښې بیان کړی دی. ﴿عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ﴾ (۲) چه هغوی به په تختونو یو بل ته مخامخ ناست وی. اووئی فرمائيل ﴿عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ﴾ (۳) چه په پالنګونو به ئی تکیاګانې لګولې وی او همدغه قول د ابن بطال رحمه الله دی.(۴)

قاضی عیاض (۵) او علامه قرطبی رحمه الله (۶) فرمائی چه په دې کښې د هغه مجاهدینو دنیاوی صلاح او فلاح اود رزق د زیاتی او فراخئی طرف ته اشاره ده. حافظ ابن حجر رحمه الله د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله د قول د تائيد او قاضی عیاض رحمه الله باندې د رد د پاره فرمائی

((قلت وفي هذا الاحتمال بعد، والاول اظهر)) (۷)

ابن حجر رحمه الله فرمائی قاضی عیاض او علامه قرطبی خبره د ظاهر نه خلاف ده اود ابن عبدالبر خبره ډیره بهتره ده.

**قوله:** شك اسحاق: شك د اسحاق د طرف نه دې.

مطلب دا دې چه په حدیث کښې ((ملوکا علی الاسرة اومثل الملوك على الاسرة))

کوم چه شك سره بیان شوې دې نودا شك د حضرت انس رضي الله عنه شاګرد اسحاق بن عبدالله ته شویدې.

---

۱) (قوله: ثبج بفتح الثاء والباء الموحدة بعدها جيم. قال الخطابي فی اعلام الحديث (ج۲ص۱۳۵۶) ثبج الجحر ومعظمه وثبج كل شئ: وسطه. وانظر عمدة القارى(ج۱٤ص۸۶)-

۲) (الصافات: ٤٤)-

۳) (المطففين:۲۲)-

٤) (التمهيد (ج۱ص۲۳۲) وفتح البارى (ج۱۱ص۷٤) وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۰)-

۵) (فتح البارى (ج۱۱ص۸٤)-

۶) (انظر عمدة القارى (ج۱٤ص۸۶)-

۷) (فتح البارى (ج۱۱ص ۷٤)-

ليكن دغه روايت ((ابوطوالة عن انس)) طريق نه هم مروى دى. په دې كښې بغير د شك ''مثل الملوك على الاسرة'' دې. (١)

**قوله:** قالت فقلت: يارسول الله ادع الله ان يجعلنى منهم فدعا لها رسول الله صلى الله عليه وسلم: حضرت ام حرام رضي الله عنها فرمائى چه ما اووئيل اې د الله رسوله! تاسو زما د پاره دعا اوكړئى چه زه هم په هغه خلقو كښې شامله شم. نو رسول الله ﷺ د هغې د پاره دعا اوفرمائيل.

**قوله:** ثم وضع راسه ثم استيقظ وهو يضحك فقلت وما يضحكك يا رسول الله؟ قال ناس من امتى عرضوا على غزاة فى سبيل الله كما قال فى الاول: بيا دوباره هغوى ﷺ خپل سر كيخودو (يعنى اوده شو) بيا په خندا سره راپاڅيدو نو ما اوئيل يارسول الله! تاسو ولې اوخندل؟ هغوى ﷺ د اولنى قول په شان اوفرمائيل چه زما د امت څه خلق زما په وړاندې پيش كړيشو، چه د الله تعالى په لار كښې جهاد كوى.

**قوله:** قالت فقلت يارسول الله ادع الله ان يجعلنى منهم، قال انت من الاولين: حضرت ام حرام رضي الله عنها فرمائى چه ما اووئيل يارسول الله! د الله تعالى نه ماله دعا اوغواړه چه زه هم په دوى كښې شامله شم. هغوى ﷺ ارشاد اوفرمائيلو نه، ته به د اولنى ډلې سره ئې.

**قوله:** فركبت البحر فى زمن معاوية بن ابى سفيان فصرعت عن دابتها حين خرجت من البحر فهلكت: هغه د حضرت معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنهما په زمانه كښې د هغه سره په سمندرى سفر باندې اووتله او د سمندر نه واپس راتلو باندې د خپل خاروى نه پريوتله او شهيده شوه.

په پورتنى عبارت كښې دا اوخودلې شو چه د حضرت معاويه رضي الله عنه په زمانه كښې چه هغه د شام گورنر وو د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت زمانه وه، هغه وخت د حضرت ام حرام رضي الله عنها د سمندرى سفر واقعه پيښه شوې وه او هغې ته الله تعالى شهادت نصيب كړو.

د حديث د ظاهر سياق نه دا معلوميږى چه دا واقعه د حضرت معاويه د خلافت د زمانې ده ليكن د عام اهل سير رائې دا ده چه دا واقعه هغه وخت پيښه شوې چه څه وخت حضرت معاويه رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه د طرف نه د شام گورنر وو. (٢)

د قاضى عياض او بعض نورو حضراتو ميلان دې طرف ته دې چه د حضرت معاويه رضي الله عنه په دور خلافت كښې دا واقعه پيښه شويده. (٣)

---

١) (انظر فتح البارى (ج١١ص٧٤) وايضاً الصحيح للبخارى (ج١ص٤٠٣) كتاب الجهاد باب غزو المرأة فى البحر رقم (٢٨٧٧-٢٨٧٨)-

٢) (فتح البارى (ج١١ص٧٥) وعمدة القارى (ج١٤ص٧٥)-

٣) (فتح البارى (ج١١ص٧٥)-

خو په تاریخي حیثیت سره دا خبره صحیح نه معلومیږي ځکه چه تاریخ دانانو د دې واقعې متعلق درې تاریخونه لیکلي دي:
① ابن الکلبي، خلیفه بن خیاط او ابن ابی حاتم وغیره وائي چه دا واقعه دَ کال ۲۸هجری ده. (۱) ② یعقوب بن سفیان او ابن زید وغیره وائي چه دا واقعه دَ کال ۲۷هجری ده. (۲)
③ ابن جریر طبري دَ واقدي، ابن لهیعه او ابومعشر المدني السندهي نه نقل کړې دي چه دا واقعه دَ حضرت عثمان رضی الله عنه دَ خلافت په زمانه کښې په کال ۳۳هجری کښې وه.(۳)
بهرحال دَ کومې زمانې چه هم دا واقعه وي هم دَ حضرت عثمان رضی الله عنه دَ خلافت په زمانه کښې پیښه شویده ځکه چه دَ هغوي شهادت په کال ۳۵هجری ذی الحجه کښې شویدې.
او حافظ صاحب رومبني قول راجح ګرځولې دې.هغه دَ دریوارو تاریخونو لیکلو نه پس لیکي: ((والاول اصح، وکلها فی خلافة عثمان ایضا لانه قتل فی اخر سنة خمس وثلاثین)) (۴)
**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن التین رحمه الله دَ حدیث باب په ترجمه باندې اعتراض کولو سره فرمائي چه په حدیث او دَ باب په ترجمه کښې مناسبت نشته، ځکه چه په ترجمه کښې دَ شهادت خواهش او په حدیث کښې دَ غزوې دَ خواهش ذکر دې. (۵)
دَ دې اعتراض جواب دا ورکړیشویدې چه دَ غزوې دَ خواهش ثمره عظمی هم شهادت دې ځکه چه په جهاد کښې دَ شرکت کولو مقصد دَالله تعالی په لارکښې دَشهادت حصول دې.(۶)

# ۴-بَاب: دَرَجَاتِ الْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

## يُقَالُ هَذِهِ سَبِيلِي وَهَذَا سَبِيلِي

**دَماقبل باب سره ربط او مناسبت:** په ماقبل باب کښې دَ شهادت د دعا ذکر وو اوس په دې باب کښې دَ شهادت په نتیجه کښې چه مجاهد. ته کوم درجات او انعامات حاصلیږي د هغې ذکردې.
**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله دَ دې باب دَ ترجمه نه دا خودل غواړي چه هغه مجاهد چه خاص دَ الله تعالی دَ پاره جنګ او جهاد کوي اودَ دنیا دَ شهرت وغیره طرف ته دَ هغه نظر نه وي دَ هغه دَپاره الله تعالی په جنت کښې اوچتې درجې تیارې ساتلې دي. (۷)

---

۱) (حواله بالا وشرح ابن بطال(ج۹ص۱۱)-
۲) (فتح الباری (ج۱ص ۷۵) وعمدة القاری (ج ۱٤ص۷۸)-
۳) (فتح الباری (ج۱۱ص۷۶)-
٤) (حواله بالا: والیه مال اعلماة الابی المالکی انظراکمال اکمال المعلم (ج۵ص ۲۶۰) وایضا انظر هذاالبحث فی الکامللابن الاثیر(ج۳ص٤۸) ذکر فتح قبرس-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۱۱)-
۶) (انظر عمدة القاری(ج۱٤ص۷۵) وفتح الباری (ج۶ص۱۱)-
۷) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۸۸)-

**قوله:** يقال: هذه سبيلي، وهذا سبيلي: ونيلی شی هذه سبيلی (تانيث سره) او هذا سبيلی (تذکير سره).

**دَ دې عبارت دَ ذکر کولومقصد:** دَ امام بخاری رحمه الله دَ دې عبارت نه دا غرض دې چه لفظ "سبيل" مذکر او مؤنث دواړه شان لوستلې شی او همدغه دَ امام فراء مذهب دې، فراء دَ قرآن کريم آيت ﴿يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِينَ كَفَرُوْا وَقَالُوْا لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا ضَرَبُوْا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوْا غُزًّى..الخ﴾ (۱) باره کښې فرمائی چه ((يتخذها)) ضمير دَ قرآن دَ آيت طرف ته واپس کيږی او که تاسوغواړئې نودادَسبيل طرف ته هم واپس کولې شی ځکه چه هغه کله کله مؤنث کيږی.(۲)

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ غُزًّا [آل عمران:۱۵۶] وَاحِدُهَا غَازٍ هُمْ دَرَجَاتٌ [آل عمران:۱۶۳] لَهُمْ دَرَجَاتٌ: ابوعبدالله البخاری رحمه الله فرمائی چه "غزا" جمع ده او دَ دې واحد "غاز" دې.

دَ امام بخاری رحمه الله دَ دې قول مطلب دا دې چه دَ قرآن کريم آيت ﴿يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِينَ كَفَرُوْا وَقَالُوْا لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا ضَرَبُوْا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوْا غُزًّى...الخ﴾(۳) کښې "غزی" کوم لفظ راغلې دې هغه دَ غاز جمع ده.

**قوله:** هم درجات، لهم درجات: چونکه دَ "درجات" حمل "هم" باندې صحيح نه دې دَ دې دَپاره امام ابوعبيدالله رحمه الله دَ دې تقدير "لهم درجات" بيان کړيدې. خو بعض نورو حضراتو ((هم ذوو درجات)) تقدير راويستې دې. (۴)

[۲۶۳۷] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (۵) رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ آمَنَ بِاللّٰهِ وَبِرَسُولِهِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَامَ رَمَضَانَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ جَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَوْ جَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَلَا نُبَشِّرُ النَّاسَ قَالَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللّٰهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ

---

۱) (لقمان:۶)-

۲) (عمدة القاری (ج۱۴ص۸۹) وفتح القاری (ج۶ص۱۱) وانظرالنهاية لابن الاثير(ج۲ص۳۳۸)قال ابن الاثير رحمه الله: فالسبيل فی الاصل: الطريق ويذکر ويؤنث. والتانيث فيها اغلب-

۳) (ال عمران:۱۵۶)-

۴) (فتح الباری (ج۶ص۱۱)-

۵) (قوله: عن ابی هريرة رضی الله عنه: الحديث اخرجه البخاری ايضًا (ج۲ص۱۱۰۳) کتاب التوحيد باب ﴿وکان عرشه علی الماء﴾ رقم (۷۴۲۳) والحديث من افراده-

السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ أُرَاهُ فَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ

قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ أَبِيهِ وَفَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ [۶۹۸۷]

## تراجم رجال

۱-يحيى بن صالح: دا يحيى بن صالح وحاظى شامى رحمه الله دي.(۱)

۲-فليح: دا ابويحيى فيح عبدالملك بن سليمان رحمه الله دي.

۳-هلال بن علي: داهلال بن على بن اسامه قرشى رحمه الله دي. دَ دي دواړو حضراتو تفصيلي تذكره ((كتاب العلم باب من سئل علماً وهومشتغل فى حديثه.....)) لاندې راغلى دى. (۲)

۴-عطاء بن يسار: دا ابومحمدعطاء بن يسار هلالى مدنى رحمه الله دي، دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب كفران العشير و كفر دون كفر)) په ذيل كښې تيرشوى دى.(۳)

۵- ابوهريره رضى الله عنه: دا مشهورصحابى حضرت ابوهريره رضى الله عنه دي، دَ دوى تفصيلي حالات ((كتاب الايمان باب امور الايمان)) كښې راغلى دى.(۴)

**قوله:** قال النبى صلى الله عليه وسلم: من امن بالله ورسوله، واقام الصلاة وصام رمضان كان حقاً على الله ان يدخله الجنة: نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلي چه كوم سړې په الله تعالى باندې اوَ هغه په رسول باندې ايمان راوړلو، مونځ ئى اوكړو او دَ رمضان روژې ئې وساتلې نو په الله تعالى باندې واجب دى چه هغه جنت ته داخل كړى.

**يواشكال اوَ هغې جوابونه:** دلته په حديث كښې دَ صلاة او صوم ذكر خو شته ليكن دَ حج او زكوة ذكر نشته، سرهٔ دَ دې چه څنګه مونځ او روژه دَ اسلام بنيادى اركانونه دى دغه شان زكوة او حج هم بنيادى اركان دى.

علامه كرمانى رحمه الله او ابن بطال رحمه الله دا توجيه بيان كړيده چه دَ باب په حديث كښې زكوة او حج نه ذكركيدو وجه دَ دې دواړو دَ هغه وخت پورې نه فرض كيدل دى. (۵)

حافظ صاحب جواب وركړيدې چه دلته دَ زكوة او حج ذكر دَ يو راوى نه حذف شويدې څكه

---

۱ ) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الصلاة باب اذاكان الثوب ضيقا-

۲ ) (كشف البارى (ج۳ص۶۳)-

۳ ) (كشف البارى(ج۲ص ۲۰۴)-

۴ ) (كشف البارى (ج ۱ص۶۵۹)-

۵ ) (انظر شرح الكرمانى (ج۱۲ص۹۸-۹۹)وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-

چه د ترمذی په روایت کوم چه حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه مروی دې په هغې کښې د حج ذکر موجود دې (۱) او هم په دې کښې حضرت معاذ رضی الله عنه فرمائی «لاادری اذکر الزکاة ام لا؟» (۲) او حافظ صاحب دونم جواب دا ورکړیدې چه دَ حدیث مقصد دَ ارکان اسلام استیعاب نه دې په دې وجه په مونځ او روژه اکتفاء اوکړیشوه. (۳)

«کان حقا علی الله ان یدخله الجنة» کښې حق په طریقه دَ فضل وکرم دې، دا مطلب نه دې چه الله تعالی باندې دَ هغه سړې جنت کښې داخلول واجب دی، بلکه مطلب دا دې چه الله تعالی به په خپل فضل او کرم سره هغه په جنت کښې داخل کړی. (۴)

**قوله: جاهد فی سبیل الله اوجلس فی ارضه التی فیها:** که دَ الله تعالی په لارکښې جهاد اوکړی یا هغه ځائ کښې کینی چرته چه پیدا شویدې.

په دې عبارت کښې حضور صلی الله علیه وسلم هغه سړی ته چه څوك جهاد نشی کولې تسلی ورکوی چه هغه هم دَ اجرنه محروم نه دې ځکه چه په ایمان باندې استقامت او نور فرائضو ادا کولو التزام به هغه جنت ته رسوی، خیر دې که دَ هغه درجه دَ مجاهدینو دَ درجې نه کمه وی. (۵)

**دَ فی سبیل الله مطلب:** اوس په دې ځان پوهه کړئی چه دَ سبیل الله لفظ په دوو معنوکښې استعمالیږی:

① یوه معنی دَ دې عام ده، دَ خیر هغه کار دکوم مقصد چه دَ الله تعالی رضا او تقرب الی الله وی په هغې دَ سبیل الله اطلاق کیږی لکه دَ فرائضو ادا کول، نوافل او دَ نورو عباداتو او طاعاتو اهتمام وغیره، دا اطلاق فی سبیل الله عام دې. امام بخاری رحمه الله هم په (کتاب الجمعة) کښې «عبایة بن رفاعة» په طریق یو حدیث نقل کوی، په دې کښې دی:

«ادرکنی ابوعبس وانا اذهب الی الجمعة فقال: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: من اغبرت قدماه فی سبیل الله حرمه الله علی النار» (۶)

حضرت عبایه بن رفاعة فرمائی چه زه دَ جمعه دَ ادا کولودَپاره جمات ته روان ووم، ماته حضرت ابوعبس رضی الله عنه ملاؤ شو او وئی فرمائیل مادَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه دَ کوم سړی قدمونه چه دَ الله تعالی په لارکښې په دوړوککړ شی نو الله تعالی به په هغه باندې د دوزخ اُور حرام کړی، یعنی د دوزخ اُور به هغه ته نه رسی.

دلته ذهاب الی الجمعة باندې حضرت ابوعبس رضی الله عنه دَ حضوُر اکرم صلی الله علیه وسلم حدیث واورولو او هغه

---

۱) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص۷۹) ابواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة درجات الجنة رقم(۲۵۳۰)-
۲) (انظرفتح الباری (ج۶ص۱۲)-
۳) (انظرفتح الباری (ج۶ص۱۲)-
٤) (حواله بالا -
۵) (انظر فتح الباری(ج۶ص ۱۲) وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-
۶) (انظرصحیح البخاری(ج۱ص ۱۲٤)کتاب الجمعة باب المشی الی الجمعة رقم(۹۰۷)-

ذهاب الی الجمعة سبیل الله سره تعبیر کړه، دا اطلاق عام دې.
② دوئمه معنی دَ فی سبیل الله خاص ده، هغه جهاد او قتال دې، نو چه کله فی سبیل الله مطلق ذکر شی نو دینه مراد قتال وی. (۱)

**قوله: فقالوا: یارسول الله افلا نبشر الناس؟:** صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین عرض اوکړو یارسول الله! آیا مونږ خلقو ته ددې زیرې ورکړو. حضور ﷺ ته مخاطب کونکې صحابی حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه وو. لکه چه دَ ترمذی په روایت کښې دی «قال معاذ: الا اخبر بهذا الناس؟» (۲) یا حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه وو لکه چه دَ طبرانی په روایت کښې دی. (۳)

**قوله: قال: ان فی الجنة مائة درجة اعدها الله للمجاهدین فی سبیل الله، ما بین الدرجتین کما بین السماء والارض:** حضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه په جنت کښې سل منازل دی کوم چه الله تعالی دَ هغه په لارکښې دَ جهاد کونکو دَ پاره تیار کړی دی. دَ دوو منزلونو په مینځ کښې فاصله دومره ده لکه دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې فاصله.

**دَ جنت څومره درجې دی:** دَ جنت څومره درجې دی په دې کښې اختلاف دې، دَ حدیث باب نه خو دا معلومیږی چه دَ جنت ټولې درجې سل دی، دَ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې فرمائیلې شوی دی «یقال یعنی لصاحب القرآن: اقرأ وارق ورتل کما کنت ترتل فی الدنیا، فان منزلتک عند اخر اٰیة تقرؤها» (۴)

ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې راغلی دی چه دَ جنت درجې دَ قرآن کریم دَ آیاتونو برابر دی. دَ پورتنی حدیث نه هم دې طرف ته اشاره کیږی چه دَ جنت درجې دَ قرآن کریم دَ آیاتونو دَ شمیر مطابق دی او دَ قرآن مجید آیاتونه (۶۶۶۶) خو معروف دی، نو صرف سل درجات په جنت کښې کیدل څنګه قبول کړیشی؟ دَ دې اشکال جواب حضرت شیخ الحدیث صاحب دا ورکړیدې چه «ان فی الجنة مائة درجة» روایت نه لوئ درجات مراد دی او دَ درجاتِ صغائر تذکره دلته نه ده شوې. اودَ جنت ټول منازل دَ قرآن پاك دَ آیاتونو برابر دی. (۵)
حافظ ابن حجر فرمائی چه دَ حدیث دَ سیاق نه دا معنی نه لازمیږی چه دَ جنت درجې هم

---

۱) (انظر النهایة لابن الاثیر الجزری (ج۲ص۳۳۸-۳۳۹) مادة سبل وشرح القسطلانی (ج۵ص۴۹)-
۲) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص۷۹) ابواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة درجات الجنة رقم (۲۵۳۰)-
۳) (فتح الباری (ج۲ص۱۲)-
٤) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص۱۱۹) ابواب فضائل القران باب (ان الذی لیس فی جوفه من القران کالبیت الخرب) رقم (۲۹۱٤) وسنن ابی داؤد (ج۱ص۲۰۶) کتاب الصلاة باب استحباب الترتیل فی القرائة رقم (۱٤٦٤)-
٥) (تعلیقات الشیخ الکاندهلوی علی الکوکب الدری (ج۳ص۳۱۰)-

سل دی بلکه نورې هم دی. لیکن ذکر د مجاهدینو کیږی نو صرف هم د دوی د درجو تعیین شویدې. (۱)

**دَ جنت دَ دوو درجومینځ کښې څومره فاصله ده؟** دَباب په حدیث کښې راغلی دی ((مابین الدرجتین کما بین السماء والارض)) چه دَ جنت دَ دوو درجو په مینځ کښې به څومره فاصله وی څومره چه دَ آسمان او زمکې په منیځ کښې ده.

اوس د زمکې او آسمان په مینځ کښې څومره فاصله ده؟ په دې سلسله کښې مختلف روایات دی. د ترمذی شریف په روایت کښې دی چه دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې دَ پنځوسوو کالو فاصله ده.

((... ثم قال: هل تدرون کم بینکم وبینها؟ قالوا: الله ورسوله اعلم، قال: بینکم وبینها (مسیرة) خمس مائة سنة))(۲)

دَ ابن ماجه، سنن ابی داؤد او هم ترمذی یو روایت کوم چه حضرت عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنه نه مروی دې:

((قال: فان بعد ما بینها اما واحدة واما اثنتان او ثلاث وسبعون سنة...))(۳) دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې ۷۱، ۷۲ یا ۷۳ کالو فاصله ده.

**دَتعارض جوابونه:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله دَ حضرت عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنه دَ روایت باره کښې فرمائی چه دا روایت وهم دې، چه یو راوی دَ روایت نه ۴۲۰ نه زیات کالونه ساقط کړی دی. صحیح دا دی چه دَ دې دواړو په مینځ کښې دَ پنځو سوو کالو فاصله ده. (۴)

لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په دواړو روایتونوکښې جمع او تطبیق لار اختیارولوسره فرمائی چه په کوم روایت کښې ۷۱، ۷۲ یا ۷۳ کالوذکر دې هلته سرعت سِیر مراد دې او چه کوم ځائ کښې پنځه سووکالوذکر دې هلته بطوء سِیر مراد دې، یعنی دَ سرعت سیر په اعتبار سره ۷۱، ۷۲ یا ۷۳ کالوفاصله جوړیږی او دَ بطوء سیر په اعتبار سره پنځه سوو کالو فاصله جوړیږی. (۵)

علامه خلیل احمدسهارنپوری رحمه الله دا جواب ورکړیدې چه دَ روایتونو په مینځ کښې دا تفاوت دَ سائر(تلونکې) په اعتبار سره دې. ځکه چه دَ انسان او اس په چال کښې خو ښکاره

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۱۲)-
۲) (انظر الجامع للترمذی (ج۶ص ۱۶۵) ابواب تفسیرالقران (باب ومن) سورة الحدید رقم (۳۲۹۸)-
۳) (انظر سنن ابن ماجه باب فی الجهمیة رقم (۴۷۲۳) والجامع للترمذی (ج۲ص۱۶۹) ابواب تفسیرالقران (باب) ومن سورة الحاقة رقم (۳۳۲۰)-
٤) (انظر فیض الباری (ج۳ص۴۲۰)-
۵) (انظر فتح الباری (ج۱۳ص۴۱۳-۴۱٤)-

خبره ده چه فرق دې.(۱)

بیا دَ ترمذی یو روایت کوم چه ((محمدبن جحادة عن عطاء عن ابی هریرة)) په طرق سره مروی دې، کښې وارد شوی دی چه دَ جنت دَ هرو دوو درجو په مینځ کښې دَ سلو کالو فاصله ده. ((قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: فی الجنة مائة درجة، مابین کل درجة مائة عام))(۲) اودَ طبرانی په یوروایت کښې دی چه دَ پنځوسوو کالو فاصله ده. (۳)

دا دَ پنځو سوو کالو روایت دَ دې روایت تائید کوی کوم کښې چه دَ زمکې او آسمان په مینځ کښې پنځو سوو کالو فاصله بیان شویده. لیکن دَ سلو کالو روایت مشکل جوړېږي. اوس به یا دا په تکثیر باندې عمل کولې شي یعنی دا به وئیلی شي چه سل کاله دَ تحدید دَ پاره نه دی بلکه کثرت بیانول مقصد دې، نو اشکال به ختم شي، یا بیا هم هغه دَ حافظ صاحب جواب اختیار کړېشي کوم چه مونږ اوس پورته ذکر کړو.

**قوله: فاذا سألتم الله فاسألوه الفردوس:** او چه کله تاسو دَ الله تعالی نه غوارئ نو فردوس غوارئ.

"فردوس" هغه باغ ته وائی په کوم کښې چه هر څیز وی، ګلونه او میوې په دې کښې وی، دَ خوارک څښناك سامان هم په دې کښې وی او نهرونه هم په دې کښې وی.(۴)

دَ دې جمع فرادیس راځی. (۵)

**قوله: فانه اوسط الجنة واعلی الجنة:** بې شکه فردوس دَ جنت غوره او اعلی حصه ده. علامه ابن بطال فرمائی چه اوسط نه مراد متوسط وی یعنی فردوس دَ جنت په مینځ کښې واقع دې او جنت دا دَ څلورو واړو طرفونونه راګیر کړیدې. (۶)

**قوله: اراه قال: وفوقه عرش الرحمن:** دا دَ امام بخاری رحمه الله شیخ یحیی بن صالح قول دې، هغه فرمائی چه زما په دې کښې شك دې چه زما استاذ فلیح کیدیشی داسې وئیلې ((وفوقه عرش الرحمن)) لیکن دا روایت دَ یحیی بن صالح نه علاوه دَ فلیح نورو شاګردانو بغیر دَ شك نه نقل کړیدې لکه چه اسماعیلی په نسخه کښې یونس بن محمد وغیره روایت دې.(۷)

**قوله: ومنه تفجر انهار الجنة:** او هم دَ فردوس نه دَ جنت نهرونه جاری شوی دی.

---

۱) (بذل المجهود (ج۱۸ص۲۵۷)-
۲) (انظر الجامع للترمذی (ج۲ص) ابواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة درجات الجنة رقم (۲۵۲۹)-
۳) (انظر مجمع الزوائد للهیثمی (ج۱۰ص۴۱۹) کتاب اهل الجنة باب فی درجات الجنة-
۴) (عمدة القاری(ج۱۴ص۹۰)-
۵) (مجمع بحار الانوار (ج۴ص۱۱۵) ((مادة فردس-
۶) (انظرشرح ابن بطال(ج۵ص۱۲)-
۷) (انظر عمدة القاری(ج۱۴ص۹۱)-

بعضې حضراتو "منه" ضمير عرش ته راګرځولې دې. په دې صورت کښې به مطلب دا وى چه د عرش نه د جنت نهرونه راوځى. (۱)

ليکن ابن حجر رحمه الله فرمائى چه "منه" ضمير د عرش طرف ته ګرځول وهم دې بلکه دا ضمير د فردوس طرف ته راګرځى او په دې صورت کښې به معنى وى چه د فردوس نه د جنت نهرونه راوځى. (۲)

"تفجر" په اصل کښې "تتفجر" وو، د دې نه يوه تاء حذف کړې شويده. او التفجر معنى راوتل يعنى راخوټکيدل. (۳)

**قوله: قال محمد بن فليح عن ابيه: وفوقه عرش الرحمن:** محمد بن فليح د خپل پلار نه نقل کړيدى چه هغوى ونيلې دى چه د فردوس دپاسه د الله تعالى عرش دې.

**د تعليق ذکر کولو مقصد او تخريج:** د امام بخارى رحمه الله مقصد د دې تعليق نه دا بيان کول دى چه دا روايت کله د فليح خوئ روايت کړو نو هغه بغير د شك نه په جزم سره ((وفوقه عرش الرحمن)) اوفرمائيلو. او يحيى بن صالح په شان شك سره ئى بيان نه کړو. (۴)

دا تعليق امام بخارى رحمه الله کتاب التوحيد کښې ((عن ابراهيم عن محمد بن فليح عن ابيه)) په طريق سره موصولاً نقل کړيدى، دينه علاوه امام اسماعيلى رحمه الله هم دا حديث ((يونس بن محمد عن فليح)) په طريق باندې بغيرشك نه روايت کړيدې. (۵)

**قوله: وفوقه عرش الرحمن:** د اکثرو راويانو په روايت کښې "فوقه" د ظرفيت په بناء باندې نصب سره دې. (۶)

البته په مشارق کښې دى چه ابومحمد اصيلى رحمه الله دا لفظ مرفوع نقل کړيدې. ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله دا مرجوح ګرځولې دې. (۷)

که د نصب سره دې نو د مذکوره جملې مطلب به داوى چه د فردوس دپاسه د الله تعالى عرش دې. او که رفع سره دې نو هغه وخت به دا معنى وى چه د فردوس چت عرش الرحمن دې. په دې صورت کښې "فوقه" معنى به چت وى.

---

۱) (انظرفتح البارى (ج۶ص۱۳)-

۲) (انظر فتح البارى(ج۶ص۱۳)-

۳) (انظر عمدة القارى(ج۱۴ص۹۱)-

۴) (حواله بالا-

۵) (تغليق التعليق (ج۳ص۴۳۱) واخرجه البخارى(۲ص۱۱۰۴) فى کتاب التوحيد باب ﴿وكان عرشه على الماء﴾ رقم ۷۴۲۳)-

۶) (انظرفتح البارى(ج۱۳ص۴۱۴)-

۷) (انظرفتح البارى (ج۱۳ص۴۱۴)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د باب د ترجمه د حديث سره مناسبت د رسول الله ﷺ ارشاد ((ان فی الجنة مائة درجة)) نه واخله ((مابين الدرجتين كما بين السماء والارض)) پورې کښې دى. او مناسبت بالكل واضح دې.

[۲۶۳۸] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا جَرِيرٌ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ عَنْ سَمُرَةَ(۱) قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي فَصَعِدَا بِي الشَّجَرَةَ فَأَدْخَلَانِي دَارًا هِيَ أَحْسَنُ وَأَفْضَلُ لَمْ أَرَ قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهَا قَالَا أَمَّا هَذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ [ر: ۸۰۹]

## تراجم رجال

۱- **موسى:** دا موسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دې. د هغوى حالات ((بدء الوحى)) څلورم حديث لاندې نقل شويدى. (۲)

۲- **جرير:** دا جرير بن حازم رحمه الله دې. (۳)

۳- **ابورجاء:** دا ابورجاء عمران بن ملحان عطاردى بصرى رحمه الله دې (۴)

۴- **سمره:** دا مشهور صحابى حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه دې. (۵)

**قوله:** اما هذه الدار فدار الشهداء: دا جمله په دې خبره دلالت کوى چه د شهداو منزلونه د جنت ارفع واعلى منازل دى. (۶) داحديث بعينه هم په دې سند سره کتاب الجنائز کښې تيرشويدې اود دې نور تشريحات هم. (۷)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث مناسبت ترجمه سره دَ رسول الله ﷺ ارشاد ((هى احسن وافضل الخ)) سره دې. (۸)

## ۵- بَاب: الْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَابِ قَوْسِ أَحَدِكُمْ مِنْ الْجَنَّةِ

**وړاندينى باب سره مناسبت:** په مخکينى باب کښې دَ مجاهدينو دَپاره الله تعالى چه کومې درجې اومنازل تيارکړى دى دَ هغې بيان وو. اوس په دې باب کښې امام بخارى رحمه الله دا وئيل

---

۱) (قوله: عن سمرة رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه فى كتاب الاذان باب يستقبل الامام الناس اذا سلم رقم (۸۴۵)-

۲) (كشف البارى (ج۱ص۴۳۳)-

۳) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فى المسجد-

۴) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب التيمم باب الصعيدالطيب وضوء المسلم.....-

۵) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الحيض باب الصلاة على النفساء وسنتها-

۶) (شرح القسطلانى (ج۵ص۳۸)-

۷) (كتاب الجنائزباب بلاترجمة بعد باب ماقيل فى اولادالمشركين رقم (۱۳۸۶)-

۸) (عمدة القارى(ج۱۴ص۹۱)-

غواړي چه مجاهدين دا درجې صرف سحر يا صرف ماښام وخت د الله تعالى په لارکښې ورکولو سره حاصلولې شي.

**دَ ترجمة الباب مقصد** دلته امام بخارى رحمه الله دَ سحر او ماښام په وختونوکښې دَ الله تعالى په لارکښې دَ وتلو فضيلت بيانوى(۱)

او بله دا چه په جنت کښې دَ يوذراع برابر ځائ څه فضيلت دې؟ (۲)

[۲۶۳۹] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا [۲۶۴۳]

## تراجم رجال

۱- معلى بن اسد: دا معلى بن اسد البصرى رحمه الله دې. (۴)

۲- وهيب: دا وهيب بن خالدبن عجلان باهلى رحمه الله دې. دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب تفاضل اهل الايمان فى الاعمال)) لاندې تيرشوى دى. (۵)

۳- حميد: دا ابوعبيده حميدبن ابى حميدالطويل خزاعى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره ((كتاب الايمان، باب خوف المؤمن من ان يحبط عمله....)) په ذيل كښې راغلى دى. (۶)

۴- انس بن مالك: حضرت انس بن مالك رضي الله عنه حالات ((كتاب الايمان باب الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه)) لاندې راغلى دى. (۷)

**قوله:** عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: لغدوة فى سبيل الله اوروحة، خير من الدنيا ومافيها: حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه هغوى صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې، دَ الله تعالى په لاركښې يو سحر يا يو ماښام لګول دَ دنيا نه او څه چه په دې

۱) (عمدة القارى (ج۱٤ص۹۱)-

۲) (فتح البارى (ج۶ص۱٤)-

۳) (قوله: عن انس بن مالك رضى الله عنه: الحديث اخرجه البخارى ايضاً (ج۱ص۳۹۲) كتاب الجهاد والسير باب الحور العين وصفتهن رقم (۲۷۹۶)ت وكتاب الرقاق (ج۲ص۹۷۲) باب صفة الجنة والنار رقم (۶۵۶۸) ومسلم (ج۲ص۱۳٤) كتاب الامارة باب فضل اغدوة والروحة فى سبيل الله رقم (٤۸۷۳) والترمذى (ج۱ص۲۹٤) ابواب الفضائل الجهاد باب ماجاء فى الغدو والرواح فى سبيل الله رقم (۱۶۵۱)-

٤) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الحيض باب المراة تحيض بعد الافاضة-

۵) (كشف البارى (ج۲ص۱۱۸)-

۶) (كشف البارى (ج۲ص۵۷۱)-

۷) (كشف البارى(ج۲ص٤)-

كښې دى د ټولونه بهتردى.

**دَ حديث لغوى تشريح** "غدوة" –بالفتح– معنى ده، دَ سحر وخت يوځل راوتل او "غدو" لفظ دَ سحر نه تر زوال پورې وخت شامل دې.(۱)

"روحة"–بالفتح– معنى ده يو ځل ماښام راوتل او "رواح" لفظ دَ زوال نه پس تر شپې پورې وخت شامل دې.(۲)

**دَ حديث مطلب** ابن المهلب رحمه الله فرمائى چه ((خير من الدنيا)) مطلب دا دې چه دَ دې لږې غوندې زمانې ثواب او بدله په جنت كښې دَ دنيا دَ ټولوزمانونه بهتر ده. (۳)

ابن دقيق العيد رحمه الله فرمائى چه دَ حديث مطلب دا دې چه "غدوة" او "روحة" په ذريعه به كوم ثواب حاصليږى هغه بهتر دې دَ هغه ثواب نه كوم چه دنيا او مافيها دَ الله تعالى دَ طاعت د پاره خرڅ كولوسره حاصليږى.(۴)

حافظ رحمه الله دَ ابن دقيق العيد رحمه الله قول ذكر كولونه پس فرمائى چه دَ دې قول تائيد دَ دې حديث نه هم كيږى كوم چه عبدالله بن المبارك رحمه الله كتاب الجهاد كښې دَ حضرت حسن بصرى رحمه الله نه مرسلاً نقل كړيدې.

**((قال: بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم جيشًا فيهم عبدالله بن رواحة، فتاخر ليشهد الصلاة مع النبى صلى الله عليه وسلم، فقال له النبى صلى الله عليه وسلم: والذى نفسى بيده لو انفقت مافى الارض ما دركت فضل غدوتهم)) (۵)**

نبى كريم صلى الله عليه وسلم يو لښكر اوليګلو، په دې كښې عبدالله بن رواحه رضى الله عنه هم وو، هغه روستو دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مانځه كښې دَ شريكيدودَ پاره حصار شو (كله چه هغوى صلى الله عليه وسلم ته معلومه شوه) نووئى فرمائيل. دَ الله قسم! ته چه څه په زمكه كښې دى هغه صدقه كړې نو بيا هم دَ هغوى دَ غدوې فضيلت نشى حاصلولې.

**دَ سحراوماښام دَتخصيص وجه:** دلته دَ سحر اوماښام ذكر غالبًا صرف دَ دې دَپاره شويدې چه هم دَسحراوماښام په سفربانديې دَ تلو رواج وو، ګني كه سرې دَ ورځې په مينځينۍ حصه كښې دَ دين دَخدمت په سلسله كښې لاړشي نو يقيناً دَ هغه دَ تګ هم هغه فضيلت دې.(۶)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث دَ باب ترجمه مناسبت بالكل واضح او ښكاره دې. (۷)

---

۱) (مجمع بحارالانوار(ج۲ص۳۸۸) مادة روح وعمدة القارى (ج۱٤ص۹۱)-
۲) ( مجمع بحارالانوار(ج٤ص۱۳) مادة غدا وعمدة القارى (ج۱٤ص۹۱)-
۳) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۳)-
٤) (انظر فتح البارى(ج۶ص۱٤)-
۵) (انظر فتح البارى(ج۶ص۱٤)-
۶) (معارف الحديث (ج۱ص۱۶۱)-
۷) (عمدة القارى (ج۱٤ص۹۱)-

[٢٦٣٠] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(١) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَقَابُ قَوْسٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا تَطْلُعُ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَتَغْرُبُ وَقَالَ لَغَدْوَةٌ أَوْ رَوْحَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِمَّا تَطْلُعُ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَتَغْرُبُ

## تراجم رجال

١- ابراهیم بن المنذر: دا ابواسحاق ابراهیم بن المنذر بن عبدالله قرشی اسدی رحمه الله دي.

٢- محمد بن فلیح: دا ابوعبدالله محمد بن فلیح بن سلیمان رحمه الله دي.

٣- ابي: "اب" نه فلیح عبدالملك بن سلیمان خزاعی اسلمی رحمه الله مراد دي.

٤- هلال بن علی: دا هلال بن علی بن اسامه قرشی مدنی رحمه الله دي. دَ دې ځلورو وارو حضراتو تذکره ((کتاب العلم باب من سئل علما وهو مشتغل فی حدیثه....)) لاندې تیره شویده. (٢)

٥- عبدالرحمن بن ابی عمرة: دا عبدالرحمن بن ابی عمرة عمرو بن محصن انصاری رحمه الله دي. (٣)

٦- ابوهریره رضی الله عنه: دَ ابوهریره رضی الله عنه حالات ((کتاب الایمان باب امور الایمان)) په ذیل کښې راغلی دی. (٤)

**قوله: قال: لقاب قوس فی الجنة خیر مما تطلع علیه الشمس وتغرب:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلې دې په جنت کښې دَ یوکمان برابر ځائ هم دَ دې ټول کائنات نه بهتر دې په کوم چه نمر راخیژی او ډوبیږی. ((قاب: بتخفیف القاف واخره موحدة)) مقدار ته وائی. (٥)

اوعلامه خطابی رحمه الله فرمائی: ((قاب القوس: مابین السیة والمقبض)) (٦) یعنی دَ کمان قبضې او دَ کوټ په مینځ کښې فاصله ته "قاب" وائی.

---

١) (قوله: عن ابی هریرة رضی الله عنه: الحدیث اخرجه البخاری ایضاً (ج١ص٤٦١) کتاب بدء الخلق باب ماجاء فی صفة الجنة وانها مخلوقه رقم (٣٢٥٣) و (ج٢ص٩٧٢) کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار رقم(٦٥٦٨) والترمذی فی جامعه (ج١ص ٢٩٤) ابواب فضائل الجهاد باب ماجاء فی الغدوة والروحة فی سبیل الله رقم (١٦٤٩)

٢) (کشف الباری (ج٣ص٦٢)-

٣) (دَ دوی حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب المساقاة باب حلب الابل علی الماء-

٤) (کشف الباری (ج١ص٦٥٩)-

٥) (انظرفتح الباری (ج٦ص ١٤)-

٦) (اعلام الحدیث (ج٢ص١٣٥٧)-

اوډ امام مجاهد نه د دې معنی "قدر ذراع" مروی دې، په دې صورت کښې "قوس" معنی ذراع به وی. د قبیله ازدشنوءة په لغت کښې "قوس" ذراع ته وائی په څه چه ناپ کولې شی. (۱)

د وړاندینی باب په روایت کښې یو لفظ قید - بکسر القاف وبعدها تحتانیة هم راغلې دې. د دې معنی هم مقدار دې. (۲)

اوډ حدیث د دې جمله مطلب دا ددې چه جنت دومره بهترین او پاکیزه ځائ دې چه د هغه ځائ یو لاس هومره یا د یوکمان برابر ځائ هم د دنیااو مافیها نه بهتردې. (۳)

او ((خیرمما تطلع الشمس وتغرب)) نه مراد هم ((خیرمن الدنیا ومافیها)) دې. (۴)

**قوله:** وقال: لَغدوة او روحة فی سبیل الله خیر مما تطلع علیه الشمس وتغرب: اووئې فرمائیل، د الله تعالی په لارکښې یو سحر یا ماښام د پاره وتل بهتردی د دې ټول کائنات نه په کوم چه نمر راخیژی او ډوبیږی. د دې جملې تشریح اوس د ماقبل د باب اولنی حدیث کښې تیره شوه.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث د ترجمې د اولنی جزء سره مطابقت ((الغدوة او روحة فی سبیل الله)) کښې دې اودَدوئم جزء سره مناسبت ((لقاب قوس فی الجنة... الخ)) کښې دې. (۵)

[۲۶۴۳] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ (۶) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّوْحَةُ وَالْغَدْوَةُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَفْضَلُ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا [۶۰۵۲، ۳۰۲۸، ۲۲۳۵]

## تراجم رجال

۱- **قبیصه:** دا ابوعامر قبیصه بن عقبه بن محمد کوفی رحمه الله دې.

---

۱) (انظرعمدة القاری (ج ۱۴ص۹۱)-
۲) (فتح الباری(ج۶ص ۱۴)-
۳) (الابواب والترجم للکاندهلوی (ج ۱ص ۱۹۴)-
۴) (انظرعمدة القاری(ج ۱۴ص۹۱)-
۵) (حواله سابقه-
۶) (قوله: عن سهل بن سعد رضی الله عنه: الحدیث اخرجه البخاری ایضًا (ج۱ص۴۰۵) کتاب الجهاد والسیر باب فضل رباط یوم فی سبیل الله رقم (۲۸۹۲) و (ج۲ص۹۴۹) کتاب الرقاق باب مثل الدنیا فی الاخرة رقم (۶۴۱۵) ومسلم فی صحیحه (ج۲ص ۱۳۴) کتاب الامارة باب فضل الغدوة والروحة فی سبیل الله رقم (۴۸۷۳، ۴۸۷۵) والترمذی فی جامعه (ج۱ص ۲۹۴) فی فضائل الجهاد باب ماجاء فی الغدووالرواح فی سبیل الله رقم (۱۶۴۸) وباب ماجاء فی فضلالمرابط رقم (۱۶۶۴) والنسائی فی الصغری (ج۲ص۵۵) فی کتاب الجهاد باب فضل غدوة فی سبیل الله رقم (۳۱۲۰)-

۲- **سفيان:** دامشهور امام محدث حضرت سفيان بن سعيد ثورى رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو حالات ((کتاب الايمان باب علامة المنافق)) په ذيل کښې راغلى دى. (۱)

۳- **ابوحازم:** دا ابوحازم سلمة بن دينار مدنى رحمه الله دې.

۴- **سهل بن سعد:** دا صحابى رسول ﷺ حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه دې. (۲) دَ حديث تشريح په ماقبل کښې تيره شوه.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث مطابقت ترجمه سره بالکل واضح او ښکاره دې. په دې کښې هم دَ غدوة او روحة ذکر او په دې دواړو وختونوکښې دَ الله تعالى په لارکښې دَ وتلو فضيلت بيان شويدې. (۳)

## ۶- باب: الْحُورِ الْعِينِ وَصِفَتِهِنَّ يُحَارُ فِيهَا الطَّرْفُ شَدِيدَةُ سَوَادِ الْعَيْنِ شَدِيدَةُ بَيَاضِ الْعَيْنِ وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ أَنْكَحْنَاهُمْ

**ماقبل سره ربط او مناسبت:** په سابقه باب کښې ((درجات المجاهد)) ذکر وو او دا خودلې شوى ووچه الله تعالى دَ مجاهد دپاره په خاص توګه سل درجې او منازل تيار ساتلې دى.

اوس په دې باب کښې ضمناً دا خودل غواړى چه په دې منازلوکښې به حورې هم وى اودَ هغې صفت دا دې چه په دې کښې که يوه هم دنياته اوګورى نو ټوله دنيا به روښانه شى او کائنات به دَ خوشبونه ډك شى. (۴)

**دَ باب دَ ترجمې مقصد:** دَامام بخارى رحمه الله مقصددَ دې باب دَ ترجمې نه دا بيان کول دى چه الله تعالى دَ شهيدانودپاره قسم قسم انعامونه تيارساتلى دى په هغې کښې حورې هم شاملې دى بيا دَ دې حورو مختلف صفتونه بيان کړيشوى دى.

**قوله: يحار فيها الطرف:** سترګې (چه هغې ته اوګورى) نو حيرانې به پاتې شى.

امام بخارى رحمه الله دَ حورې دَ تسميه وجه بيانوى چه حورې ته حوره په دې وجه وائى چه سترګې دَ هغې په کتوحيرانيږى (۵) لکه چه حور ((حيرة)) نه مشتق ده. خو په دې باندې علامه ابن التين رحمه الله اعتراض کړيدې او وئيلى دى چه دا صحيح نه دى ځکه چه ((حيرة)) خو اجوف يائى دې او حور اجوف واوى دې نو اجوف يائى دَ اجوف واوى نه مشتق ګرځول به څنګه صحيح وى؟ (۶)

---

۱) (کشف البارى (ج۲ص۲۷۵-۲۸۰)-
۲) (دَ دې دواړو حضراتو دَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المراة اباها الدم عن وجهه-
۳) (عمدة القارى (ج۱٤ص۹۲)-
٤) (انظر عمدة القارى (ج۱٤ص۹۳)-
۵) (ارشاد السارى (ج۵ص۳۹)-
۶) (انظر فتح البارى (ج۶ص۱۵)-

د دې اعتراض جواب حافظ صاحب دا ورکړيدې چه دلته اشتقاق اکبرمراد دې او په دې کښې اکثرو حروفوکښې د مشتق او مشتق منه اتحاد کافي کيږي او د ټولو حروفو په مينځ کښې اتحاد ضروري کيږي نه او اشتقاق صغيرمراد نه دې. (١)

**قوله:** شديدة سواد العين، شديدة بياض العين: دَ سترګو ډير توروالي اوډير سپينوالي والا. دا دَ ((عين)) تفسير دې او دا دَ امام بخاري رحمه الله استاذ ابوعبيده رحمه الله کلام دې.(٢)

**د حورالعين لغوي تحقيق:** لفظ ((حور)) دَ ((حوراء)) جمع ده، امام ابن سيده رحمه الله فرمائي چه حوراء هغه ده دَ کومو د سترګو سپينوالې چه ډير زيات وي اودَ هغوي دَ سترګو توروالې هم ډير زيات وي، دَ سترګوکاکنی ئې ګول وي، ورځې نرئی وي اودَ ورځو ګيرچاپيره سپينوالې وي.(٣) اودَ حوراء مغنی ((بيضاء)) هم کړېشويده يعنی هغه ښځه چه سپينه وي.(۴)

عين - بکسر العين المعجمي وسکون الياء - دَعيناء جمع ده اودَ عيناء معنی هغه ښځه دَ کومې چه غټې غټې سترګې وي اودَ سترګوکومه حصه چه سپينه وي دَ هغې سپينوالې ډيرزيات وي او کومه حصه چه توره وي په هغې کښې ډيرزيات توروالې وي.(۵)

**قوله:** وزوجناهم [الدخان: ۵۴] أنكحناهم: او مونږ به د هغوی نکاح (حورو) سره اوکړو.

**د مذکوره عبارت مقصد:** دَ دې جملې نه امام بخاري رحمه الله دَ سورة "دخان" آيت طرف ته اشاره کړيده ﴿وزوجناهم بحورعين﴾ اودَ دې مناسبت ترجمة الباب سره بالکل واضح دې ځکه چه په دې کښې دَ ((حورعين)) تذکره ده.(۶)

او ((وزوجناهم)) کوم تفسير چه ((انكحناهم)) سره امام بخاري رحمه الله کړيدې، دا دَ هغه دَ استاذ ابوعبيده رحمه الله قول دې اودَ دې يو بل تفسير ((وزوجناهم)): جعلنا هم أزواجًا أزواجًا يعنی مونږ هغوی جوړې جوړې پيدا کړلې، هم کړېشويدې. (۷)

[۲۶۴۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٨) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ

---

١ ) (حواله سابقه وانظر التفصيل أنواع الاشتقاق مراح الأرواح (ص ٤-٥)-
٢ ) (فتح الباری (ج۶ص۱۵)-
٣ ) (انظرعمدة القاری (ج ١٤ص٩٣)-
٤ ) (المعجم الوسيط (ج١ص٢٠۶)-
٥ ) (انظرفتح الباری (ج۶ص١۵) وانظر النهاية لابن الاثير (ج٣ص٣٣٣) مادة عين-
٦ ) (انظر عمدة القاری (ج ١٤ص٩٣)-
٧ ) (حواله بالا)
٨ ) (قوله: أنس بن مالک رضی الله عنه: الحديث أخرجه البخاری أيضًا ...[بقيه حاشيه په رازوانه صفحه...

يَمُوتُ لَهُ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ يَسُرُّهُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَأَنَّ لَهُ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا إِلَّا الشَّهِيدَ لِمَا يَرَى مِنْ فَضْلِ الشَّهَادَةِ فَإِنَّهُ يَسُرُّهُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ مَرَّةً أُخْرَى [۲٦٦۲]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن محمد: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندى رحمه الله دي، دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب أمور الإيمان)) په ذيل کښې تيرشوى دى. (۱)

۲- معاويه بن عمرو: دا معاويه بن عمروازدى رحمه الله دي.(۲)

۳- ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهيم بن محمد الفزارى رحمه الله دي. (۳)

۴- حميد: دا ابوعبيده حميد ابى حميد الطويل رحمه الله دي. دَ دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله....)) په ذيل کښې راغلى دى.(۴)

۵- انس بن مالك رضى الله عنه: دَ حضرت انس رضى الله عنه حالات ((كتاب الإيمان باب من الأيمان أن يحب لأخيه....)) ذيل کښې تيرشوى دى. (۵)

دَ حضرت انس بن مالك رضى الله عنه نه نقل دى چه نبى اكرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل هريو دَ الله تعالى بنده چاته چه دَ مرګ نه پس دَ الله تعالى دَ دربار نه خيراو ثواب ملاؤشويدي دنيا او مافيها موندلو نه پس به هم دلته دوباره راتلل خوښ نه کړى، که دَ هغه دَ پاره دَ دنيا او مافيها څيزونه شى.

دَ حديث مطلب دا دې چه کله جنتى په جنت کښې داخل شى دَ الله تعالى دَ نعمتونو مشاهده به اوکړى ، دَ هغې نه خوندداو مزه اوڅته کړى نو هغه به دې باندې راضى نه شى چه دوباره دنياته واپس شى سره دَ دې که ده ته دَ دنيا ټول څيزونه ورکړيشى.

قوله: ألا الشهيد لما يرى من فضل الشهادة، فإنه يسره أن يرجع إلى الدنيا، فيقتل مرة أخرى: دَ شهيدنه بغير چه هغه دَ شهادت فضيلت او مرتبه اوګورى نودَ ده

...بقيه حاشيه دتيرمخ] (ج۱ص۳۹۵) كتاب الجهاد باب تمنى المجاهد أن يرجع إلى الدنيا رقم (۲۸۱۷) ومسلم (ج۲ص۱۳٤) كتاب الإمارة باب فضل الشهادة فى سبيل الله رقم (٤۸٦۸) والترمذى (ج۱ص۲۹۳) أبواب فضائل الجهاد باب ماجاء فى ثواب الشهداء رقم (۱٦٤۳) والنسائى(ج۲ص٦۰) كتاب الجهاد باب ميتمنى أهل الجنة رقم (۳۱٦۲)-

۱) (كشف البارى (ج۱ص۵۷)-

۲) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الذان باب أقبال الإمام على الناس-

۳) (دَدوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الجمعة باب القائلة بعدالجمعة-

٤) (كشف البارى (ج۲ص۵۷۱)-

۵) (كشف البارى (ج۲ص٤)-

دپاره به دا خبره د خوشحالئي وي چه دوباره دنيا ته واپس کړيشي او بيا شهيد کړيشي.

**د شهيداو غيرشهيد د مرتبوفرق:** په پورتنی حديث کښې د شهيداو غيرشهيد د مرتبودفرق ذکر دې چه د عام جنتي نه يو شيهد په فضيلت او مرتبوکښې ډير زيات به وي، په دې وجه کله چه شهيد د الله تعالى د نعمتونو او احساناتو مشاهده اوکړي نود هغه خواهش به وى چه دوباره دنياته واپس کړيشي او بيا شهيد کړيشي.

دلته د باب په حديث کښې ((فيقتل مرة أخرى)) واردشويدې، او د هم د بخاري شريف په يو روايت کښې ((فيقتل عشرمرات)) راغلى دى (۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه دا روايت د ترجمه لاندې داخل کړيدې چه په دې حديث کښې د هغه سبب ذکر دې د څه د وجه چه شهيد دوباره دنيا طرف ته واپس کيدل او د شهادت آرزوکوی ځکه چه د شهيد په مشاهده کښې به د الله تعالى هغه نعمتونه راځى او الله تعالى به د هغه حوروسره نکاح کوى، په کوموکښې به چه د هرې حورې صفت دا وى که هغه دنياته اوګورى نو ټوله دنيا به روښانه شي، همدې نعمتونو او حورو ته کتلوسره به هغه بيا دنيا ته د راتلو او شهادت خواهش کړوى، دې دپاره چه د الله تعالى اکرام، د هغه نعمتونه او فضل نور هم حاصل کړى. (۲)

[۲۶۴۳] قَالَ وَسَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ (۳) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَرَوْحَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْغَدْوَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ أَوْمَوْضِعُ قِيدٍ يَعْنِي سَوْطَهُ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَلَوْأَنَّ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَتْ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ لَأَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَلَمَلَأَتْهُ رِيحًا وَلَنَصِيفُهَا عَلَى رَأْسِهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا [ر: ۲۶۳۹]

بعض حضراتو د ((قيد)) په لفظ اعتراض کولو سره وئيلى دى چه دا تصحيف دې، په حقيقت کښې دا لفظ ((قد)) دې او ((قد)) هغه کوړې ته وائى چه د غيرمدبوغ څرمن نه جوړه شوې وى (۴) علامه کرمانى رحمه الله د دې اعتراض جواب ورکولو سره فرمائى چه د دعوائې تصحيف هډو ضرورت نشته ځکه چه د کلام معنى صحيح ده. (۵)

اودا خبره په تيرشوى باب کښې تيره شويده چه د ((قاب)) او ((قيد)) معنى مقدار هم راځى. (۶)

**د قاب او سوط د تخصيص وجه او مراد:** حضرت مولانا منظوراحمدنعمانى رحمه الله فرمائى:

---

۱) (انظر الصحيح للبخارى (ج۱ص۳۹۵) کتاب الجهاد والسير، باب تمنى المجاهد أن يرجع إلى الدنيا رقم (۲۸۱۷)

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۵)-

۳) (قوله: انس بن مالک رضى الله عنه مرتخريج هذاالحديث فى الباب السابق-

۴) (شرح الکرمانى (ج۱۲ص۱۰۱)-

۵) (حواله بالا-

۶) (فتح البارى (ج۶ص۱۴)-

د عربو دا رواج وو چه کله به د يو څو سورو قافله تله نو چه کوم سور به په منزل د کوزيدلو وخت کښې چرته قيام کول غوښتل هلته به ئې خپله کوړه غورزوله بيا به هغه ځائ د هغه ګڼرلي شو او بل چا به په هغې قبضه نه کوله. نو په دې حديث کښې د کوړې د ځائ نه مراد په حقيقت کښې دومره مختصر ځائ دې چه د کوړې غورزونکی د پاره د کوړې والا د سور د پاره به مخصوص کيدلو. کوم کښې چه هغه بستره خوره کړي يا خيمه اولګوی....
دغه شان يو دستور دا وو چه هلته به ئې کمان غورزولو اودغه شان به هغه ځائ د هغه د پاره مخصوص کيدلو نو په دې حديث کښې د کمان په ځائ د سړی منزل دې. .....(۱)

**قوله: ولوأن امرأة من أهل الجنة اطلعت إلى أهل الأرض لأضاءت ما بينهما ولملأته ريحا، ولنصيفها على رأسها خير من الدنيا وما فيها:** او که د جنت يوه ښځه هم د دنيا طرف ته اوګوری نود هغې د مينځ ټولې حصې به روښانه کړی او هغه به د خوشبوئونه ډک شی. اود هغې د سر لوپټه هم د دنيا او مافيهانه بهتر ده.
دلته د حورو صفت بيان کړيشو که يوه حوره هم دنيا ته اوګوری نود زمکې او اسمان مينځ به روښانه کړی(۲) دا د هغې د حسن بيان دې.
دوئم صفت ئې دا بيان کړو چه دنيا به خوشبويه کړی يعنی هغه چه کومه خوشبو استعمال کوی د هغې خاصيت دا دې چه هغه ټوله دنيا د خوشبوئونه ډکولې شی.
**نصيف — بفتح النون وكسر الصاد المهملة — خمار** يعنی لوپټې ته وائی. (۳)
**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د باب ترجمه سره د حديث انطباق ((**ولوأن امرأة....**)) کښې دې ځکه چه ((**الحور العين وصفتهن**)) راغلې دې او دلته ((**امرأة**)) نه مراد هم حوره ده. بيا دحورو بعض صفتونه بيان کړيشو نو يو صفت ئې دا دې ((**ولوأن امرأة من أهل الجنة اطلعت إلى أهل الأرض لأضاءت**)) دې اودبل صفت بيان ((**ولنصيفها على رأسها خير من الدنيا وما فيها**)) کښې دې.(۴)

## ۷- باب: تمني الشهادة

**سابقه باب سره ربط:** په مخکينوبابونوکښې قتال فی سبيل الله د فضيلت، اهميت او مرتبې مختلف طريقوسره بيان اوکړيشو اود شهيد د درجو وغيره ذکر کړيشوې وو. اوس په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دافرمائی چه په قتال کښې شرکت او د شهادت خواهش کول پکار دی اود دې خواهش او تمنا د نبی اکرم ﷺ نه هم ثابته ده.
**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله د دې ترجمه قائم کولو سره دا خودل غواړی چه د

۱) (معارف الحديث (ج۱ص ۶۱، ۱۶۲) کتاب الإيمان-
۲) (ارشادالساری (ج۵ص ۴۰)-
۳) (انظر عمدة القاری (۱۴ص۹۵)-
۴) (حواله بالا (ج ۱۴ص ۹۴)-

شهادت خواهش لرل جائزدى. (۱) نوامام بخارى دا ترجمه قائمه كړه او وئى خودل چه د شهادت د تمنا خو ترغيب وركړشويدې په دې وجه د دې خواهش كول جائز دى او پورته ذكر شوې توهم او اشكال ئى لرې كړيدې. د مرګ خواهش خو ممنوع دې كله چه د دنياوى مصيبتونو نه سړې تنګ شى او د مرګ خواهش كوى.(۲)

د پورتنى اشكال باره كښې دا هم وئيلې شى چه په اصل كښې ډير څيزونه داسې وى چه په قصد او بالذات صحيح نه وى خو كه تبعاً او ضمناً اوموندلې شى نو صحيح كيږى. لكه د جهاد په وخت كښې د كافرانو بچى او ښځې قتل كول جائزنه دې او نبى كريم ﷺ د دې نه منع فرمائيلې ليكن كه حملې كولو كښې پته نه وى او ضمناً ښځې هم قتل كيږى او ماشومان هم وژلې كيږى نو هيڅ مضائقه نشته، دغه شان د شهادت په خواهش كولو په ضمن كښې كه د مرګ خواهش راشى نو هم څه مضائقه نشته.

[۲۶۴۴] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْلَا أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَا تَطِيبُ أَنْفُسُهُمْ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنِّي وَلَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ تَغْزُو فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ [۲۸۱۰، ۶۷۹۹، ۶۸۰۰، وانظر: ۳۶]

## تراجم رجال

۱- ابواليمان: دا ابواليمانى حكم بن نافع حمصى بصرى رحمه الله دې.

۲- شعيب بن ابى حمزة: داابوبشر شعيب بن ابى حمزة رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذكره ((بدء الوحى)) په شپږم حديث كښې تيره شويده.(۴)

۳- الزهرى: دا محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. د دوى مختصر حالات ((بدء الوحى)) په دريم حديث كښې تير شويدى.(۵)

۴- سعيدبن المسيب: دامشهور تابعى حضرت سعيدبن المسيب قرشى مخزومى رحمه الله دې. د دوى حالات ((كتاب الإيمان باب من قال إن الإيمان هو العمل)) لاندې تيرشوى دى.(۶)

---

۱) (انظرعمدة القارى (ج ۱۴ص ۹۵)-
۲) (لامع لدرارى(ج۷ص ۳۱۲)-
۳) (قوله: أن أباهريرة رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه فى كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان انظر كشف البارى (ج۲ص ۳۰۵)-
۴) (كشف البارى (ج۱ص ۴۷۹-۴۸۰)-
۵) (كشف البارى (ج۱ص ۳۲۶)-
۶) (كشف البارى(ج۲ص ۱۵۹)-

٥- ابوهريره رضي الله عنه: دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه تفصيلي حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) په ذيل كښې راغلي دى. (١)

**قوله: قال: سمعت النبي ﷺ يقول: والذي نفسي بيده، لولا أن رجالامن المؤمنين.. في سبيل الله:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي ما دَرسول الله ﷺ نه اوريدلى هغوى ﷺ ارشاد فرمانيلو چه د الله قسم دَ چا په قبضه كښې چه زما روح دې، كه چرې داخبره نه وې چه دَ مسلمانانونه دَ څه خلقو زړه زمانه په روستوپاتې كيدو نه خوشحاليږى او ماسره هم دَ هغه خلقو دَ سوررولودپاره څه نه وى نو زه به دَ يو داسې سريه نه كوم چه دَ الله تعالى په لاركښې اوځى روستونه پاتې كيدم.

دَ حديث شريف مطلب دا دې چه دَ مسلمانانو نه دَ څه خلقو زړه دَ جهاد نه په پاتې كيدو باندې خوشحاله نه وى او هغه خلق دَ جهاد په تيارى هم قدرت نه لرى ياخود سورلئى دَ نشتوالى په وجه او يا دَ بل څه په وجه اودَ سورلئى وغيره انتظام دَ حضور ﷺ سره هم نه وو (٢) په دې وجه به رسول الله ﷺ دَ هغوى دَ زړونودَ تسلئى دپاره كله كله روستوپاتې كيدلو چه دَ هغوى زړونه خفه نشى.

دلته په حديث شريف كښې ((لاتطيب أنفسهم)) واردشويدې، دا حديث كه يوطرف ته ابوزرعه(٣) او ابوصالح (۴) نقل كړيدې نو په دې كښې ((ولولاأن أشق على أمتى)) راغلې دې.

روايت باب دَ دې نورو دوو طرق تفسير دې يعنى مشقت نه مراد دا دې چه دَ دې مسلمانانو زړونه به خفه شى ځكه چه دَ سفر آلات په غيرموجودګئى دَ وجه دَ جهاد دَ تيارى طاقت نه لرى او بله دا چه حضور ﷺ دَ پاره هم دَ هغوى انتظام كول ګران وو(٥)

دَ دې مضمون نور تائيد دَ دې طريق نه هم كيږى كوم چه همام بن منبه روايت كړيدې: ((لكن لاأجد سعة فأحملهم، ولايجدون سعة فيتبعوني، ولاتطيب أنفسهم أن يقعدوا بعدى)) (٦)يعنى ماسره دومره ګنجائش نشته چه هغوى سواره كړم، نه هغوى سره دومره ګنجائش شته چه هغوى ما سره لاړشى اودَ هغوى زړونه هم په دې خبره خوشحاله نه دى چه زمانه پس هغوى ناست وى.

**قوله: والذي نفسي بيده، لوددت أني أقتل في سبيل الله،ثم أحيا، ثم أقتل، ثم أحيا، ثم أقتل، ثم أحيا، ثم أقتل:** او قسم دى دَ هغه دَ چا په قبضه قدرت كښې چه زما ځان دې زما خواهش دې چه زه د الله تعالى په لاركښې قتل كړيشم، بيا ژوندې

---

١ ) (كشف البارى (ج١ص۶۵۹)-
٢ ) (فتح البارى(ج۶ص۱۶)-
٣ ) (صحيح البخارى(ج١ص١٠) كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان رقم (٣۶)-
٤ ) (صحيح البخارى (ج١ص٤١٧) كتاب الجهاد باب الجعائل والحملان فى السبيل رقم(٢٩٧٢)-
٥ ) (انظرفتح البارى(ج۶ص١۶)-
۶ ) (انظرالصحيح لمسلم (ج٢ص١٣٣) كتاب الإمارة، باب فضل الجهاد والخروج فى سبيل الله رقم (۴٨۶٣)

کړیشم،بیاقتل کړیشم،بیاژوندې کړیشم،بیاقتل کړیشم،بیاژوندې کړیشم،بیاقتل کړیشم.

**اشکال:** دلته دا اشکال پیداکیږی چه حضور اکرم ﷺ ته خو په یقین سره معلومه وه چه هغوی به قتل کیږی نه نوبیا هغوی داخواهش ولې اوکړو؟

**جواب:** شارحینو د دې اشکال مختلف جوابونه ورکړی دی:

① رومبې جواب دادې چه دَیوفضل اوخیر آرزو کول دَدې واقع کیدو ته مستلزم نه وی.(۱)

② دوئم جواب دا دې چه په دې کښې دَ جهاد فضیلت اودَ دې په شهادت کښې مبالغه مقصود ده. لکه چه هغوی ﷺ د جهاد فضیلت دَ مبالغې سره بیانول غوښتل او مسلمانان ئې دَ دې دَپاره تیارول.(۲)

**آیا«والذی نفسی بیده، لوددت» دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه مقوله ده:** دَ حافظ ابن حجر رحمه الله استاذ شیخ ابن الملقن رحمه الله فرمائی چه دَ بعضو خلقو دا خیال دې چه دا کلام «**لوددت أن أقتل....الخ**» مدرج فی الخیر دې اودَ کلام دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې، بیا شیخ ابن الملقن رحمه الله فرمائی «**وهوبعید**» یعنی دا دعوی بعیدازقیاس ده. (۳)

او حافظ صاحب هم دَ خپل استاذ موافقت فرمائیلې دې.(۴)

زمونږ په اسلافو کښې علامه انورشاه کشمیری رحمه الله هم دا فرمائی چه دا دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه مقوله ده او امام ترمذی رحمه الله په دې باندې تنبیه هم فرمائیلې ده. (۵)

لیکن دا دَ حضرت کشمیری رحمه الله تسامح ده ځکه چه په ترمذی شریف کښې چرته هم دَ امام ترمذی رحمه الله دَ طرف نه په دې باندې هیڅ تنبیه موجود نه ده چه هغوی دا وئیلې وی چه دا د حضرت ابوهریره رضي الله عنه کلام دې. (۶)

هاؤ دا خبره ده چه دَ بعض روایاتونه معلومیږی چه دا دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه قول نشی کیدې لکه چه امام مالك رحمه الله په موطا کښې «**عن أبي الزناد، عن الأعرج، عن أبي هريرة، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم....**» دَ صراحت نه پس دا روایت نقل کړیدې.(۷)

---

۱) (انظرفتح الباری(ج۶ص۱۷)-

۲) (حواله بالا. وعمدة القاری (ج۱٤ص۹۶) دَ حدیث نورتفصیل دَ پاره اوګورئ کشف الباری (ج۲ص۳۰۱-۳۱٤)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۱۷)-

٤) (حواله بالا-

۵) (فیض الباری(ج۳ص٤۲۳)-

۶) (بلکه معلومه دې وی چه امام ترمذی رحمه الله دَ سرنه دا روایت په خپل سنن کښې اخستې هم نه دې نو چرته په دې تنبیه اوګورئ المعجم المفهرس لألفاظ الحدیث النبوی (ج۷ص۱۶۶) وتحفة الإشراف (ج۱ص۲۰)وکشف الباری(ج۲ص۳۰۵)-

۷) (انظر الموطاللإمام مالک بن أنس (٤۶۲-٤۶۳) کتاب الجهاد باب الترغیب فی الجهاد الحدیث الثانی من الباب)-

د دې نه صفا معلومیږی چه دا مدرج فی الخبر نه دې بلکه د حضور اکرم ﷺ ارشاد دې او «كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان» كښې هم دا روايت تيرشويدې.(۱)
بهرحال په فيض البارى كښې حضرت شاه صاحب رحمه الله سره منسوب كولوسره چه دا وينا كړيشوې ده چه دا كلام مدرج فى الخبر دې صحيح نه معلوميږی.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث مناسبت دَ ترجمة الباب سره «**والذى نفس بيده لوددت انى أقتل فى سبيل الله ثم أحيى ثم أقتل الخ**» نه ظاهر دې.

[۲۶۴۵] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ الصَّفَّارُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عُلَيَّةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ(۲) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ عَنْ غَيْرِ إِمْرَةٍ فَفُتِحَ لَهُ وَقَالَ مَا يَسُرُّنَا أَنَّهُمْ عِنْدَنَا قَالَ أَيُّوبُ أَوْ قَالَ مَا يَسُرُّهُمْ أَنَّهُمْ عِنْدَنَا وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ [ر:۱۱۸۹]

## تراجم رجال

۱ يوسف بن يعقوب الصفار: دا يوسف بن يعقوب الصفار رحمه الله دې (۳) دَ دوى كنيت ابويعقوب دې (۴) د كوفې اوسيدونكې وو په دې وجه په كوفى باندې مشهور دې او دې دَ بنى هاشم آزاد كړيشوې غلام وو.(۵)
دې دَابواسحاق بن سليمان الرازى، اسماعيل بن عليه، بكربن سليم الصواف، حمادبن اسامه، عاصم بن على، عبدالرحمن بن محمد المحاربى، محمد بن اسماعيل البجلى، وكيع بن الجراح، يحيى بن سعيد الاموى او ابوبكر بن عياش رحمهم الله وغيره نه دَ حديث روايت كوى.
د دوى نه د حديث په راويانوكښې شيخين، ابراهيم بن ابى داود البرلسى، عبدالله بن احمد بن حنبل، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمى، ابو ابى الدنيا، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالكريم الرازى، عثمان بن سعيد الدارمى، ابوحاتم محمدبن ادريس الرازى او يعقوب بن شيبة رحمهم الله وغيره شامل دى.(۶)
ابوحاتم رحمه الله فرمائى «ثقة»(۷)

---

۱) (انظر كشف البارى (ح۲ص۲۹۹)-
۲) (قوله: عن أنس بن مالك رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه فى كتاب الجنائز باب الرجل ينعى إلى أهل الميت
۳) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص ٤٨٤)-
٤) (طبقات ابن سعد (ج۶ص ٤١٤)-
۵) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص٤٨٥)-
۶) (دَ شيوخ او تلامذه دَ تفصيل دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۳۲ص ٤٨٥-٤٨٦)-
۷) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص٤٨٦)-

ابوبکر بن عاصم رحمه الله فرمائی ((كان ثقة من أهل الخير)) (۱)
آجری فرمائی چه ما دَ دوی په باره کښې دَ ابوداؤد نه تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل ((ماسمعت ألاخيرا)) (۲)

ابن قانع رحمه الله فرمائی ((صالح، وليس له في البخاری سوی موضع واحد في الجهاد)) (۳)
ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړیدې او وئیلی دی ((يغرب)) (۴)
سبط ابن العجمی رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۵)
حافظ ابنِ حجر رحمه الله هم دَ دې توثیق کړیده. (۶)
شیخینو دَ هغه نه روایتونه اخستی دی. (۷)
امام بخاری رحمه الله لکه څنګه چه اوس دَ ابن قانع په حواله سره تیرشو دَ هغه نه په کتاب الجهاد کښې صرف هم دغه روایت اخستې دې.(۸)
ابوالعباس الاحول رحمه الله او حافظ موسی بن هارون رحمه الله فرمائی چه دَ هغوی وفات په کال ۲۳۱ھ کښې شوې.(۹) والله أعلم رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

۲- اسماعیل بن علیه: دا اسماعیل بن ابراهیم بن مقسم "ابن علیه بصری رحمه الله دې. دَ هغوی حالات ((کتاب الإیمان باب حب الرسول ﷺ من الإیمان)) لاندې تیرشوی دی.(۱۰)

۳- ایوب: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی رحمه الله دې. دَ هغوی تذکره ((کتاب الإیمان باب حلاوة من الإیمان)) راغلې ده. (۱۱)

۴- حمید: دا حمیدبن هلال بن هبیره عدوی بصری رحمه الله دې. (۱۲)

۵- انس بن مالک رضي الله عنه: خادم رسول حضرت انس بن مالک رضي الله عنه حالات ((کتاب الإیمان باب

۱) (حواله بالا-
۲) (حواله بالا-
۳) (تهذیب الکمال (ج۱۱ص۴۳۲)-
٤) (الثقات لابن حبان (ج۹ص۲۸۱)-
۵) (حاشية سبط ابن العجمی علی الکاشف (ج۲ص۴۰۲)-
۶) (تقریب التهذیب (ص۶۱۲) رقم الترجمة (۷۸۹۷)-
۷) (الکاشف (ج۲ص۴۰۲)رقم الترجمة (۶٤۶۱)-
۸) (نور اوګورئ خلاصة الخزرجی (ص۴٤۰) وعمدة القاری (ج۱٤ص۹۶)-
۹) (تهذیب الکمال (ج۳۲ص۴۸۶) والکاشف (ج۲ص۴۰۲)-
۱۰) (کشف الباری (ج۲ص۱۲)-
۱۱) (کشف الباری (ج۲ص۲۶)-
۱۲) (دَ دوی دَ حالات دَ پاره اوګورئ کتاب الصلاة باب یردالمصلی من مربین یدیه-

من الإيمان أن يحب لأخيه....)) لاندې تيرشوى دى. (۱)

**قوله:** قال خطب النبي صلى الله عليه وسلم فقال: أخذ الراية فأصيب، ثم أخذها جعفر فأصيب ثم أخذها عبدالله بن رواة فأصيب، ثم أخذها خالد بن الوليد عن غير إمرة ففتح له: حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائى چه نبى كريم ﷺ خطبه اولولستله او وې فرمائيل جنډه زيد بن حارثه واخستله بيا هغه شهيدشو بيا جنډا جعفر بن ابى طالب واخستله ،هغه هم شهيد شو بيا هغه عبدالله بن رواحه په لاس كښې واخستله هغه هم شهيد شو بيا هغه خالد بن وليد په لاس كښې واخستله ددې نه بغيرچه هغه چا امير جوړ كړې وى اوهغوى ته فتح وركړې شوه

دا واقعه د غزوه موته ده ددې پوره تشريح او وضاحت به انشاء الله په كتاب المغازى كښې راشى (۲)

**قوله:** وقال ما يسرنا أنهم عندنا، ، قال أيوب: أوقال: ما يسرهم أنهم عندنا، وعيناه تذرفان: او نبى ﷺاوفرمائيل زمونږ دپاره دا خبره د خوشحالۍ نه ده چه هغوى زمونږ سره وې ايوب فرمائى چه يا نبى ﷺ داسې ارشاد اوفرمائيل د هغوى دپاره دا خبره د خوشحالۍ نه ده چه هغوى زمونږ سره وې او د نبى ﷺ د سترګو نه اوښكې بهيدلې

دلته په حديث كښې د ايوب نه سختيانى مراد دې د هغوى شك دې چه نبى ﷺ څه فرمائيلى وو((مايسرنا أنهم عندنا))او كه ((مايسرهم أنهم عندنا،، وعيناه تذرفان))

په دواړو صورتونو كښې چه د حديث كوم مفهوم راوځى هغه مونږ د ترجمة الباب لاندې واضح كړو. والله اعلم

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث مناسبت دَ ترجمة الباب سره ((مايسرهم أنهم عندنا)) كښې دې، او هغه داسې چه كله هغه خلق دَ شهادت او كرامت او فضيلت مشاهده اوكړى نودَ هغوى به دا خبره خوښه نشى چه دوباره دې دنيا ته واپس شى مګرغواړى چه دوباره شهيدان شى.(۳)

## ۸-بَاب: فَضْلِ مَنْ يُصْرَعُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمَاتَ فَهُوَ مِنْهُمْ

**دَسابقه باب سره ربط:** په سابقه بابونوكښې بار بار دَ مجاهدينو او شهداء فى سبيل الله فضيلتونو ذكر راغلې دې. په دې باب كښې دَ هغه سړى دَ فضيلت او مرتبت بيان دې چه دَ الله تعالى په لاركښې دَ سورلئى نه پريوځى او مړ شى هغه هم شهيد دې او هغه ته به هم دَ

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص٤)-
۲) كشف البارى كتاب المغازى (ص،٤٧٧)
۳) (حواله بالاوفتح البارى (ج۶ص۱۷) ولامع الدرارى(ج۷ص۲۱۳)-

شهیدانو اجرملاویږی.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ ترجمة الباب مقصد بالکل واضح دې او هغه دا چه کوم سړې دَ الله تعالی په لارکښې اوځی اوهغه دَ سورلئی نه پریوځی اومړشی نوهغه ته به دَ شهیدغوندې فضیلت حاصلیږی. (۱)

دَ دې نه قطع نظرچه دَ جهاد دَ پاره تلوکښې مړشوې وی او دَ جهاد موقع هم نه وی راغلې او یا په واپسئی کښې هغه سره دا واقعه پیښه شوې وی.

دَ دې تفصیل نه معلومه شوه چه شهید صرف قتل شوې نه دې بلکه هر هغه سړې چه دَ الله تعالی په لارکښې اوځی اوهغه ته مرګ راشی نوکه هغه په کومه طریقه وی دهغه اجر پوخ دې.(۲)

**قوله:** وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ /السناء:۱۰۰/ وَقَعَ وَجَبَ: او دَ الله تعالی جل شانه ارشاد دې چه کوم سړې دَ خپل کورنه په دې نیت راوځی چه د الله تعالی او دَ هغه دَ رسول په خاطر هجرت کوم،بیاهغه مرګ راګیرکړی نوبیا هم دهغه ثواب ثابت شو دَ الله تعالی په ذمه.(۳)

**دَ آیت ذکرکولومقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ مذکوره آیت نه ترجمة الباب ثابتول غواړی کوم سړې چه دَ الله تعالی په لارکښې اوځی چه دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول طرف ته به هجرت کوم اودَ هغه دَ دین امداد او دَ هغه دپاره به جنګیږم خو په مینځ کښې هغه ته مرګ راغلو نو بیابه هم هغه ته دَ هجرت او شهادت فضیلت حاصل وی. (۴)

**ترجمة الباب سره دَ آیت مناسبت:** دَ آیت مناسبت ترجمه سره ((ثم یدرکه الموت)) کښې دې چه مرګ عام دې دَ دې نه چه قتل شی یا دَ څه سورلئی نه پریوځی او یا څه نور سبب وی. (۵)

**قوله:** وقع: وجب: امام بخاری رحمه الله شیخ ابوعبیده رحمه الله کلام دې هغوی په پورتنې آیت کښې وارد شوی لفظ ((وقع)) تفسیر ((وجب)) سره کړیدې، یعنی الله تعالی باندې دَ هغه ثواب واجب دې. (۶)

**فائده:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت انس رضی الله عنه حدیث مصداق دَ الله تعالی قول: **((ومن یخرج من بیته مهاجرا...))** کښې دی چه په دا شان موقع باندې دا آیت نازل شوې وو چه څوک دَ الله تعالی په لارکښې مړشو هغه شهید دې.

نوهغوی دَ ابن وهب.....**عن عقبة عامرالجهنی** نه مرفوعا(۷) نقل فرمائیلی دی چه رسول الله ﷺ

۱ ) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۹۶)-
۲ ) (فیض الباری (ج۳ص۴۲۳)-
۳ ) (بیان القران (ج۱حزء۲ ص ۱۵۰)-
۴ ) (فتح الباری (ج۶ص۱۸)-
۵ ) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۹۷)-
۶ ) (فتح الباری (ج۶ص۱۸)-
۷ ) (مجمع الزوائد(ج۵ص۲۸۳، ۳۰۱)-

فرمائیلي دی ((من صرع عن دابته في سبیل الله فمات فهو شهید)) (۱)
چونکه دا حدیث دَ امام بخاری رحمه الله په شرط نه پوره کیدو په دې وجه دَ دې طرف ته ئې په ترجمه کښې اشاره فرمائیلې ده. (۲)

[۲۶۳۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۳) عَنْ خَالَتِهِ أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ قَالَتْ نَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَرِيبًا مِنِّي ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَتَبَسَّمُ فَقُلْتُ مَا أَضْحَكَكَ قَالَ أُنَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ يَرْكَبُونَ هَذَا الْبَحْرَ الْأَخْضَرَ كَالْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ قَالَتْ فَادْعُ اللهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا ثُمَّ نَامَ الثَّانِيَةَ فَفَعَلَ مِثْلَهَا فَقَالَتْ مِثْلَ قَوْلِهَا فَأَجَابَهَا مِثْلَهَا فَقَالَتْ ادْعُ اللهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَقَالَ أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ فَخَرَجَتْ مَعَ زَوْجِهَا عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ غَازِيًا أَوَّلَ مَا رَكِبَ الْمُسْلِمُونَ الْبَحْرَ مَعَ مُعَاوِيَةَ فَلَمَّا انْصَرَفُوا مِنْ غَزْوِهِمْ قَافِلِينَ فَنَزَلُوا الشَّامَ فَقُرِّبَتْ إِلَيْهَا دَابَّةٌ لِتَرْكَبَهَا فَصَرَعَتْهَا فَمَاتَتْ [ر: ۲۶۳۶]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن یوسف: داعبدالله بن یوسف تینسی رحمه الله دې. دَ دوی مختصر تذکره ((بدء الوحي)) د دوئم حدیث لاندې نقل کړیشوې ده. (۴)

۲- اللیث: دا امام ابوالحارث لیث بن سعدبن عبدالرحمن فهمی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((بدء الوحي)) په دریم حدیث کښې تیرشوی دی. (۵)

۳- یحیی: دا یحیی بن سعید بن قیس انصاری مدنی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب صوم رمضان احتسابا من الإیمان)) لاندې راغلی. (۶)

۴- محمد بن یحیی بن حبان: دا محمدیحیی بن حبان رحمه الله دې. (۷)

۵- انس بن مالك رضي الله عنه: انس بن مالك رضي الله عنه تذکره ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب...)) په ذیل کښې تیرشوی دی. (۸)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۷-۱۸)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص۱۸)-
۳) (قوله: عن انس بن مالک رضی الله عنه: الحدیث قدمرتخریجه آنفافی باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء-
٤) (کشف الباری (ج۱ص۲۸۹)-
۵) (کشف الباری(ج۱ص۳۲٤)-
۶) (کشف الباری (ج۲ص۳۲۱) و کشف الباری(ج۱ص۲۳۸)-
۷) (دَ دوی دَ حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من تبرزعلی لبنتین-
۸) (کشف الباری (ج۲ص٤)-

۲- **ام حرام بنت ملحان**: حضرت ام حرام بنت ملحان رضي الله عنها تفصيلي تذکره روستو ((باب الدعاء بالجهاد والشهادة...)) په ذيل کښې مونږ نقل کړيده.
اوډ دې حديث مکمل تشريح په ماقبل کښې تيره شوې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: د حديث ترجمة الباب سره مطابقت ((فصرعتها فماتت)) کښې دې څکه چه ام حرام رضي الله عنها هم د الله تعالى په لار کښې غورزيدلې وه.(۱)

## ۹- بَاب: مَنْ يُنْكَبُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**سابقه باب سره مناسبت**: په وړاندېنی باب کښې د هغه سړی فضيلت بيان شوې وو چه د الله تعالى په لار کښې د سورلئی وغيره نه پريوځي او وفات شي او په دې باب کښې د الله تعالى په لار کښې چه د کوم سړی څه اندام زخمي شي او په وينو رنګ شي يا هغه په نيزه باندې اولګی د هغه د فضيلت ذکر دې.

**د ترجمې مقصد**: امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې د هغه سړی فضيلت بيانول غواړی د چا چه يو اندام په جهاد کښې د وينو شي يا هغه په نيزه اولګی.(۲)

**د ترجمة الباب لغوی تشريح**: دلته په ترجمه کښې دوه لفظونه راغلی دی.

۱- ينكب ۲- يطعن. ينكب نكبة نه مشتق دې او ((نكبه)) دا ده چه اندام د يو څيز په لګيدو باندې زخمي شي او د وينو شي.(۳) ((يطعن، طعن)) نه مشتق دې او ((طعن)) وائي ((القتل بالرماح)) ته يعنی څوك په نيزه باندې وهل.(۴)

[۲۶۴۷] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ إِسْحَاقَ عَنْ أَنَسٍ (۵) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْوَامًا مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ إِلَى بَنِي عَامِرٍ فِي سَبْعِينَ فَلَمَّا قَدِمُوا قَالَ لَهُمْ خَالِي أَتَقَدَّمُكُمْ فَإِنْ أَمَّنُونِي حَتَّى أُبَلِّغَهُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِلَّا كُنْتُمْ مِنِّي قَرِيبًا فَتَقَدَّمَ فَأَمَّنُوهُ فَبَيْنَمَا يُحَدِّثُهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَوْمَئُوا إِلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَطَعَنَهُ فَأَنْفَذَهُ فَقَالَ اللَّهُ أَكْبَرُ فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ ثُمَّ مَالُوا عَلَى بَقِيَّةِ أَصْحَابِهِ فَقَتَلُوهُمْ إِلَّا رَجُلًا أَعْرَجَ صَعِدَ الْجَبَلَ قَالَ هَمَّامٌ فَأُرَاهُ آخَرَ مَعَهُ فَأَخْبَرَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُمْ قَدْ لَقُوا رَبَّهُمْ فَرَضِيَ عَنْهُمْ وَأَرْضَاهُمْ فَكُنَّا نَقْرَأُ أَنْ بَلِّغُوا قَوْمَنَا

---

۱) (عمدة القاري (ج۱٤ص۹۷)-
۲) (فتح الباري (ج۶ص۱۹)-
۳) (فتح الباري (ج۶ص۱۹) وقال ابن الأثير الجزري رحمة الله في النهاية (ج۵ص۱۱۳): النكبة: وهي مايصيب الأنسان من الحوادث، فتكون أعم-
٤) (النهاية لابن الأثير (ج۳ص۱۲۷)-
۵) (قوله: عن أنس رضي الله عنه: الحديث مر تخريجه في كتاب الوتر باب القنوت قبل الركوع وبعده-

أَنْ قَدْ لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَأَرْضَانَا ثُمَّ نُسِخَ بَعْدُ فَدَعَا عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَبَنِي لَحْيَانَ وَبَنِي عُصَيَّةَ الَّذِينَ عَصَوُا اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢٦٥٩، ٢٨٩٩، ٣٨٦٠-٣٨٦٥، ٣٨٦٨-٣٨٧٠، وانظر: ٩٥٧]

## تراجم رجال

۱- **حفص بن عمر:** دا حفص بن عمر حوضی بغدادی رحمه الله دی. (۱)

۲- **همام:** دا همام بن یحیی بصری رحمه الله. (۲)

۳- **اسحاق:** دا سحاق بن عبدالله بن ابی طلحه رحمه الله دی. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب من قعد حیث ینتهی به المجلس....)) لاندې راغلی دی. (۳)

۴- **انس رضی الله عنه:** داحضرت انس بن مالک رضی الله عنه دی. دَ هغوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه....)) لاندې تیرشو. (۴)

**قوله: قال: بعث النبی صلی الله علیه وسلم أقواما من بنی سلیم إلی بنی عامر فی سبعین:** حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ بنی سلیم قبیلې اویاکسان بنوعامر قبیلې طرف ته اولیګل.

**یووهم اودهغې ازاله:** حافظ شرف الدین دمیاطی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا وهم دې ځکه چه دَ چا طرف ته ئې لیګلې وو هغه بنی سلیم دی او کوم ئې چه لیګلې وو هغه قاریان دی چه انصارو سره ئې تعلق لرلو. (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی تحقیقی خبره دا ده چه دَ کومو خلقو طرف ته دَ اویاو کسانو قاریانو جماعت روان کړیشوې وو هغه بنوعامر دی، پاتې شو بنو سلیم نو هغوی دې قاریانو سره غدرکړې وو او هغوی ئې شهیدان کړی وو. او چه دلته کوم وهم شویدې هغه دَ امام بخاری شیخ حفص بن عمر ته شویدې ځکه چه همدغه روایت امام بخاری رحمه الله کتاب المغازی کښې ((موسی بن إسماعیل عن همام)) په طریق سره نقل فرمائیلې دې په دې کښې دی ((أن النبی صلی الله علیه وسلم بعث خاله أخ لأم سلیم فی سبعین راکبا وکان رئیس المشرکین عامر بن الطفیل....))(۶) کیدیشی چه اصل عبارت داسې وو ((بعث أقواما معهم أخو أم سلیم إلی بنی عامر))

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب الیمن فی الوضوء والغسل-

۲) (دَ دوی د حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب ترک النبی صلی الله علیه وسلم والناس الأعرابی....-

۳) (کشف الباری (ج۳ص۲۱۳)-

٤) (کشف الباری (ج۲ص٤)-

۵) (فتح الباری (ج۶ص۱۹)-

۶) (الحدیث أخرجه البخاری فی کتاب المغازی باب غزوة الرجیع ورعل.... رقم (٤٠٩١)-

لیکن عبارت داسې جوړ شو من بني سلیم.(۱)

دَ دې دَپاره دا وینا چه ((بعث النبی صلی الله علیه وسلم أقوامًا من بنی سلیم إلی بنی عامر)) صحیح نه دې. (۲)

**قوله: فلما قدموا قال لهم خالي** :کله چه هغه راغلو نو زما ماما اوونیل.

((خال)) نه مراد حضرت حرام بن ملحان رضی الله عنه دې.(۳) چه دَ حضرت انس رضی الله عنه ماما او دَ حضرت ام سلیم رضی الله عنها رور دې.

**حضرت حرام بن ملحان**: دا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم جانثار صحابی حضرت حرام بن ملحان مالك بن خالدبن زیدبن حرام نجاری انصاری رضی الله عنه دې. (۴)

دا دَ بدر صحابی دې او خپل رورِ سلیم بن ملحان رضی الله عنه سره دې په غزوه بدر کښې شریك وو او په غزوه احد کښې هم هغه ته دَ شرکت شرف حاصل دې.(۵)

غزوه بئرمعونه کښې دې دَ نورو ملګرو سره حضرت منذربن عمر او عامر بن فهیره رضی الله عنهم سره په شهادت سرفراز شو او عامر بن طفیل هغوی قتل کړې وو. (۶)

علامه ابن عبدالبر رحمه الله یو قول دا هم نقل کړیدې چه دادَ بئرمعونه واقعه کښې صرف زخمي شوې وو او یو صحابيِ ضحاك بن سفیان کلابی.... چه خپل اسلام به ئې پټولو....دَ هغه دَ علاج معالجې دَ پاره دَ خپل قوم یوه ښځه حواله کړې وه، او هغه څه شعرونه وئیلې وو په څه سره چه دَ هغه حقیقت په هغې ښکاره شو او هغوی هغه قتل کړو لیکن هم ړومبې قول صحیح دې. (۷)

**قوله: فقتلوهم إلا رجل أعرج صعد الجبل** :نوهغه ټول قتل کړل بغیردَ یو ګوډسړی نه چه غرته ختلې وو. مطلب دا دې چه دې غدارانو هغه ټول قاریان صحابه کرام رضی الله عنهم شهیدان کړل دَ یو ګوډصحابی نه علاوه چه غر ته ختلې وو په دې وجه بچ شو.

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۱۹)-

۲) (دَ دې واقعې دَ تفصیل دَپاره اوګورئ کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۶۱)-

۳) (عمدة القاری(۱٤ص۹۸)-

٤) (الاستیعاب بهامش الإصابة (ج۱ص۳۵۲) ومعرفة الصحابة (ج۲۵۷)-

۵) (الاستیعاب بهامش الإصابة (ج۱ص۳۵۲)-

۶) (حواله بالا او غزوه بئر معونه تفصیل دَ پاره اوګورئ کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۶۱)-

۷) (وقیل: إن حرام بن ملحان ارتث یوم بئر معونة، فقال الضحال بن سفیان الکلابی – وکان مسلما بکتم إسلامه –لامأة من قومه: هل لک فی رجل إن صح کان نعم الراعی؟ فضمته إلیها نعالجته فسمعته یقول:

أنت عامر ترجو الهوادة بیننا ✧ وهل عامر إلا عدو مداجن

إذا مارجعنا ثم لم تک وقعة ✧ بأسیافنا فی عامر أو نطاعن

فلا ترجونا أن یقاتل بعدنا ✧ عشائرنا والمقربات الصوافن

فوثبوا علیه فقتلوه . انبر الاستیعاب بهامش الإصابة (ج۱ص۳۵۳) والإصابة (ج۱ص۳۱۹)-

«رجل أعرج» نه مراد حضرت كعب بن زيد رضي الله عنه دې او د بنودينار بن نجار سره د هغه تعلق وو. (١)

«رجل أعرج» منصوب هم لوستلې شويدې يعنى «رجلا أعرج» دلته چه كوم مرفوع نقل شويدې د هغې باره كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا د عربو د قبيلې ربعى لغت دې چه هغوى مستثنى مرفوع لولى. (٢)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمه سره مطابقت «فطعنه فأنفذه» كښې دې چه دې غدارانو نه يو سړى حضرت حرام بن ملحان رضي الله عنه په نيزه اووهلو چه د هغه د بدن نه تيروبير شوه.

[٢٦٤٨] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ جُنْدَبِ بْنِ سُفْيَانَ (٣) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي بَعْضِ الْمَشَاهِدِ وَقَدْ دَمِيَتْ إِصْبَعُهُ فَقَالَ هَلْ أَنْتِ إِلَّا إِصْبَعٌ دَمِيتِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا لَقِيتِ [٥٧٩٣]

## تراجم رجال

١- **موسى بن اسماعيل:** دا ابوسلمه موسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دې.

٢- **ابوعوانه:** دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله يشكرى رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذكره «بدء الوحي» څلورم حديث لاندې تيره شوې ده. (٤)

٣- **اسود بن قيس:** دا مشهورتابعى حضرت اسود بن قيس رحمه الله دې. (٥)

٤- **جندب بن سفيان:** دا صحابى رسول، حضرت جندب بن سفيان رضي الله عنه دې. (٦)

**قوله:** أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان في بعض المشاهد وقد دميت إصبعه: حضرت جندب بن سفيان رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په يوه غزوه

---

١ ) (فتح البارى (ج٧ص٣٨٧)-.

٢ ) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١٠٥) د حديث باب نور تفصيل او په دې كښې ذكر شوې واقعه د پاره اوګورئ كشف البارى كتاب المغازى (ص٢٦١-٢٦٨)-.

٣ ) (قوله: عن جندب بن سفيان رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج٢ص٩٠٨) كتاب الأدب باب مايجوز من الشعر والرجز والحداء ومايكره منه رقم (١٤٦) ومسلم (ج٢ص١٠٩) كتاب الجهاد والسير باب مالقى النبى صلى الله عليه وسلم من أذى المشركين والمنافقين رقم (٤٦٥٤) والترمذى فى جامعه (ج٢ص١٧٢ أبواب تفسير القرآن باب ومن سورة والضحى رقم (٤٣٣-٤٣٤)-.

٤ ) (كشف البارى(ج١ص٤٣٣-٤٣٤)-.

٥ ) (د دوى د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب العيدين باب كلام الإمام والناس فى خطبة العيد...-

٦ ) (حواله بالا-

كښې شريك ووچه د هغوى يوه ګوته د وينوشوه.

((مشاهد)) نه مراد مغازى دې اودې ته د مشاهد وئيلووجه دا ده چه غزوه د شهادت ځائ دې. (۱)

او په حديث شريف كښې بيان شوې واقعه د غزوه احد ده په كوم كښې چه د نبى كريم ﷺ يوه ګوته زخمى شوې وه. (۲)

**قوله: فقال: هل أنتِ إلا إصبع دَميت:: وفي سبيل الله مالقيت**: نو هغوى ﷺ اوفرمائيل ته خو صرف يوه ګوته ئى چه د وينوشوې او چه كوم مصيبت تاته اورسيدو هغه د الله تعالى په لاركښې اورسيدو.

**يواشكال اود هغې جوابونه**: دلته هغوى ﷺ يو شعر اوفرمائيلو او په قرآن كريم كښې د رسول الله ﷺ په صفت كښې راغلې دى ﴿وماعلمناه الشعروماينبغى له﴾ (۳) مونږ هغه ته نه د شعر تعليم وركړې او نه شعر وئيل د هغوى دپاره مناسب دى.

د دې اشكال مختلف جوابونه وركړيشوى دى:

① علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا رجز دې او رجز شعر نه دې لكه چه امام اخفش رحمه الله مذهب دې. ځكه چه رجز ويونكى ته "راجز" خو وائى مګر شاعر نه، د دې دپاره چه په شعر كښې دا ضرورى دى چه هغه بيت تام وى او د عروض مسلمه وزنونو مطابق مقفى وى، دغه شان دا هم ضرورى دى چه د شعر وئيلو اراده ئى هم كړې وى، اتفاقى توګه باندې د ژبې وتلې شوى مقفى عبارت ته شعر نشى وئيلې. (۴)

② بعض حضراتوآيت شريف ﴿وماعلمناه الشعر﴾ باره كښې فرمائيلى دى چه په دې كښې د مشركين مكه د دې قول رد دې كوم كښې چه هغوى حضور ﷺ ته شاعر ګرځولې وو، اودا ښكاره ده چه چه هغه په معروف معنى كښې شاعر وو او نه شعر وئيل د هغوى معمول وو.

③ اوكه د حضور پورته ذكر شوې كلام شعر هم اومنلې شى نو وئيلې به شى چه د هغوى په حق كښې انشاء شعر ممنوع دې انشاد شعر نه. او انشاء شعر او انشاد شعر دوه جدا جدا څيزونه دى. شاعر هغه وى چه د شعر جوړول كوى، د تشبيب اشعار وائى، مدح او ذم كوى او د فن مختلف شكلونه ښائى خو الله تعالى خپل رسول ﷺ د دې نه برى ساتلې اود هغه د مرتبې حفاظت ئى كړيدې. (۵)

په دې باره كښې نور تفصيل انشاء الله ((كتاب الأدب باب مايجوز من الشعر)) كښې راځى.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: ترجمة الباب سره د حديث مناسبت ((وقد دميت أصبعه))

---

۱) (عمدة القارى (ج ١٤ص٩٩)-

۲) (حواله بالا وشرح الكرمانى (ج١٢ص ١٠٦)-

۳) (يس:٦٩-

٤) (شرح الكرمانى(ج١٢ص١٠٦)-

٥) (حواله بالا وشرح ابن بطال (ج٥ص١٩-٢٠)-

كښې دى چه د هغوى ﷺ كوته مباركه د كانړى لګيدو په وجه زخمى شوې وه. (١)

## ١٠- باب: مَنْ يُجْرَحُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله د الله تعالى په لاركښې زخمى كيدونكى سړى فضيلت ښائى (٢)

د الله تعالى په لاركښې زخم راتلو لوئ د فضيلت خبره ده، د الله تعالى په نزد د دې ښكلى خوشبو وى او د دې نه چه كومه وينه وتلې وى د هغې به هم ډير عظمت وى ليكن شرط دا دى چه هغه زخم د الله تعالى په لاركښې لګيدلې وى. نو چه كوم سړې د الله تعالى په لاركښې د جهاد د پاره په خلوص سره ځى د هغه دافضيلت دې اوكه د رياكارنى او ځان خودلو د پاره ځى نو ښكاره خبره ده چه هغه په دې كښې شامل نه دې.

[٢٦٤٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (٣) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُكْلَمُ أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَاللَّوْنُ لَوْنُ الدَّمِ وَالرِّيحُ رِيحُ الْمِسْكِ [ر: ٢٣٥]

## تراجم رجال

١- **عبدالله بن يوسف:** دا عبدالله بن يوسف دمشقى تنيسى رحمه الله دې.

٢- **مالك:** دا امام مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دې. د ددې دواړو حضراتو تذكره ((بدء الوحى)) دوئم حديث كښې راغلى دى.(٤)

٣- **ابى الزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله دې.

٤- **اعرج:** داعبدالرحمن بن هرزمزالاعرج رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو حالات ((كتاب الإيمان باب حب الرسول ﷺ من الإيمان)) په ذيل كښې تيرشوى دى.(٥)

٥- **ابوهريره رضي الله عنه:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې ښه تفصيل سره تيرشوى دى. (٦)

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ٩٩)-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٠٠)-
٣) (قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه فى كتاب الطهارة باب ما يقع من النجاسات فى السمن والماء-
٤) (كشف البارى (ج ١ ص ٢٨٩-٢٩٠) امام مالك د پاره نور اوګورئ كشف البارى (ج ٢ ص ٨٠)-
٥) (كشف البارى (ج ٢ ص ١٠-١١)-
٦) (كشف البارى (ج ١ ص ٦٥٩)-

**دحديث ترجمه:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلى چه د هغه ذات قسم دَ چا دَ قدرت په قبضه كښې چه زما ځان دې، يو سړې هم دَ الله تعالى په لاركښې نه زخمى كيږى او الله تعالى ته ښه پته ده چه دَ هغه د پاره څوك زخم خورى مگر دا چه دَ قيامت په ورځ به داسې حال كښې راځى چه رنګ خو به هم دَ وينې وى ولې دينه تلونكې خوشبو به د مشك وى.

په حديث شريف كښې دَ الله تعالى په لاركښې دَ زخمى كيدونكى سړى فضيلت بيانيږى چه دَ الله تعالى په لاركښې زخمى كيدونكې به دَ قيامت په ورځ په دې داسې حال كښې دَ الله تعالى په درباركښې حاضريږى چه دَ الله تعالى دَ پاره وركړيشوې قربانى به دَ هغه په بدن باندې وى او هغه به دَ وينو رنګ بدن واخلى او دَ الله تعالى په درباركښې به حاضريږى اود هغه وينې نه به دَ وينې بوئ نه دَ مشك خوشبو روانه وى.

**په حديث كښې كوم زخم مراد دې؟:** «فى سبيل الله»: نه مراد خو هم جهاد دې چه زخمى شوې خو په جهاد كښې وى ليكن لفظ هر هغه زخم ته شامل دې چه دَ الله تعالى دَپاره لګيدلې وى او هغه ته هم كوم كښې چه سړې دَ خپل حق دفاع كولو سره زخمى شى.(۱)

اودَ دې خبرې هم احتمال دې چه د زخم نه مراد هغه زخم وى دَ كوم د وجه نه چه دَ زخم جوړيدونه وراندې سړې مړ شى، نه هغه زخم چه په دنياكښې جوړ شوې وى ځكه چه دَ زخم جوړيدونه زخم اودَ وينې بهيدلو اثر آخر ختم شى ليكن دا دَ دې خبرې نفى نه كوى چه د زخم دَ جوړيدو په صورت كښې هغه ته هيڅ فضيلت نه حاصليږى خو ظاهر خو هم دغه دى چه دلته هغه سړې مراد دې چه دَ قيامت په ورځ په داسې حالت كښې حاضر شى چه دَ هغه دَ زخم نه وينه بهيږى او دا په هغه وخت كښې ممكن دى چه كله دَ دنيا نه دَ رخصت كيدو په وخت زخم په خپل حالت باندې وى.(۲)

ددې مضمون تائيد دَ دې حديث شريف نه هم كيږى كوم چه علامه هيثمى رحمه الله دَ حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كړيدې. دې كښې دى: «عليه طابع الشهداء»(۳) په دې به دَ شهداؤ مهر وى او مهر دا زخم دې كوم نه چه وينه بهيږى.

**قوله:** والله أعلم بمن يكلم فى سبيله: او هم الله تعالى ته معلومه ده چه څوك په دې لاركښې زخمى كيږى.

دا په حديث كښې جمله معترضه ده، دينه مقصود دا دې چه دَ نيت اخلاص هم وى، زخمى كيدل صرف دَ الله تعالى دَ پاره وى رياكارئى دَ پاره نه وى نو ده ته به داثواب ملاويږى ګنى نو نه به ملاويږى. (۴)

علماء ليكى دى چه شهيد به په هم دغه حالت كښې كوم كښې چه شهيد شوې وى دَ

---

۱) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۰۰) وشرح ابن بطال (ج۵ص۲۰)-
۲) (فتح البارى (ج۶ص۲۰)-
۳) (مجمع الزوائدللهيثمى(ج۵ص۲۹۷)-
٤) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۰۰)-

اوچتولو حکمت دا دې چه د هغه سره د خپل فضیلت گواهی او سند هم وی چه هغه خپل ځان د الله تعالی په تابعدارئی کښې قربان کړې وو. (۱)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمه سره مناسبت ((لایکلم أحد فی سبیل الله الخ)) کښې دې ښکه چه دَ کلم معنی هم جرح ده. (۲)

دَ باب په حدیث کښې په صراحت سره دَ الله تعالی په لارکښې زخمی کیدلو فضیلت، مرتبه او ثواب بیان کړیشویدې.

## ۱۱- بَاب: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ

**ماقبل سره ربط:** په وړاندینویابونوکښې امام بخاری رحمه الله په مختلفو طریقو سره دَمجاهد او شهید فضیلت او اهمیت بیانولو، په دې باب کښې امام صاحب دا خودل غواړی چه مجاهد بهر حال کامیاب دې که هغه دَ جنگ دَ میدان نه غازی راشی یا دَ الله تعالی په لارکښې شهید شی.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَ ترجمه مقصد دا دې چه کوم خلق جهاد ته ځی هغوی ته دوو خوبیانو کښې یوه ضرور ملاویږی که هغه کټه بیامومی او کامیاب شی نو هغوی ته الله تعالی اجر ورکوی او بعض وخت غنیمت هم ملاویږی او ثواب خو بهر حال ملاویږی او که چرې هغه شهید شی نودَ شهادت اوچت او عظیم منصب هغه ته ملاویږی. (۳)

**قوله:** والحرب سجال :اوجنگ دَ ډولچودَ راښکلوغوندې دې.

دَ دې جملې پوره تشریح خو تیره شویده. (۴)

خودلته د دې د ذکر کولو مقصد دا بیانول دی چه جنگ د ډولونو د راښکلو پشان ده لکه څنگه چه په کوهی باندې ډول وی چه د یوې ډلې په لاس کښې وی نو بله ډله انتظار کوی دغه شان ددې په عکس ،دغه شان د جنگ حال هم دې چه کله یوه ډله غالبه راشی اوکله بله ،نو که مسلمانانو ته غلبه حاصله شی نو دوی ته فتح حاصله شوه اوکه مشرکانو او کافران غالب شول نومسلمانانو ته به د شهادت مرتبه ملاؤ شی مسلمانان په هرحال کښې کامیاب دی

**دَمذکوره جمله آیت سره ربط:** آیت مبارک کښې ((الحرب سجال)) مناسبت واضح دې دَ دې دَ پاره ((حُسْنَيَيْن)) نه مراد ظفراو شهادت دې او مذکوره جمله دواړو معنوته متضمن ده. (۵)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ ص۲۰)-
۲) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۰۰)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۰۰) وشرح ابن بطال (ج۵ص۲۱)-
۴) (انظر کشف الباری (ج۱ص۵۰۰)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۰۱)-

[۲۶۵۰] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ(۱) أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ قَالَ لَهُ سَأَلْتُكَ كَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ فَزَعَمْتَ أَنَّ الْحَرْبَ سِجَالٌ وَدُوَلٌ فَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلَى ثُمَّ تَكُونُ لَهُمُ الْعَاقِبَةُ [ر:۷]

## تراجم رجال

۱- يحيى بن بكير: دا يحيى بن عبدالله بن بكيرمخزومى رحمه الله دي.

۲- الليث: داابوالحارث ليث بن سعدبن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دي. دَ دې دواړو حضراتو حالات ((بدءالوحى)) دريم حديث كښې راغلى. (۲)

۳- يونس: دا ابويزيديونس بن يزيد ايلى قرشى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره ((كتاب العلم باب من يردالله به خيرا يفقهه فى الدين)) لاندې تيره شويده. (۳)

۴- ابن شهاب: دا محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. دَ دوى حالات مختصراً ((بدءالوحى)) دَ دريم حديث په ذيل كښې راغلى دى. (۴)

۵- عبيدالله بن عبدالله: داابوعبدالله عبيدالله بن عبدالله هذلى رحمه الله دي. دَ دوى حالات ((كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير؟)) په ذيل كښې نقل شوى. (۵)

۶- عبدالله بن عباس: حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات ((بدءالوحى)) څلورم حديث او ((كتاب الإيمان باب كفران العشير...)) كښې تيرشوى دى. (۶)

۷- ابوسفيان: دا مشهور صحابى ابوسفيان صخربن حرب بن اميه رضي الله عنه دي. دَ دوى حالات ((بدءالوحى)) شپږم حديث لاندې راغلى دى. (۷)

دَ دې حديث مكمل تشريح ((بدءالوحى)) شپږم حديث لاندې تيره شوې ده. (۸)

---

۱ ) (قوله: أن عبدالله بن عباس رضى الله عنهما: تقدم تخريجه فى أول الكتاب (بدءالوحى) انظر كشف البارى) ج۱ص۴۷۷) الحديث السادس-
۲ ) (كشف البارى (ج۱ص۳۲۳-۳۲۴)-
۳ ) (كشف البارى (ج۳) وكشف البارى (۱ص۴۶۳)-
۴ ) (كشف البارى (ج۱ص۳۲۶)-
۵ ) (كشف البارى (ج۳) و كشف البارى (ج۱ص۴۶۶)-
۶ ) (كشف البارى (ج۱ص۴۳۵) و (ج۲ص۲۰۵)-
۷ ) (كشف البارى (ج۱ص ۴۸۰)-
۸ ) (انظر كشف البارى (ج۱ص۴۷۷) الحديث السادس-

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د ترجمة الباب نه د حدیث مطابقت او مناسبت په قول د علامه عینی رحمه الله ((فزعمت أن الحرب بینکم سجال)) کښې دی اوداخبره مونږ اول ذکرکړیده چه (حسنیین) کښې (الحرب سجال) معنی موندلې شی اودادواړه د یوبل معنی ته متضمن دی.(۱)

**د علامه ابن المنیر ارشاد:** علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث دلته ((وکذلك الرسل تبتلی ثم تکون لهم العاقبة)) په وجه ذکرکړیدې. هغه فرمائی چه هم په دې صورت کښې ((إحدی الحسنیین)) معنی متحقق او حاصل وی، د دې دپاره که چرې رسولانو فتح او غلبه حاصله کړه نو دنیا او آخرت به هم د ذوی وی او که د هغوی دښمنانو ته فتح اونصرت حاصل شو نو د رسولانودپاره به آخرت وی اودا خومعلومه ده چه آخرت د دنیانه بهتردې.(۲)

**دحافظ صاحب توجیه:** حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چه د ابن المنیر رحمه الله دا قول د اولنی قول نفی کوی اونه د هغې معارض دې بلکه ظاهره همدغه ده چه رومبنې قول ډیرمناسب او اولې دې ځکه چه په دې کښې دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم دحال نقل ابوسفیان رضی الله عنه کوی خود هرقل وینا خود مختلفو زړوکتابونونه اخذ شویده او هم د دغه کتابونو په اعتماد باندې مبنی ده.(۳)

**فائده:** علامه قزاز رحمه الله فرمائی چه د ((دول)) دال مثلثه دې اوعرب دیته دُول، دَول او دِول لولی. ((العرب تقول: الأیام دُول ودَول ودِول: ثلاث لغات)) (۴)

## ۱۲- بَاب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضٰى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا [الأحزاب: ۲۳]

**ماقبل سره مناسبت:** په تیروشوو بابونوکښې په جهاد کښې شرکت اود دې د فضیلت بیان وو، په دې باب کښې په میدان جنګ کښې د کلك اودریدو ذکردې. ځکه چه دجهاد فضیلت په ثابت قدمئی او د ثبات قلبئی په ذریعه حاصلیدیشی. ګنی دا شرکت د وبال صورت هم اختیارولې شی چه اوتختی، اوبیا د دنیا اوآخرت دخسارې موجب جوړ شی.

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته په باب کښې دا خودلی دی چه سړې الله تعالی سره د دې خبرې عهد اوکړی چه زه به د جهاد د پاره ځم اود الله تعالی په لارکښې به جنګ کوم، نو هغه له په دې باندې کلك اودریدل هم پکاردی ځکه چه الله تعالی د داسې خلقو تعریف، توصیف او مدح فرمائیلې ده.

---

۱) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۰۱) وفتح الباری (ج۶ص۲۱)-

۲) (المتواری (ص۱۵۰)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۲۱)-

۴) (حواله بالا وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۰۱)-

[۲۶۵۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَعِيدٍ الْخُزَاعِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا قَالَ ح و حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ حَدَّثَنَا زِيَادٌ قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ عَنْ أَنَسٍ (۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ غَابَ عَمِّي أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَنْ قِتَالِ بَدْرٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ غِبْتُ عَنْ أَوَّلِ قِتَالٍ قَاتَلْتَ الْمُشْرِكِينَ لَئِنِ اللَّهُ أَشْهَدَنِي قِتَالَ الْمُشْرِكِينَ لَيَرَيَنَّ اللَّهُ مَا أَصْنَعُ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ وَانْكَشَفَ الْمُسْلِمُونَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعْتَذِرُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ هَؤُلَاءِ يَعْنِي أَصْحَابَهُ وَأَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ هَؤُلَاءِ يَعْنِي الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ تَقَدَّمَ فَاسْتَقْبَلَهُ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ يَا سَعْدُ بْنَ مُعَاذٍ الْجَنَّةَ وَرَبِّ النَّضْرِ إِنِّي أَجِدُ رِيحَهَا مِنْ دُونِ أُحُدٍ قَالَ سَعْدٌ فَمَا اسْتَطَعْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا صَنَعَ قَالَ أَنَسٌ فَوَجَدْنَا بِهِ بِضْعًا وَثَمَانِينَ ضَرْبَةً بِالسَّيْفِ أَوْ طَعْنَةً بِرُمْحٍ أَوْ رَمْيَةً بِسَهْمٍ وَوَجَدْنَاهُ قَدْ قُتِلَ وَقَدْ مَثَّلَ بِهِ الْمُشْرِكُونَ فَمَا عَرَفَهُ أَحَدٌ إِلَّا أُخْتُهُ بِبَنَانِهِ قَالَ أَنَسٌ كُنَّا نُرَى أَوْ نَظُنُّ أَنَّ هَذِهِ الْآيَةَ نَزَلَتْ فِيهِ وَفِي أَشْبَاهِهِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ

## تراجم رجال

۱- محمد بن سعيد الخزاعي: دامحمد بن سعيد بن الوليد خزاعي رحمه الله دې. دَ دوی كنيت ابوعمرو یاابوبکر دې ،د بصرې اوسيدونکي وو (۲) او مردويه دَ هغه لقب دې. (۳)

دوی دَ عبدالاعلى بن عبدالاعلى، زياده بن الربيع، خالد بن الحارث، زكريا بن يحيى بن عمارة، عون بن عمرو القيسى، هشام بن محمد بن کلبی او ابوتميله رحمهم الله وغيره نه دَ حديث روايت کوی.

دَ دوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، امام ابوزرعه، ابوحاتم، حرب بن اسماعیل ،یعقوب بن سفیان، محمدبن ابراهیم بن سعید البوشنجی، محمدبن غالب تمتام، محمدبن یوسف بن الترکی او احمدبن محمد الاصبهانی رحمهم الله وغیره شامل دی.(۴)

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ((كان ثقة صدوقا)) (۵)

---

۱) (قوله: عن أنس رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج۲ص۵۷۹) كتاب المغازى باب غزوة أحدرقم (۴۰۴۸) وفى (ج۲ص۷۰۵) كتاب التفسير باب ﴿فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر، وما بدلواتبديلاً﴾ رقم (۴۷۸۳) ومسلم (ج۲ص۱۳۹) كتاب الإمارة باب ثبوت الجنة للشهيد رقم (۴۹۱۸) والترمذى (ج۲ص۱۵۵) أبواب تفسير القرآن باب ومن سورة الأحزاب رقم (۳۲۰۰)-

۲) (تهذيب الكمال (ج۲۵ص۲۷۷-۲۷۸)-

۳) (فتح البارى (ج۶ص۲۲)-

۴) (شيوخ وتلامذه تفصيل دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۵ص۲۷۸)-

۵) (تهذيب الكمال (۲۵ص۲۷۹)- سبط ابن العجمى رحمه الله فرمائى ((ثقة))) (حاشية سبط ابن العجمى على الكاشف (ج۲ص۱۷۵)-

دارقطنی رحمه الله فرمائی «ثقة» (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة» (۲)

ابن حبان رحمه الله هغوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړیدې. (۳)

په اصحاب اصول سته کښې صرف امام بخاری رحمه الله د دوی نه روایتونه اخستې دی. (۴)

او هغه هم صرف په دوو موقعویاندې، یو دلته او بل کتاب المغازی کښې. (۵)

دَ هغه انتقال په کال ۲۳۰ھ کښې شوې. (۶) رحمه الله رحمة واسعة.

۲- **عبدالاعلی**: داعبدالاعلی بن عبدالاعلی السّامی رحمه الله دې. (۷)

۳- **عمروبن زرارة**: دا عمرو بن زرارة واقدهلالی رحمه الله دې. (۸)

۴- **زیادبن عبدالله العامری البکائی**: دا زیاد بن عبدالله بن الطفیل رحمه الله دې. (۹)

ابومحمد د هغوی کنیت دې. (۱۰) دوی د بنوعامر بن صعصعه شاخ بنوالبکاء سره تعلق لرلو په دې وجه هغوی ته العامری او البکائی وائی. (۱۱) دکوفې اوسیدونکې وو په دې وجه کوفی به ئې ورته وئیل. (۱۲)

دوی دَ عبدالملک بن عمیر، حمیدالطویل، عاصم الاحوال، اعمش، منصور، حصین، محمد بن اسحاق، یزید بن ابی زیاد اوحجاج بن ارطاة رحمهم الله وغیره نه روایت حدیث کوی.

اودَ هغه نه روایت کونکوکښې امام احمد بن حنبل، احمدبن عبدة الضبی، ابوغسان النهدی، اسماعیل بن توبه، سهل بن عثمان، یوسف بن حماد، عمروبن زرارة، عبدالملک بن هشام السدوسی النحوی، عبدالله بن سعید بن ابان الاموی رحمهم الله وغیره شامل دی. (۱۳)

امام وکیع بن الجراح رحمه الله فرمائی «هوأشرف من أن یکذب فی الحدیث» (۱۴)

---

۱) (حاشیة تهذیب الکمال (ج۲۵ص۲۷۹)-
۲) (تقریب التهذیب (ص۴۸۰)-
۳) (الثقات لابن حبان (ج۹ص ۶٤)-
٤) (تهذیب التهذیب (ج۹ص۱۶۰)-
۵) (فتح الباری(ج۶ص۲۲)-
۶) (تهذیب التهذیب (ج۹ص۱۹۰)-
۷) (دَ دوی دَحالاتودَپاره اوګورئ کتاب الغسل باب إذاذکر فی المسجد أنه جنب....-
۸) (دَ دوی دَحالاتودَپاره اوګورئ. کتاب الصلاة أبواب سترة المصلی باب قدرکم ینبغی أن یکون...-
۹) (تهذیب الکمال (ج۹ص٤۸۵)-
۱۰) (طبقات ابن سعد(ج۶ص۳۹۶)-
۱۱) (الأنساب للسمعانی (ج۱ص۳۸۲)-
۱۲) (سیرأعلام النبلاء (ج۹ص۵)-
۱۳) (شیوخ او تلامذه تفصیل دَپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۹ص٤۸۶-٤۸۷)-
۱٤) (تهذیب الکمال (ج۹ص٤۸۷) وحاشیة سبط ابن العجمی علی الکاشف (ج۱ص٤۱۱)-

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى ((ليس به بأس حديثه حديث أهل الصدق)) (۱)

دغه شان امام ابوداود رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ هغوى باره كښې نقل كوى: ((ما أرى كان به بأس كان ابن إدريس حسن الرأى فيه....كان صدوقا)) (۲)

ابوزرعه رحمه الله فرمائى ((صدوق)) (۳)

ابن عدى رحمه الله فرمائى ((ولزياد بن عبدالله.... أحاديث صالحة وقد روى عنه الثقات من الناس وما أرى برواياته بأسا)) (۴)

ابن حبان رحمه الله فرمائى ((كان فاحش الخطأ كثير الوهم، لايجوز الاحتجاج بخبره إذا انفرد وأما فيما وافق الثقات فى الروايات فان اعتبر بها معتبر فلاضير... وكان يحيى بن معين سئ الرأى فيه)) (۵) ابوحاتم رحمه الله فرمائى ((يكتب حديثه ولايحتج به)) (۶)

امام نسائى رحمه الله فرمائى ((ضعيف)) دغه شان يو بل ځائ كښې فرمائيلى ((ليس بالقوى)) (۷)

ابن سعد رحمه الله فرمائى ((....وكان عندهم ضعيفا، وقد حدثوا عنه)) (۸)

عبدالله بن على ابن المدينى رحمه الله فرمائى ((سألت أبى عنه فضعفه)) (۹)

دغه شان على ابن المدينى رحمه الله فرمائى ((كتبت عنه شيئا كثيرا، وتركته)) (۱۰)

امام ترمذى رحمه الله فرمائى ((كثير المناكير)) (۱۱)

امام عقيلى رحمه الله هغه ((الضعفاء الكبير)) كښې ذكر كړيدې. (۱۲)

تاسو دَ زياد بن عبدالله متعلق اقوال جرح او تعديل اوكتل چه بعضو محدثينو دَ هغوى توثيق او تعديل كړيدې نو بعضو تضعيف او تجريح، تردې چه ابن حبان رحمه الله چه په خپل

---

۱) (تهذيب الكمال (ج۹ص۴۸۷)-
۲) (حواله بالا-
۳) (سير أعلام النبلاء (ج۹ص۶۱)-
٤) (الكامل لابن عدى (ج۳ص۱۹۳)-
۵) (تعليقات تهذيب الكمال (ج۹ص۴۸۹)-
۶) (تهذيب الكمال (ج۹ص۴۸۸)-
۷) (حواله بالا-
۸) (طبقات ابن سعد (ج۶ص۳۹۶)-
۹) (تهذيب الكمال (ج۹ص۴۸۸)-
۱۰) (حواله سابقه-
۱۱) (سير أعلام النبلاء (ج۹ص۶)-
۱۲) (الضعفاء الكبير (ج۲ص۷۹-۸۰)-

تساهل کښې معروف دې هغه هم د دوی باره کښې ((فاحش الخطأ)) او ((کثیرا لوهم)) غوندې الفاظ استعمال کړی دی خو دلته د پوهې خبره دا ده چه :

① زیادبن عبدالله مطلقا ضعیف نه دې، بعض حضراتو د هغوی توثیق هم فرمائیلې.

② امام بخاری رحمه الله د هغوی دا حدیث د مغازی او جهاد په باب کښې ذکر کړې او زیاد بن عبدالله مغازی کښې ثقه دې. نو حافظ صالح بن محمد رحمه الله فرمائی:

((لیس کتاب المغازی عند أحد أصح منه عند زیاد البکائی، وزیاد فی نفسه ضعیف، ولکن هو من أثبت الناس فی هذا الکتاب، وذلک أنه باع داره وخرج یدور مع ابن إسحاق حتی سمع منه الکتاب)) (١)

یعنی د زیاد بکائی نه زیات صحیح کتاب المغازی بل چا سره نشته. هغه اګرچه فی نفسه ضعیف دې لیکن دې کتاب (المغازی) کښې هغه د ټولونه زیات د اعتماد قابل دې. د دې وجه دا ده چه هغه خپل کور خرڅ کړو او محمدبن اسحاق سره سره اوسیدو، تر دې چه د هغه نه ئې ټول کتاب واوریدو.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی: ((سمعت یحیی بن معین یقول: زیاد البکائی فی ابن إسحاق ثقة، کأنه یضعفه فی غیره)) (٢)

دغه شان عثمان بن سعید رحمه الله فرمائی ((سألته عن البکائی ؟ فقال: لا بأس به فی المغازی وأما فی غیره فلا)) (٣) نورفرمائی ((سألت یحیی قلت: عمن أکتب المغازی ممن یروی عن یونس أو غیره؟ قال: اکتبه عن أصحاب البکائی))

او یحیی بن آدم رحمه الله ابن ادریس رحمه الله نه نقل کوی چه هغوی فرمائیلی دی ((ما أجد أثبت فی ابن إسحاق منه، لأنه أملی علیه إملاءً مرتین)) (۴)

او صالح جزری رحمه الله فرمائی: ((هو علی ضعفه أثبتهم فی المغازی)) (۵)

د دې ټولو اقوالونه دامعلومه شوه چه زیاد بن عبدالله البکائی اګرچه ضعیف دې لیکن ((مغازی)) کښې ثقه دې.

③ امام بخاری رحمه الله اګرچه د هغه روایت نقل کړیدې لیکن متابعةً او د عبدالاعلی بن عبدالاعلی روایت سره (مقرونا) ذکرکړیدې او بیا په بخاری کښې همدغه یو روایت دې. (۶)

---

١ ) (تهذیب الکمال (ج٩ص٤٨٩)-
٢ ) (تاریخ عثمانی بن سعیدالدارمی (ص١١٤)-
٣) تاریخ عثمان بن سعید الدارمی (ص.١١٤)
٤ ) (تهذیب الکمال (ج٣ص٣٧۶)-
٥ ) (الکاشف (١ج٤١١)-
۶ ) (هدی الساری (٤٠٤)-

هغه د بخاری نه علاوه د مسلم، ترمذی او ابن ماجه هم راوی دې. (۱)

دهارون الرشید په زمانه کښې په کال۱۸۳ھ کښې دهغوی انتقال اشو(۲) رحمه الله رحمة واسعة.

۵- حمید الطویل: دا ابوعبیده حمید بن ابی حمید خزاعی بصری رحمه الله دې. د هغوی حالات ((کتاب الإیمان، باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله.....)) لاندې تیر شوی دی. (۳)

۶-انس رضی الله عنه: دا مشهورصحابی حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. د دوی حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه.....)) په ذیل کښې راغلی دی.(۴)

قوله: قال: غاب عمی أنس بن النضر عن قتال بدر: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه زما تره انس بن النضر د بدر د میدان نه غائب وو، دلته غیبوبت نه مراد تخلف دې یعنی روستو پاتې شوې وو، دا مطلب نه دې چه هغه بدرکښې شریك شوې وو او غائب شوې وو.(۵)

حضرت انس بن النضر رضی الله عنه: دا حضرت انس بن مالك رضی الله عنه تره حضرت انس بن النضر بن ضمضم بن زید بن حرام بن جندب انصاری خزرجی رضی الله عنه دې. (۶)

د ده نه حضرت سعد بن معاذ او حضرت انس رضی الله عنه د حدیث روایت کوی.(۷)

دې په غزوه احد کښې شهید شو او د شهادت په وخت کښې د هغوی په بدن باندې د اتیاؤ(۸۰) نه زیات زخمونه وو او مشرکانو د هغه مثله هم جوړه کړې وه. کما فی حدیث الباب.

قوله: فقال: یارسول الله غبت عن أول قتال قاتلت المشرکین لئن الله أشهدنی قتال المشرکین لیرین الله ما أصنع: ابن النضر رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اووئیل یا رسول الله! زه د دې اول جنګ نه کوم چه تاسو مشرکانو سره قتال اوکړو غائب پاتې ووم، اوس که الله تعالی د مشرکانو خلاف قتال کښې ماته د حاضرئی موقع راکړه نوالله تعالی به اوګوری چه زه څه کوم؟

((أول قتال)) نه مراد غزوه بدر ده ځکه چه دا ړومبئی غزوه وه په کوم کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم بنفس نفیس شرکت فرمائیلې وو.(۸)

---

۱) (الکاشف (۱ص۴۱۱)-
۲) (طبقات ابن سعد(۶ص۳۹۶)-
۳) (کشف الباری (ج۲ ص۵۷۱)-
٤) (کشف الباری(ج۲ص ٤)-
۵) (فیض الباری(ج۳ص ٤۲٤)-
۶) (الأصابة (ج۱ص ۷٤) والإستیعاب بهامش الإصابة (ج۱ص۷۱) ومعرفة النصحابة (ج۱ص ۲۲٤)-
۷) (معرفة الصحابة (ج۱ص۲۲۳)-
۸) (عمدة القاری (ج ١٤ص۱۰۳)-

**قوله:** فلما كان يوم أحد وانكشف المسلمون، قال: اللهم إني اعتذر إليك مما صنع هؤلاء، يعني أصحابه، وأبرأ إليك مما صنع هؤلاء، يعني المشركين، ثم تقدم، فاستقبله سعد بن معاذ: نو چه كله جنګ احد اوشو مسلمانان اخوا شو نوهغوى اوفرمائيل اې الله! زه د خپلو ملګرو طرف نه څه چه هغوى اوكړه په هغې باندې ستا په وړاندې معذرت كوم او زه د برات اظهاركوم د دې مشركانو د حركاتو نه، بيا هغه وړاندې شو نو حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه سره د هغه مخامختيا اوشوه.

((انكشف المسلمون)) كښې د عبارت حسن اوګورئى ((انكشف)) ئى اوفرمائيلو يعنى اخوا شو او ((انهزم)) ئى اونه وئيل چه مسلمانانو شكست اخوړلو.(١)

**قوله:** فقال: ياسعد بن معاذ، الجنة ورب النضر، إني أجد ريحها من دون أحد: وئى فرمائيل اې سعد بن معاذ! چرته؟ د نضر د رب قسم! جنت خو زما مطلوب دې زه خود احد د خوانه د جنت خوشبو محسوسوم.

((الجنة)) يا خو منصوب دې نو د عبارت تقديربه داسې وى ((أريد الجنة)) يا مرفوع او د مرفوع كيدو په صورت كښې تقدير عبارت ((مطلوبي الجنة)) به وى.(٢)

((نضر)) نه مراد يا خو د هغه پلار دې او داهم احتمال دې چه نضر د هغه ځوئ وى نو د هغه يو ځوئ هم وو چه د هغه نضر نوم وو. (٣)

ابن بطال رحمه الله فرمائى چه حضرت انس بن النضر رضي الله عنه قول ((إني أجد ريحها من دون أحد)) كښې دوه احتماله دى:

① چه د هغوى داقول په حقيقت باندې محمول وى چه د جنت خوشبو واقعى هغه له راتله ځكه چه د جنت خوشبو خو د پنځوسو كالو د مسافت نه محسوس كيږى.

② كه د هغه دا قول په مجاز باندې محمول وى په هغه صورت كښې به مطلب وى چه ماته دامعلومه ده چه جنت هم په دغه ځائ دې كوم ځائ چه جنګ كيدو، ځكه چه د جنت حاصلول هم په دغه ځايونو كښې كيږى.(۴)

**قوله:** قال سعد: فما استطعت يارسول الله ما صنع: حضرت سعد رضي الله عنه فرمائى: يارسول الله! هغه چه څه اوكړه هغه ما اونه كړيشو. مطلب دا دې چه حضرت انس بن النضر رضي الله عنه چه كوم قسم كار اوكړو په دې اقدام كښې هغه ته كوم خطرناكو سختو سره مخامخ والې وشو او هغه ته د هغې نه ډير زخمونه راغله نو داسې اقدام مانه اونه شو او هغه چه

---

١) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١٠٨)-
٢) (حواله بالا-
٣) (فتح البارى (ج۶ص٢٣)-
۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص٢٣)-

ځنګه په میدان جنګ کښې ثابت قدمی خودلې وه هغه ما اونه خودلې شوه.(١)

**قوله: قال أنس: فوجدنا به بضعا وثمانين ضربة بالسيف أوطعنة برمح أورمية بسهم ووجدناه قد قتل وقد مثل به المشركون فما عرفه أحد إلا أخته ببنانه:**

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د هغه په بدن توری نیزې او غشو د اتیاو نه زیات زخمونه وو او مونږ هغه په داسې حالت کښې اوکتلو چه مشرکانو د هغه مثله کړې وه نوهغه د هغه خور (ربیع بنت النضر رضی الله عنها) نه سوا بل هیڅ چا اونه پیژندلو، او هغې هم هغه د ګوتې د بند نه اوپیژندلو.

((بنان)) د ګوتې بند ته وائی. (٢)

دلته په روایت کښې ((بنان)) لفظ راغلې دې او د کتاب المغازی په روایت کښې شک سره ((بشامة أوببنانه)) وارد شویدې.(٣)

علامه عینی او حافظ صاحب فرمائی چه اکثر رواة هم بنان روایت کړیدې. (٤)

**قوله: قال أنس: كنا نرى أونظن أن هذه الآية نزلت فيه وفي أشباهه ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ﴾ إلى اخرالآية:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه زمونږ خیال وو د هغوی او د هغوی په شان د خلقو باره کښې چه دا آیت نازل شو: ﴿من المؤمنين...﴾ چه په مسلمانانو کښې داسې ځوانان سړی شته چه هغوی الله تعالی سره کړې وعده رښتونې کړه او وئې خودله، په دې ځوانانو سړوکښې څو څوکسانو خپل نذر پوره کړو او بعض د دې (ساعت سعید) په انتظارکښې دی.(د جنګ ویرونکی خطرو باوجود) د هغوی په رویوکښې لږ شان بدلون هم اونه شو.

((قضى نحبه)) علامه زمحشری د ((نحب)) معنی بیانولوسره لیکی: ((...عبارة عن الموت، لأن كل حي لابدله من أن يموت، فكأنه نذر لازم في رقبته فإذا مات فقد قضى نحبه أي: نذره))(٥)

یعنی ((قضاء النحب)) د مرګ نه کنایه ده، ځکه چه هر یو ژوندې ځیز به مړ کیږی لکه چه دا د هغه په سټ باندې لازم نذر دې او چه کله هغه مړشو نو هغه خپل نذر پوره کړو.

**وَقَالَ (٦) إِنَّ أُخْتَهُ وَهِيَ تُسَمَّى الرُّبَيِّعَ كَسَرَتْ ثَنِيَّةَ امْرَأَةٍ فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ أَنَسٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا فَرَضُوا بِالْأَرْشِ**

---

١) (فتح الباری (٢ج٢٣)-

٢) (شرح الکرمانی (ج١٢ص١٠٩)-

٣) (انظر الصحیح للبخاری (ح٢ص٥٧٩) کتاب المغازی باب غزوة أحد رقم (٣٨٢٢)-

٤) (عمدة القاری (ج١٤ص١٠٣) فتح الباری (ج٦ص٢٣)-

٥) (الکشاف (ج٣ص٥٣٢)-

٦) (الحدیث مرتخریجه فی کتاب الصلح باب الصلح فی الدیة-

وَتَرَكُوا الْقِصَاصَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ [۲۷۰۳، ۴۴۹۹، ۴۵۰۰، ۴۶۱۱، وانظر: ۲۵۵۶]

**دَ حدیث ترجمه:** حضرت انس بن مالک رضي الله عنه فرمائي: دَ دوی (انس بن النضر) خور دَ یوې ښځې غاښ مات کړو، نو رسول الله ﷺ دَ قصاص حکم ورکړو( قصاصاً دَ هغه دَ خور هم یو غاښ مات کړنې) نو حضرت انس بن النضر رضي الله عنه اووئیل یارسول الله! قسم دې دَ هغه ذات چا چه ته په حقه سره رالیګلې نې دَ هغې غاښ به نشي ماتولې نو دَ هغه ښځې وارثان په دیت باندې راضي شو او قصاص نې پریخودلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل په تحقیق سره دَ الله تعالی څه بندیګان داسې وی که هغوی په الله باندې قسم اخوری نو الله تعالی دَ هغوی قسم پوره کوی.

دَپورتني حدیث تشریح مکمل تفصیل سره(کتاب الصلح،باب الصلح فی الدية) کښې تیرشویدې.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حدیث شریف مناسبت په پورته ذکر شوی آیت کښې دې ځکه چه مذکوره آیت هم دَ دې حضراتو باره کښې نازل شوې وو چا چه وعده پوره کړې وه او دَ ثابت قدمئ او ثابت قلبئ مظاهره ئې کړې وه او چه څوك دَ وعدې پوره کولو په انتظارکښې وو. (۱)

[۲۶۵۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ أُرَاهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(۲) قَالَ نَسَخْتُ الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ فَفَقَدْتُ آيَةً مِنْ سُورَةِ الْأَحْزَابِ كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَلَمْ أَجِدْهَا إِلَّا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ الَّذِي جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَتَهُ شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ وَهُوَ قَوْلُهُ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ [۳۸۲۳، ۴۵۰۶، وانظر: ۴۴۰۲، ۴۷۰۲]

## تراجم رجال

۱- <u>ابوالیمان:</u> دا ابوالیمان حکم بن نافع حمصی رحمه الله دې.

۲- <u>شعیب:</u> دا ابوبشرشعیب بن ابی حمزه رحمه الله دې دَ دې دواړو حالات ((بدء الوحی)) دَ شپږم حدیث لاندې تیرشوی دی.(۳)

---

۱ ) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۰۲)-

۲ ) (قوله: زیدبن ثابت رضی الله عنه: الحدیث أخرجه البخاری أیضًا (ج۲ص۵۸۰) کتاب المغازی باب غزوة أحد رقم (٤٠٤٩) و(ج۲ص۷۰۵) کتاب التفسیر باب ﴿فمنهم من قضی نحبه ومنهم من ینتظر...﴾ رقم (٤٧٨٤) و(ج۲ص٧٤٦) کتاب فضائل القرآن باب جمع القرآن رقم (٤٩٨٨) والترمذی فی جامعه (ج۲ص۱٤۲) أبواب تفسیر القرآن باب ومن سورة التوبة رقم (٣١٠٤)-

۳ ) (کشف الباری (ج۱ص۴۸۹-۴۸۰)-

۳- اسماعيل: دا اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله دي دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال)) په ذيل كښې تيرشوى دى.(۱)

۴- اخي: ((أخي)) نه مراد ابوبكر عبدالحميدبن عبدالله ابى اويس رحمه الله دي.(۲)

۵- سليمان: دا ابومحمدسليمان بن بلال قرشى رحمه الله دي دَ دوى مختصر تذكره ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيره شويده.(۳)

۶- محمدبن ابى عتيق: دا محمدبن عبدالله بن ابى عتيق رحمه الله دي.(۴)

۷- ابن شهاب: دا محمدبن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر تذكره ((بدء الوحى)) په دريم حديث كښې تيره شوه.(۵)

۸- خارجه بن زيد: دامشهور تابعى حضرت خارجه بن زيدبن ثابت انصارى رحمه الله دي.(۶)

۷- زيدبن ثابت: دا مشهور صحابى كاتب وحى حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه دي. (۷)

**قوله: قال: نسختُ الصحف في المصاحف، ففقدتُ آية من سورة الأحزاب كنتُ أسمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقرأبها:** حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه فرمائى چه صحيفې ما په مصاحف كښې ليكلې چه دَ سورة الاحزاب يو آيت كوم چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه تلاوت كولو كښې ماواوريدلې وو اونه موندلو. دلته دَ (جمع قرآن) سره متعلق مشهورې واقعې طرف ته اشاره ده دَ كوم تفصيل چه به وړاندې راځى. (۸)

**قوله: فلم أجدها إلامع خزيمة بن ثابت الأنصاري:** خو هغه آيت ماته حضرت خزيمه بن ثابت الانصارى رضي الله عنه سره ملاؤشو.

**حضرت خزيمه بن ثابت الانصاري رضي الله عنه:** دا مشهورانصارى صحابى حضرت خزيمه بن ثابت بن الفاكه بن ثعلبه بن ساعدة الخطمى رضي الله عنه دي. (۹)
ابوعماره دَ هغه كنيت دې.(۱۰)

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۱۱۳)-
۲) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب العلم باب حفظالعلم-
۳) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۸)-
۴) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الأذان باب مكث الإمام فى مصلاه بعد السلام-
۵) (كشف البارى (ج۱ص۳۲۶)-
۶) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الجنائز باب الدخول على الميت بعدالموت......-
۷) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الصلاة باب مايذكر فى الفخذ-
۸) (انظر كشف البارى كتاب فضائل القرآن باب جمع القرآن (ص۴۱)-
۹) (تهذيب الكمال(ج۸ص۲۴۳)-
۱۰) (الثقات لابن حبان (ج۳ص۱۰۸)-

او په ذوالشهادتين باندې مشهور دې. (١)
دَ هغه مور كبشة بنت اوس الساعدية ده. (٢)
دَ هغه يوه بى بى جميله بنت زيد بن خالد ده، دَ كومې نه چه دَ حضرت خزيمه رضي الله عنه دوه
خامن عبدالله او عبدالرحمن دى او دوئمه بى بى صفيه بنت عامر بن طعمه ده، دَ هغې نه دَ
حضرت خزيمه رضي الله عنه خوئ عماره دې.(٣)
دې دَ سابقين اولين نه دې.(۴) او دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په ټولو غزواتوكښې شريك شوې
وو(۵) ليكن دَ دهٔ په بدرى كيدوكښې اختلاف دې.
امام ترمذى، ابن عبدالبر او لالكائى رحمهم الله فرمائى چه هغه بدرى دې. (۶).
خو أصحاب المغازى دې بدريينو نه نهٔ دې شميركړې. ابن البرقى رحمه الله هغه دَ غير بدريين
نه شميرلې دې اوعلامه ذهبى رحمه الله فرمائى (قيل: إنه بدرى، والصواب: أنه شهد أحدا وما بعدها)(٧)
او عسكرى وغيره خو هغه په اهلِ احد كښې هم نه دى شميرلې.(٨)
**دَذوالشهادتين لقب وجه:** هغه ته دَ ذوالشهادتين وئيلو وجه دا ده چه يو ځل رسول الله صلى الله عليه وسلم
يو اعرابى نه اس واخستلو اودَ قيمت ادا كولودپاره ئې اعرابى ته ځان سره دَ تلو اوفرمائيل:
په دې دوران كښې څه نورو خلقو دَ اعرابى نه هغه اس په زياتو پيسو باندې دَ اخستلو دپاره
اووئيل، كله چه حضور صلى الله عليه وسلم هغه ته قيمت ادا كولو نو هغه دَ اس په بيع باندې ګواه
اوغوښتلو، حضرت خزيمه هلته موجود وو. هغه ګواهى وركړه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دا اس
اخستې دې. حضور صلى الله عليه وسلم حضرت خزيمه رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه ته خو د بيع په وخت كښې
موجودنه وې نو تاڅنګه ګواهى وركړه؟ هغه عرض اوكړو چه دَ آسمان خبرې خوتاسو له
راځى په هغې كښې مونږ ستاسو تصديق كوو نو دا واقعه خو دَ زمكې ده په دې كښې به
مونږ ستاسو تصديق څنګه نه كوو. هغه وخت حضور صلى الله عليه وسلم دَ حضرت خزيمه رضي الله عنه ګواهى دَ
دوو سړو برابر او قائمقام اوګرځوله.(٩) او دا دَ هغوى خصوصيت دې.
دَ فتح مكه په ورځ دَ بنى خطمه جهنډا دَ هغوى په لاس كښې وه. او په جنګ جمل او صفين
كښې هغه دَ حضرت على رضي الله عنه سره وو ليكن په قتال كښې شريك نه وو كله چه حضرت

---

١) (عمدة القارى (ج١٤ص١٠٤)-
٢) (الإصابة (ج١ص٤٢٥)-
٣) (الطبقات لابن سعد(ج٤ص٣٧٨)-
٤) (الإصابة (ج١ص٤٢٥)-
۵) (تهذيب الأسماء واللغات (ج١ص١٧۵)-
۶) (تهذيب التهذيب (ج٣ص١٤١)-
٧) (سير أعلام النبلاء (ج٢ص٤٨۵) وتهذيب التهذيب (ج٣ص١٤١)-
٨) ( تهذيب التهذيب (ج٣ص١٤١)-
٩) (انظر سنن أبى داؤد (ج٢ ص١۵٢) كتاب القضاء باب إذا علم الحاكم صدق الشاهد الواحد يجوزله أن يحكم به رقم (٣۶٠٧) وسنن النسائى (ج٢ص٢٢٨) كتاب البيوع باب التسهيل فى ترك الإشهاد على البيع رقم (۴۶۵١)

عمار بن ياسر رضي الله عنه شهيد شونو هغه په جنگ كښې شريك شو.(١)
حافظ ابن حجر رحمه الله د واقدي په طريق روايت نقل كړيدې چه عماره بن خزيمه بن ثابت فرمائي چه حضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه په جنگ جمل كښې شريك خو شو ولې هغه د تيكى نه توره راونه ويستله او په جنگ صفين كښې هم شامل شو او وئى فرمائيل چه زه د عمار (ابن ياسر) قتل كيدو پورې به توره نه راوباسم دې د پاره چه اوګورم چه هغه څوك قتل كوى خكه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى هغوى فرمائيل ((تقتله الفئة الباغية)) نو چه كله حضرت عمار رضي الله عنه شهيد كړيشو نو هغوى اوفرمائيل ((قد بانت لى الضلالة)) چه د چا غلطى ده دا خبره ماته ښكاره شوه بيامیدان جنگ ته داخل شو او قتال ئى اوكړو تر دې چه شهيد شو. (٢) د هغوى د شهادت دا واقعه ٣٧هـ ده.(٣)
د مسنداحمد روايت دې چه حضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه خوب اوليدو چه هغه د نبى اكرم ﷺ په تندى مبارك باندې سجده كوى. د دې ذكر هغه نبى كريم ﷺ ته اوكړو نو هغوى سملاستل او وئى فرمائيل ((صَدِّقْ بذلك رؤياك)) چه خپل خوب رښتونې كړه. نو هغه د نبى كريم ﷺ په مبارك تندى باندې سجده اوكړه.(۴) يعنى خپل تندې ئې د هغوى ﷺ په تندى مبارك باندې كيخودو. لكه چه د (طبقات) په يو بل روايت كښې راغلى دى. (۵)
هغه د نبى كريم ﷺ نه روايت كوى.
د دوى نه روايت كونكوكښې د هغوى څوئ عماره، حضرت جابر بن عبدالله الانصارى رضي الله عنه عماره بن عثمان بن حنيف، عمرو بن ميمون الاودى، ابرهيم بن سعد بن ابى وقاص، ابوعبدالله الجدلى، عبدالله بن يزيد الخطمى، عبدالرحمن بن ابى ليلى، او عطاء بن يسار رحمهم الله وغيره شامل دى.(۶)
علامه واقدى رحمه الله هغه په طبقه ثالثه كښې ذكركړيدې. (۷)
هغوى د نبى كريم ﷺ نه ٣٨ احاديث روايت كړى دى. (۸)
او په اصحاب اصول سته كښې د امام بخارى نه علاوه باقى ائمه حضراتو د دوى نه روايات اخستې دى. (۹) رضى الله عنه وأرضاه.

---

١) (تهذيب الأسماء واللغات (ج١ص١٧۶)-
٢) (الإصابة (ج١ص٤٢۶) وأيضاً انظر مسندالإمام أحمد (ج۵ص٢١٤)-
٣) (سير أعلام النبلاء (ج٢ص٤٨۵)-
٤) (مسندأحمد (ج۵ص٢١۵) وكذا أخرجه ابن سعد بسنده انظر الطبقات (ج٤ص٣٨٠)-
۵) (طبقات ابن سعد (ج٤ص٣٨١)-
۶) (د شيوخو او تلامذه د تفصيل د پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج٨ص٢٤٤)-
٧) (حواله بالا-
٨) (تهذيب الأسماء واللغات (ج١ص١٧۶)-
٩) (تهذيب الكمال (ج٨ ص٢٤۵)-

**قوله:** الذي جعل رسول الله صلى الله عليه وسلم شهادته شهادة رجلين:

**وهوقوله:** ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ﴾: د چا ګواهي چه رسول الله ﷺ د دوو سړو د ګواهئ برابر ګرځولې وه. (هغه ايت چه حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه ته مصاحف کښې نه وومِلاؤ ليکن د حضور اکرم ﷺ نه هغه اوريدلې وو) د الله تعالى قول: ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ﴾ دې.

د ګواهئ د کومې واقعې حواله چه په حديث باب کښې ورکړېشويده هغه اوس په ماقبل کښې تيره شويده.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت بالکل واضح او ظاهردې چه په دې حديث کښې هم دَدې آيت ذکردې په کوم چه ترجمه قائم کړې شويده(١)

## ١٣-بَاب عَمَلٌ صَالِحٌ قَبْلَ الْقِتَالِ

**ماقبل سره مناسبت:** په تيروشوو بابونوکښې په مختلفو عنواناتوسره د جهاد او قتال اهميت، فضيلت او په دې باندې مرتب اجر ذکر دې اوس په دې باب کښې د دې عمل قتال د قبليدو طريقه خودلې کيږي چه د قتال نه وړاندې څه نيک کار هم کول پکار دی دې د پاره چه برکت وی.

**د ترجمه مقصد:** حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد د دې ترجمه نه دا دې چه صالح او ديندار سړی ته چه د هغه په اعمالو کوم اجر ورکولې شی هغه فاسق او ګناهګارته نشی ورکولې. په دې وجه عمل صالح وړاندې کول پکار دی دې د پاره چه د نورو نه د زيات اجر حقدار شی. نود حديث باب دلالت په دې بالکل ښکاره دې ځکه چه اسلام عمل صالح دې او په حديث کښې د دې د تقديم حکم ورکړېشويدې.(٢)

**قوله:** وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ إِنَّمَا تُقَاتِلُونَ بِأَعْمَالِكُمْ: اوحضرت ابودرداء رضي الله عنه فرمائی تاسو د خپلو عملونو په وجه قتال کوئی.

مطلب دا چه الله تعالی تاسو ته د خو او نيکو اعمالو توفيق درکوی اود دې په وجه په جنګ کښې کاميابيږئی او په دې کښې برکت وی. په خلاف د هغې چه که د قتال کونکو اعمال خراب وی نو بيا هغه ناکامه کيږي.(٣)

دا تعليق امام عبدالله بن مبارک رحمه الله ((سعيد بن عبدالعزيز عن ربيعة بن يزيد عن ابن حلبس عن أبي الدرداء)) په طريق په (کتاب الجهاد) کښې موصولاً نقل کړی دی. (۴)

په اصل کښې د حضرت ابودرداء رضي الله عنه د ارشاد دوه حصې دی يوه حصه خو هغه ده کومه چه

---

١ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٠٤)-
٢ ) (لامع الدرارى (ج٧ص٢١٧)-
٣ ) (فيض البارى (ج٣ص٤٢٤)-
٤ ) (تغليق التعليق (ج٣ص٤٣١)-

حضرت عبدالله ابن مبارك خپل (كتاب الجهاد) كښې نقل كړيده، دونمه هغه ده چه امام بخارى رحمه الله ترجمه جوړه كړيده. نو حافظ ابن حجر رحمه الله (تغليق التعليق) كښې په خپل سند سره نقل كوى ((...عن سعيد بن عبدالعزيز عن ربيعة بن يزيد، أن أباالدرداء قال: أيها الناس، عمل صالح قبل الغزو، فإنما تقاتلون بأعمالكم))(١)

اوس د مذكوره اثر رومبنى حصه خو امام بخارى رحمه الله ترجمه جوړه كړه او دونمه حصه ئى د تعليق په صورت كښې نقل كړه. د دې وجه دا ده چه ((عن سعيد بن عبدالعزيز عن ربيعة بن يزيد عن أبى الدرداء)) طريق كښې انقطاع ده، ځكه ربيعة بن يزيد سماع حضرت ابوالدرداء رضى الله عنه نه ثابت نه دى. د عبدالله بن مبارك رحمه الله په طريق كښې ربيعة بن يزيد او حضرت ابوالدرداء رضى الله عنه په مينځ كښې (ابن حلبس) په واسطه دى او په دې كښې صرف ((إنما تقاتلون بأعمالكم)) ذكر دې.

نو امام بخارى رحمه الله داحصه چه متصل ده د حضرت ابوالدرداء رضى الله عنه طرف ته منسوب كړيده او كومه حصه چه سندمنقطع سره وه هغه ئى ترجمه ذكر كړه، د دې خبرې طرف ته اشاره كولو سره هغه د دې نه غافل نه وو.(٢)

((وَقَوْلُهُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوصٌ))[الصف:٢-٤]

اود الله تعالى عزوجل ارشاد دې، اې د ايمان خاوندانو! داسې خبره ولې كوئى چه هغه كار نه كوئى،د الله تعالى په نزد دا خبره ډيره د خفګان ده چه داسې خبره كوئى چه هغه كار نه كوئى. الله تعالى خو هغه خلق خوښوى چه د هغه په لاركښې داسې يوځائ جنګيږى لكه چه هغوى يو عمارت وى په كوم كښې چه سيسه اچولې شوى وى. (٣)

**د آيت مبارك تعلق دعوې سره دې نه چه دعوت سره:** د اكثرو خلقو دېې عمله عالم په وعظ او نصيحت كولو باندې دا اعتراض وى چه كله هغه پخپله عمل نه كوى نو نصيحت نه دى كول پكار. دا د ﴿لم تقولون مالا تفعلون﴾ خلاف دى.

نود دې جواب دا دې چه د آيت تعلق دعوې سره دى دعوت سره نه دې. نو د څه داسې كار دعوى كول جائز نه دى په كوم چه عمل نه وى، ليكن دعوت وركول او وعظ او نصيحت كول جائز دى هغه په دې كښې داخل نه دى. فافهم ولاتغفل.

**د ترجمة الباب سره د آيت مناسبت:** علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى چه آيت او ترجمه سره مناسبت داسې دې چه الله تعالى په اولنودوو آياتونوكښې په هغه سړى باندې غندنه كړيده چه دا وائى چه زه به بنه كار كوم بيا ئى نه كوى. اود دې نه پس آيت ﴿إن الله يحب الذين...﴾

---

١) (حواله بالا-
٢) (فتح البارى (ج٦ص ٢٤)-
٣) (ترجمه ازبيان القرآن (ج٢ سورة الصف)-

كښې د هغه سړي تعريف دې چه په ميدان جنګ کښې ثابت قدمي اوښائي او بيا قتال اوکړي. په مذکوره آيت کښې د هغه سړي مدح ده، چه وائي هم او کوي هم . اود هغه قول د جهاد د تياري په سلسله کښې قتال نه مخکښې عمل صالح دې کوم چه هغه په قتال باندې مقدم کړيدې.(١)

او علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه په مقصود آيات کښې د «صَفًّا» لفظ دې چه هغوي صفونه جوړوي اود هغوي د قتال نه وړاندې صف جوړول عمل صالح قبل القتال دې. (٢)

[٢٦٥٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ الْفَزَارِيُّ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(٣) يَقُولُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مُقَنَّعٌ بِالْحَدِيدِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أُقَاتِلُ أَوْ أُسْلِمُ قَالَ أَسْلِمْ ثُمَّ قَاتِلْ فَأَسْلَمَ ثُمَّ قَاتَلَ فَقُتِلَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمِلَ قَلِيلًا وَأُجِرَ كَثِيرًا

## تراجم رجال

١- محمد بن عبدالرحيم: دا ابويحيى محمد بن عبدالرحيم بن ابى زهير العدوى البزاز رحمه الله دې.(۴)

٢- شبابه بن سوار الفزاري: دا ابو عمرو شبابة بن سوار الزارى المدائنى رحمه الله دې.(۵)

٣- اسرائيل: دا ابويوسف اسرائيل بن يونس بن ابى اسحاق كوفى رحمه الله دې. (۶)

۴- ابواسحاق: دا ابو اسحاق عمروبن عبدالله سبيعى رحمه الله دې.

۵- البراء: دا مشهور صحابى حضرت براء بن عازب انصارى رضي الله عنه دې. د دې دواړو حضراتو حالات «كتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان» لاندې تيرشو.(۷)

**قوله:** يقول: أتى النبي صلى الله عليه وسلم رجل مقنع بالحديد: حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي، چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره د اوسپنې يو خود اچولې سړې راغلو. علامه کرماني رحمه الله د دې سړي نوم اصرم عمروبن ثابت الاشهلى خودلې.(٨)

---

١ ) (المتوارى (ص١٥١)-
٢ ) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١١٠)-
٣ ) (قوله: البراء: الحديث أخرجه مسلم (ج٢ص١٣٨) كتاب الإمارة باب ثبوت الجنة للشهيد رقم (٤٩١٤)-
٤ ) (د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة-
٥ ) ( د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الحيض باب الصلاة على النفساء وسنتها-
٦ ) (د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب العلم باب من ترك بعض الاختيار...-
٧ ) (كشف البارى (ج٢ص٣٧٠-٣٧٦)-
٨ ) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١١١)-

**حضرت عمرو بن ثابت اشهلي رضي الله عنه:** دا عمرو بن ثابت بن وقيش بن زغبة بن زعوراء بن عبدالاشهل رضي الله عنه دې. كله كله به د نيكه طرف ته منسوب كيدو نو عمرو بن وقيش به بللې شو. حضرت حذيفه بن يمان رضي الله عنه خورډ هغه مور ده. اصرم يا اصيرم د هغه لقب دې. (١)

ابن اسحاق په مغازي كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په صحيح سند سره د حضرت عمرو بن ثابت واقعه نقل كړېده چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائيل ((أخبرني عن رجل دخل الجنة، ولم يصل صلاة؟)) چه ماته د داسې سړى باره كښې اوښايه چه جنت ته داخل شوى او هغه يو مونځ هم نه وى كړې بيا هم پخپله فرمائى ((هو عمرو بن ثابت)) (٢)

د دغه شان ابن اسحاق د حصين بن محمد نه او هغه د محمود بن لبيد نه روايت كوى چه حضرت عمرو بن ثابت رضي الله عنه د اسلام نه منكر وو، د جنګ احد په ورځ د اسلام حقانيت په هغه باندې ښكاره شونو هغه خپله توره راوچته كړه او قوم ته راغلو او په خلقو كښې ورننوتلو او ښه جنګ ئې اوكړو تردې چه زخمي شو او پريوتلو. د هغه قوم چه كله هغه په زخمي حالت كښې په ميدان جنګ اوكتلو نو تپوس ئې اوكړو چه ته دلته څنګه؟ تا په خپل قوم باندې شفقت خوړلې راغلې يا په اسلام كښې د رغبت د وجه؟ نو حضرت عمرو بن ثابت رضي الله عنه اوفرمائيل په اسلام كښې د رغبت په وجه راغلې يم او ما د رسول الله ﷺ په ملګرتيا كښې جنګ كړې او چه د څه زخم وغيره لګيدل وو هغه اولګيدل، رسول الله ﷺ چه ټول احوال واوريدل نو وئې فرمائيل ((إنه من أهل الجنة)) (٣)

د ((مقنع بالحديد)) معنى دا ده چه هغه پخپله اغوستې وه. (۴) دا د قناع نه دې او قناع هغه لوئ څادر ته وائى په كوم باندې چه ښځې خپل سر پټوى. (۵) څكه چه پخپله سر پټولې شى نو چه څوك ئې پخپله واغوندى هغه ته ((مقنع)) وائى. (۶)

او دې معنى ((المتغطى بالسلاح)) هم ده. يعنى چه ټولو خپل ځانونه د وسلې په ذريعه پټ كړې وى. (٧)

او حافظ صاحب فرمائى چه دا د دې خبرې نه كنايه ده چه هغه خپل مخ په جنګى آلاتو باندې پټ كړې وو. (٨)

---

١) (الإصابة (ج٢ص:٥٢۶)-

٢) (حواله بالا وفتح البارى (ج۶ص٢٥)-

٣) (حواله بالا-

٤) (النهاية لابن الأثير (ج٤ص ١١٤) مادة قنع-

٥) (مختار الصحاح ص٥٥٣) مادة قنع-

۶) (النهاية (ج٤ص ١١٤)-

٧) (حواله بالا-

٨) (فتح البارى (ج۶ص٢٥)-

((فقال: يارسول الله، أقاتل أو أسلم؟)): نو هغه اووئيل يا رسول الله! جنگ اوكړم كه اسلام قبول كړم؟

**قوله: قال: أسلم ثم قاتل: فأسلم ثم قاتل فقتل:** رسول الله ﷺ اوفرمائيل اسلام قبول كړه بيا جنگ كوه. نو هغه سړي اسلام قبول كړو بيا ئې جنگ اوكړو او شهيد شو. نبي كريم ﷺ اول هغه سړي ته د اسلام قبلولو اووئيل ځكه چه د اعمالو قبليدو دارومدار په ايمان باندې دې، نو هغه اسلام قبول كړو او جهاد كښې شريك شو، تردې چه شهيد شو. په ماقبل كښې د ابن اسحاق رحمه الله په حواله سره دا خبره راغلې ده چه دا د غزوه احد واقعه ده.

**قوله: فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: عمل قليلاً وأجر كثيرا:** رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه خو عمل لږ اوكړو خو هغه ته پرې اجر ډير ملاؤشو. علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه په حديث شريف كښې د دې خبرې دليل دې چه الله تعالى په لږ شان عمل باندې هم ډيراجرور كوى اودا الله تعالى په خپلو بنديگانو باندې احسان او مهرباني ده. (۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت ((أسلم، ثم قاتل، فأسلم ثم قاتل)) كښې دې. هغه غزوه كښې د شركت نه اول نيك عمل اوكړو بلكه افضل الاعمال يعنى اسلام ئې اختياركړو اود اسلام قبولولو نه پس ئې جهاد اوكړو.(۲)

**تنبيه:** علامه عينى (۳) او علامه عبدالغنى نابلسى رحمه الله (۴) په حديث باب كښې د امام بخارى رحمه الله د افرادو نه شميركړيدې. علامه عينى فرمائى ((والحديث من إفراده)) چه د دې روايت تخريج كښې امام بخارى متفرد دې ليكن ښكاره چه په تخريج كښې تيرشو دا حديث صحيح مسلم (كتاب الامارة باب ثبوت الجنة) كښې هم موجود دې(۵)

دغه شان علامه نووى رحمه الله په رياض الصالحين كښې حديث باب ذكر كړيدې اوفرمائيلى دى((متفق عليه وهذا لفظ البخارى))(۶) نود حديث باب متعلق دا وينا چه دې د بخارى د افرادو نه دې صحيح نه معلوميږى.

## ۱۴- بَاب: مَنْ أَتَاهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهُ

**د ترجمة الباب مقصد:** د ترجمة الباب مقصد دا وهم لرې كول دى چه كه چرې په ميدان جنگ كښې د جنگ په دوران كښې مړشى او دا معلومه نشى چه د چا په غشى لگيدلې دې، د مسلمان په غشى يا د كافر، نو امام بخارى رحمه الله دا مذكوره ترجمه او حديث باب ذكر

۱ ) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۰۶)-
۲ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص ۲۴)-
۳ ) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۰۶)-
۴ ) (ذخائر المواريث فى الدلالة على مواضع الحديث (ج ۱ص ۱۲۲)-
۵ ) (صحيح مسلم (ج۲ص ۱۳۸) رقم (۳۹۱۳-۳۹۱۴)-
۶ ) (رياض الصالحين (ص ۳۹۴) كتاب الجهاد رقم (۱۳۱۰)-

کولوسره د دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه د جنګ مړشوې شهید دې سره د دې چه قاتل نامعلوم وی.(۱)

[۲٦۵۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَبُو أَحْمَدَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ (۲) أَنَّ أُمَّ الرُّبَيِّعِ بِنْتَ الْبَرَاءِ وَهِيَ أُمُّ حَارِثَةَ بْنِ سُرَاقَةَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَلَا تُحَدِّثُنِي عَنْ حَارِثَةَ وَكَانَ قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ أَصَابَهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَإِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ صَبَرْتُ وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذَلِكَ اجْتَهَدْتُ عَلَيْهِ فِي الْبُكَاءِ قَالَ يَا أُمَّ حَارِثَةَ إِنَّهَا جِنَانٌ فِي الْجَنَّةِ وَإِنَّ ابْنَكِ أَصَابَ الْفِرْدَوْسَ الْأَعْلَى [۳۷٦۱، ۳۷۸۳، ٦۱۸۳، ٦۱۹۹]

## تراجم رجال

۱- محمدبن عبدالله: په دې کښې دَ بخاری شریف دَ شارحینو اختلاف دې چه دلته په سندکښې محمدبن عبدالله نه څوك مراد دې. علامه کرمانی رحمه الله خودا فرمائیلی چه دا محمدبن یحیی بن عبدالله الذهلی رحمه الله او امام بخاری رحمه الله هغه دلته نیکه طرف ته منسوب کړیدې.یعنی محمدبن عبدالله، او هغه محمدبن یحیی بن عبدالله دې.(۳)
اوکلاباذی هم په دې جزم کړیدې.(۴)

اودَ ابوعلی بن السکن په روایت کښې دی: ((حدثنا محمدبن عبدالله بن المبارك المخرمی))
دینه معلومیږی چه دا بل څوك راوی دې. اوس که چرې ابن السکن دَ خپل طرف نه دا نسبت بیان کړی دې نو د دې هیڅ اعتبار نشته ګنی نو معتبر دې. هم دا روایت ابن خزیمه په خپل صحیح کښې (کتاب التوحید) کښې ((محمد بن یحیی الذهلی عن حسین بن محمد وهو المروذی)) په طریق سره نقل کړی دی.

نوکه مراد چرته محمدبن یحیی بن عبدالله الذهلی دې نو دَ ده حالات ((کتاب العیدین باب التکبیرأیام منی وإذا غدا إلی عرفة)) لاندې تیرشوی دی.
اوکه مراد ترینه محمد بن عبدالله بن المبارك المخرمی دې نو په ذیل کښې دَ هغهٔ مختصر تذکره نقلِ کولې شی. دا حافظ محمد بن عبدالله بن المبارك القرشی المخرمی رحمه الله دې، ابو جعفردَ هغه کُنیت دې او دَ حلوان قاضی وو(۵)

---

۱) (الأبواب والتراجم للكاندهلوی (ص۱۹۵)-
۲) (قوله: أنس بن مالك رضی الله عنه: الحديث أخرجه البخاری أيضًا (ج۲ص۵٦۷) كتاب المغازی باب فضل من شهد بدرا رقم (۳۹۸۲) و(ج۲ص۹۷۰و۹۷۲) كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار رقم (٦۵۵۰) و(٦۵٦۷) والترمذی(ج۲ص۱۵۱) أبواب تفسير القرآن باب ومن سورة المؤمنون رقم (۳۱۷٤)-
۳) (شرح الكرمانی(ج۱۲ص۱۱۱)-
٤) (عمدة القاری ج١٤ص۱۰٦)-
۵) (تهذيب الكمال (۲۵ص۵۳٤)-

د ۱۷۰ھ نه پس د هغوی ولادت شویدې. (۱)
دوی د ابومعاویه الضریری، یحیی القطان، ابن مهدی، ابوعامر العقدی، ابواسامه، اسحاق بن یوسف الازرق، حسن بن موسی الاشیب، شبابة بن سوار ، اسود بن عامرشاذان، زکریا بن عدی، صفوان بن عیسی، معلی بن منصور الرازی، حجیین بن المثنی، ابونوح عبدالرحمن بن غزوان، یحیی بن سوسف، یزیدبن هارون، حسین بن محمدبن بهرام او یعقوب بن ابراهیم بن سعد رحمهم الله واغیره نه روایت کوی.
او د هغوی نه د حدیث روایت کونکوکښې امام بخاری، ابوداؤد ، نسائی، ابوحاتم، ابراهیم الحربی، یعقوب بن سفیان، ابن خزیمه، ابن بجیر، ابن ابی الدنیا، عبدالله بن محمد الفرهیانی، محمد بن محمدبن سلیمان باغندی، یحیی بن محمدصاعد او حسین بن اسماعیل محاملی رحمهم الله وغیره شامل دی. (۲)
عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه ماته زما والدصاحب اووئیل آیا تا د ((عبیدالله عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنهما)) دا حدیث ((کنا نغسل المیت منا یغتسل، ومنا من لایغتسل)) مونږ مړی ته غسل ورکولو نو په مونږ کښې به چاروستو غسل کولو او چا به نه کولو) لیکلې دې؟ ما وئیل چه نه. هغوی اوفرمائیل چه د مخرم طرف ته یو ځوان دې چاته چه محمد بن عبدالله وئیلې شی او هغه دا حدیث د ((ابوهشام المخزومی عن وهیب)) په طریق سره نقل کړیدې، د هغه نه هغه حدیث اولیکه. (۳)
ابوبکر الباغندی رحمه الله فرمائی ((کان حافظا متقنا)) (۴)
نصربن احمدبن نصر رحمه الله فرمائی ((کان محمد بن عبدالله المخرمی من الحفاظ المتقنین المأمونین)) (۵)
عبدالرحمن بن ابوحاتم رحمه الله فرمائی ((کتب أبی عنه، وهو صدوق ثقة، سئل أبی عنه، فقال: ثقة ثقة)) (۶)
امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ((ثقة کان حافظا)) (۷)
یو ځل امام علی بن المدینی رحمه الله بغداد ته تشریف راوړو نو خلق د هغه نه ګیرچاپیره راجمع شو، بیا چه کله یتول لاړل نو علی بن المدینی تپوس اوکړو ((من وجدت أکیس القوم؟ فقال: هذا الغلام المخرمی)) (۸)

---

۱) (سیر أعلام النبلاء (ج۱۲ص۲۶۵)-
۲) (د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۲۵ص ۵۳٤-۵۳۶)-
۳) (تهذیب الکمال (ج۲۵ص۵۳۶)-
٤) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا-
۶) (تهذیب التهذیب (ج۹ص۱۲۱)-
۷) (حواله بالا وقال أیضا: ثقة مأمون، تعلیقات تهذیب الکمال (ج۲۵ص۵۳۷)-
۸) (سیر أعلام النبلاء (ج۱۲ص۲۶۷)-

ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړیدې.(۱)

امام نسائی رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۲)

نور فرمائی ((کان أحد الثقات ما رأینا بالعراق مثله)) (۳)

ابن عدی رحمه الله فرمائی ((کان حافظا)) (۴)

مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائی ((کان أحد الثقات جلیل القدر)) (۵)

ابن ماکولا رحمه الله فرمائی ((کان ثبتا عالما)) (۶)

امام ذهبی رحمه الله فرمائی ((من أئمة الأثر)) (۷)

دا د صحیح بخاری ابوداود او نسائی راوی دې. (۸)

دَ دوی په کال ۲۵۲ھ کښې انتقال شوې دې.(۹) رحمه الله رحمة واسعة.

۲- حسین بن محمد بن بهرام تمیمی: دا حسین بن محمدبن بهرام تمیمی مروزی مؤدب رحمه الله دې.(۱۰)

ابواحمد دَ هغه کنیت دې.[۱۱] لکه چه په سند کښې هم ذکر دی، دَ بغداداوسیدونکې وو.[۱۲]

هغه دَ اسرائیل، جریر بن حازم، ابوغسان محمد بن مطرف، شیبان النحوی، ابن أبی ذئب، مبارك بن فضالة، ایوب بن عتبه، خلف بن خلیفه، شریك النخعی او ابواویس المدنی رحمهم الله وغیره نه دَ حدیث روایت کوی. او دَ هغه نه روایت کونکو کښې امام احمدبن حنبل، احمدبن منیع، ابراهیم سعید الجوهری، عبدالرحمن بن مهدی، چه دَ هغه نه ډیر وړاندې وفات شوې وو، ابوخیثمه، محمد بن رافع، یحیی، ابن ابی شیبة، ذهلی ابراهیم حربی، اسحاق حربی، محمد بن عبدالله بن مبارك او عباس الدوری رحمهم الله وغیره شامل دی. (۱۳)

---

۱) (الثقات لابن حبان (ج۹ص۱۲۱)-
۲) (تهذیب الکمال (ج۲۵ص۵۳۷)-
۳) (تهذیب التهذیب (ج۹ص۲۷۳)-
٤) (تهذیب التهذیب (ج۹ص۲۷۳)-
۵) ( تهذیب التهذیب (ج۹ص۲۷۳)-
۶) (حواله بالا (ص ۲۷٤)-
۷) (الکاشف (ج۲ص۱۸۹)-
۸) (حواله بالا-
۹) (حواله بالا، وسیر أعلام النبلاء (ج۱۲ص۲۶۷)-
۱۰) (تهذیب الکمال(ج۶ص ٤۷۱)-
۱۱) (طبقات ابن سعد(ج۷ص۳۳۸)-
۱۲) (تهذیب الکمال (ج۶ص ٤۷۱)-
۱۳) (شیوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۶ص ٤۷۱-٤۷۲)-

ابن سعد رحمه الله فرمائی: ((کان ثقة))(۱)

امام نسائی رحمه الله فرمائی ((لیس به بأس)) (۲)

معاویه بن صالح الدمشقی رحمه الله فرمائی ((قال لی أحمد بن حنبل: اکتبوا عنه، جاء معی إلیه، وسأله أن یحدثنی))(۳)

ذهبی رحمه الله فرمائی ((وکان یحفظ)) (۴)

سبط بن العجمی رحمه الله فرمائی ((ثقة))(۵)

ابن قانع رحمه الله فرمائی ((وهو ثقة))(۶)

ابن وضاح رحمه الله فرمائی ((سمعت محمد بن مسعود یقول: (حسین بن محمد ثقة) وسمعت ابن نمیر یقول: (حسین بن محمد بن بهرام صدوق))(۷)

خو ابوحاتم رحمه الله او د هغوی په تقلیدکښې ابن الجوزی رحمه الله حسین بن محمد بن بهرام مجهول ګرځولې. حافظ ذهبی رحمه الله (میزان الاعتدال) کښې فرمائی ((مجهول، کذا قاله أبوحاتم))(۸) د دې وجه دا شوه چه ابن ابی حاتم (الجرح والتعدیل) کښې یوطرف ته حسین بن محمد ذکر کړې نو بل طرف ته حسین بن محمد المروزی البغدادي التمیمی المعلم او حسین بن محمد بن بهرام په مینځ کښې فرق کړیدې او د اول باره کښې لیکلی دی ((سمعت أبی یقول: أتیته مرارًا بعد فراغه من تفسیر شیبان وسألته أن یعید علیّ بعض المجلس فقال: بکر، بکر، ولم أسمع منه شیئًا)) یعنی ما د خپل پلار نه اوریدلی دی چه څوځل د هغوی تفسیر شیبان نه اوزګاریدونه پس هغوی له لاړم، هغوی ته مې درخواست اوکړو چه مجالسِ تفسیر نه بعض ماته دوباره شروع کړه نو (هغوی هرځل همدغه) اووئیل چه سحر راشه او د هغوی نه ما هیڅ واونریده، او د دوئم باره کښې لیکلی دی(وسمعته یقول: هو مجهول))لیکن واقعه داده چه دا دواړه حضرات هم یودی لیکن ابوحاتم هغوی اونه پیژندلې شوپه دې وجه ئې مجهول اوګرځول.(۹) دې د اصول سته راوی دې. (۱۰)

---

۱ ) (طبقات ابن سعد(ج۷ص۳۳۸)-
۲ ) (تهذیب الکمال (ج۶ص۴۷۳)-
۳ ) (حواله بالا-
۴ ) (الکاشف (ج۱ص۳۳۵)-
۵ ) (حواله بالا (حاشیة سبط ابن العجمی علی الکاشف)-
۶ ) (تهذیب الکمال (ج۲ص۳۶۷)-
۷ ) (حواله بالا-
۸ ) (میزان الاعتدال (ج۱ص۵۴۷) وتعلیقات تهذیب الکمال (ج۶ص ۴۷۴)-
۹ ) (تعلیقات تهذیب الکمال (ج۶ص ۴۷۳-۴۷۴) وتهذیب التهذیب ی(ج۲ص۳۶۷)-
۱۰ ) (الکاشف (ج۱ص۳۳۵)-

په كال ۲۱۳ھ يا ۲۱۴ باندې وفات شو.(۱)

۴-شيبان: دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن رحمه الله دې.(۲)

۳-قتادة: دا قتاده بن دعامه سدوسى رحمه الله دې

۵-انس بن مالك رضي الله عنه: دا مشهورصحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب....)) لاندې راغلى دى. (۳)

**قوله:** أن أم الربيع بنت البراء وهى أم حارثة بن سراقة أتت النبى صلى الله عليه وسلم: حضرت انس بن مالك فرمائى چه دَ نبى كريم ﷺ په خدمت اقدس كښې ام الربيع بنت البراء چه دَ حارثه بن سراقه مور وه تشريف راوړو.

**يواهمه تنبيه:** دبخارى شريف په ټولونسخوكښې ((ام الربيع بنت البراء)) راغلى دى ليكن دا وهم دې په دې باندې حافظ شرف الدين دمياطى رحمه الله وغيره تنبيه كړيده او فرمائيلى دى چه صحيح ((ام حارثة بن سراقة بن الحارث بن عدى...)) ده. او ام حارثه ربيع بنت النضر ده كومه چه دَ حضرت انس رضي الله عنه ترور وه، دَ دې دپاره ربيع نه اول ((ام)) لفظ صحيح نه دى. (۴)

دوئم وهم په روايت كښې ربيع بنت البراء وينا ده. او صحيح بنت النضر دې ځكه چه ربيع بنت النضر رضي الله عنها په نسب كښې يوهم براء نومې سړې نشته دې. كيديشى دا لفظ ((ربيع عمة البراء)) دې او براء بن مالك حضرت انس بن مالك رضي الله عنه رور دې او دا دواړه دَ حضرت ربيع بنت النضر رضي الله عنها اوريرونه دى. (۵)

همدغه روايت امام ترمذى رحمه الله هم دَ سعيد بن ابى عروبة عن قتادة په طريق سره نقل كړيدې. فرمائى ((عن أنس أن الربيع بنت النضر أتت النبى صلى الله عليه وسلم وكان ابنها حارثة بن سراقة أصيب يوم بدر....))(۶)

دَ مذكوره روايت نه معلومه شوه چه صحيح ربيع بنت النضر دې نه چه ام الربيع بنت البراء. دې نه علاوه ابن الاثير الجزرى رحمه الله هم فرمائى چه انساب، مغازى او اسماء الصحابة كتابونه هم په دې دلالت كوى چه ام حارثه ربيع بنت النضر عمة انس رضي الله عنها ده. (۷)

---

۱) (حواله بالا، والكامل لابن الأثير (ج۵ص۲۱۹)-
۲) (دَ دوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب العلم باب كتابة العلم-
۳) (كشف البارى (ج۲ص۳-۴)-
۴) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۰۷ وفتح البارى (ج۶ص۲۶)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۲۶)-
۶) (الجامع للترمذى (ج۲ص۱۵۱) أبواب تفسير القرآن باب ومن سورة المؤمنون رقم(۳۱۷۴)-
۷) (أسد الغابة (ج۷ص۱۰۹) اودَ هغوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب الصلح باب الصلح فى الدية-

**قوله: حارثه بن سراقه رضي الله عنه:** دا حارثه بن سراقه بن الحارث بن عدى الانصارى النجارى رضي الله عنه دي. د هغه مور د حضرت انس رضي الله عنه ترور ربيع بنت النضر رضي الله عنها ده. (۱)

دي د بدر په ورځ شهيد شوي وو، امام احمد، طبراني، بخاري، نسائي، ترمذى رحمهم الله د ټولو اتفاق په دې دې چه دې په بدر كښې شهيد شوې. او ابن اسحاق موسى بن عقبه او ابوالاسود هم دې په صحابه كرامو كښې شميرلې چه كوم په بدركښې شريك شوى او هم هلته شهيدان شوى هم دى، او د اهل مغازى په دې كښې اختلاف نشته. (۲)

ليكن د ابن منده رحمه الله قول دا دې چه دې په احد كښې شهيد شوې. (۳)

اود هغه په دې قول باندې ابونعيم اصفهانى رحمه الله د خپل عادت موافق سخت رد كړيدې. (۴)

بهرحال رومبې قول صحيح دې لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ((والمعتمد الأول (۵)

**قوله: فقالت: يانبي الله، ألاتحدثني عن حارثة وكان قتل يوم بدر أصابه سهم غرب فإن كان في الجنة صبرت:** نو حضرت ربيع بنت النضر رضي الله عنها اووئيل اې د الله نبى! ايا تاسو به ماته د حارثه باره كښې نه ښايئى؟ او حارثه د بدر په ورځ شهيد شوې وو چه هغه ډچا نامعلومه سړى په غشى لګيدلې ووكه هغه په جنت كښې وى نوزه به صبر اوكړم.

((سهم غرب)) كښې غرب يا خو د سهم صفت دې يا د دې مضاف اليه دې. (۶)

اود دې معنى ابن بطال رحمه الله د ابوعبيده رحمه الله نه دا نقل كړيده. ((يقال: سهم غرب: إذاكان لايعلم من رماه)) چه كله د غشى ويشتونكى علم نه وى چه چاويشتلې دې نوويئلې شى سهم غرب. (۷)

اود ابوزيد رحمه الله نه روايت دې ((قال: سهم غرب — ساكنة الراء — إذا أتاه من حيث لايدرى وسهم غرب — بفتح الراء — إذا رماه فأصاب غيره)). (۸)

يعنى چه ((غرب)) د راء په سكون سره وى نو معنى به دا وى چه كله څوك په نامعلومه غشى اولګى اوكه د راء په فتح سره وى نومعنى به داوى چه غشى د يودپاره اولى اولګى بل چاته.

**قوله: وإن كان غير ذلك اجتهدت عليه في البكاء:** او كه د دې نه علاوه بله څه خبره وى نو زه به په دې باندې ښه اوژاړم.

---

۱) (الإصابة (ج۱ص۲۹۷)-
۲) (الإصابة (ج۱ص۲۹۷)-
۳) (حواله بالا-
٤) (حواله بالا-
۵) (الإصابة (ج۱ص۲۹۷)-
۶) (شرح الكرمانى(ج۱۲ص۱۱۱)-
۷) (شرح ابن بطال (ج۵ص۲۵)-
۸) (شرح ابن بطال (ج۵ص۲۵)-

امام ترمذی رحمه الله همدغه روایت نقل کړیدې. او په دې کښې ((اجتهدت علیه فی الدعاء)) (۱) واقع شویدی، لیکن دا غلطه ده او صحیح روایت هم دَ باب دې یعنی ((فی البکاء)) (۲)

**حدیث باب نه دَ علامه خطابی دَ ژړا په جواز باندې استدلال اودَ هغې جواب:** علامه خطابی رحمه الله دَ حدیث باب نه دَ نوحه(ژړا) په جواز باندې استدلال کړیدې. هغوی فرمائی :((وفیه أنه لم یعنفها علی قولها: اجتهدت علیه فی البکاء)) (۳)

حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمه الله په هغوی باندې رد کولو سره لیکی چه دا تحریم دَ نوحه نه وړاندې واقعه ده ځکه چه نوحې حرمت دَ غزوه احد نه پس دې او دا دَ غزوه بدر واقعه ده نو په دې وجه دا مذکوره استدلال صحیح نه دې. (۴)

لیکن علامه قسطلانی رحمه الله دَ دې دواړو حضراتو اعتراض او جواب ردکولو سره وائی چه دَ دوی په دې خبره کښې نظردې چه مخفی نه دې ځکه چه حارثه رضی الله عنها ((اجتهدت علیه فی النوح)) نه دی وئیلی بلکه ((اجتهدت علیه فی البکاء)) وئیلی او اجتهاد فی البکاء نه نوحه لازم نه ده. په نوحه او بکاء کښې لوئ فرق دې، دَ نوحې مطلب خو دا دې چه وینا کوی او ژاړی. اودَ بکاء وجه خودا وی چه سړې خفه شی نو دَ ده دَ خُلې نه آواز اوځی، چغه هم اوځی او دا ناجائز نه دی، او دا بکاء ده نوحه نه ده. علامه قسطلانی رحمه الله نورفرمائې چه دَ علامه خطابی رحمه الله مذکوره قول نه دې دواړو حضراتو چه کوم استدلال کړې او دَ هغې چه کوم مفهوم بیان کړیدې، هغه هم صحیح نه دې ځکه چه هغوی ((لم یعنفها علی قولها)) په ذریعه په حدیث کښې ذکرشوې بکاء طرف ته اشاره کړیده او په دې خبره کښې هیڅ شک نشته چه په مړی باندې دَ خبنولو نه وړاندې اودَ هغې نه پس په دواړو وختونوکښې ژړا په اتفاق سره جائز ده. (۵)

**قوله: قال: یاأم حارثة إنها جنان فی الجنة وإن ابنك أصاب الفردوس الأعلی:** رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل اې ام حارثه په جنت کښې ډیر باغونه دی او ستاځوئ خو د فردوس اعلی ته رسیدلې دې.

**"انها" ضمیرکښې احتمالات:** ((إنها)) کښې چه کوم ضمیر دې هغه ضمیر مبهم دې او دَ دې تفسیر دَ مابعد په قول کښې دی لکه چه عرب وائی ((هی العرب تقول ماتشاء))(۶) نو په دې مثال کښې((هی)) ضمیر مبهم دې،دَدې تفسیردَ مابعد په کلمه یعنی((العرب)) کوی چه ((هی))

---

۱) (الجامع للترمذی (ج۲ص۱۵۱) أبواب تفسیر القرآن باب ومن سورة المؤمنون رقم (۳۱۷۴)-

۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۰۷)-

۳) (اعلام الحدیث (ج۲ص۱۳۶۲)-

٤) (فتح الباری (ج۶ص۲۷)-

۵) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۱۲) وأیضًا انظر موسوعة النحووالصرف والأعراب (٤۲۹)بحث الضمیر-

۶) (شرح القسطلانی (ج۵ص٤۸)-

نه مراد ((العرب)) دي دغه شان ((انها)) چه كوم ضمير دي دَ هغې تفسير دَ مابعد په كلمه يعنى ((جنان)) كوى.
اودا هم كيديشى چه ضميرشان وى او جنان مبتداء وى او دَدې تنكير تعظيم دَ پاره وى.(۱)
علامه عينى رحمه الله نقل كړى دى چه كله رسول الله ﷺ ام حارثه رضي الله عنها ته دا خوشخبرى واورولو حضرت ام حارثه رضي الله عنها په دې حالت كښې دَ هغه ځاىٔ نه واپس شوه چه خندل ئې او فرمائيل ئې ((بخ بخ لك ياحارثه))(۲)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې چه ترجمه كښې ((سهم غرب)) ذكر دې او په حديث باب كښې هم دَ ((سهم غرب)) ذكر موجود دې.

## ۱۵- بَاب: مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا

**اختلاف نسخ:** دلته كښې دَ صحيح بخارى په ټولو نسخوكښې دَ باب نه اول بسمله هم ذكر ده او دَ ابوذر په نسخه كښې بسمله ساقط ده. (۳)

**ماقبل سره مناسبت:** په تيروشوو بابونوكښې په مختلفو طريقوسره دَ شهيد فضيلت او مرتبې بيان كړى شوى دى او په دې باب كښې دَ حقيقى شهيد نښې بيانولې شى چه حقيقى شهيد هغه دې دَ چا قتال چه دَ كلمة الله دَ اعلاء دَ پاره وى نو هله به هغه مرتبې او فضيلتونه حاصل كړيشى دَ كوم چه شهيد سره وعده كړيشويده كنى نو هيڅ نه.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَ ترجمة الباب مقصد دَ اعلاء كلمة الله دَ پاره قتال كونكى فضيلت بيانول دى او دَ شرط جزاء محذوف ده يعنى ((فهوالمعتبر)) كه قتال دَ الله تعالى دَ كلمې دَ اعلاء دَ پاره وى نو معتبر به وى. (۴)

[۲۶۵۵] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(۵) قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ فَمَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ [ر: ۱۲۳]

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱٤ص۱۰۷)-
۲) (حواله بالا-
۳) (شرح القسطلانى (ج۵ص۴۸)-
٤) (فتح البارى (ج۶ص۲۸)-
۵) قوله: عن أبى موسى رضى الله عنه:الحديث مرتخريجه فى كتاب العلم باب من سأل وهو قائم «لماجانسا

## تراجم رجال

۱- سليمان بن حرب: دا ابوايوب سليمان بن حرب رحمه الله دې. د دوى تذكره «كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر.....» لاندې راغلى ده. (۱)

۲- شعبه: دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن حجاج عتكى بصرى رحمه الله دې. د دوى حالات «كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون.....» لاندې تير شو. (۲)

۳- عمرو: دا عمرو بن مره بن عبدالله بن طارق همدانى رحمه الله دې. (۳)

۴- ابووائل: دا ابووائل شقيق بن سلمه رحمه الله دې. د دوى حالات «كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط.....» ذيل كښې راغلى دى. (۴)

۵- ابوموسى: دا مشهور صحابى حضرت ابوموسى عبدالله بن قيس اشعرى رضي الله عنه دې. د دوى تذكره «كتاب الإيمان باب أى الإسلام أفضل؟» لاندې تيره شويده. (۵)

**قوله:** قال: جاء رجل إلى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: الرجل يقاتل للمغنم والرجل يقاتل للذكر والرجل يقاتل ليرى مكانه فمن في سبيل الله؟: حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه فرمائي چه نبى عليه السلام سره يو سړي راغلو نوونئى وئيل سړي د غنيمت د پاره قتال كوى او سړي د مشهورتيا د پاره قتال كوى او سړي د ځان خودلو د پاره جنګيږى نود دوى نه فى سبيل الله څوك دې؟

**رجل نه څوك مراد دې؟:** دلته د باب په روايت كښې رجل راغلې دې او همدغه روايت «غندر عن شعبة» په طريق هم امام بخارى نقل كړى دى، په هغې كښې «قال أعرابى» دې (۶) اودا د اعرابى لاحق بن ضميره په نوم يادولې شى. دغه حديث ابوموسى المدينى (الصحابة) كښې عفير بن معدان په طريق نقل كړيدې. او په دې كښې «سمعت لاحق بن ضميرة الباهلى قال: وفدت على النبى صلى الله عليه وسلم، فسألته عن الرجل يلتمس الأجر والذكر، فقال: ‹‹لاشئ له››، وفى إسناده ضعف» (۷)

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۱۰۵)-
۲) (كشف البار(ج۱ص۶۷۸)-
۳) (د دوى حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الأذان باب تسوية الصفوف عند الإقامة وبعدها-
۴) (كشف البارى (ج۲ص۵۵۹)-
۵) (كشف البارى (ج۱ص۶۹۰)-
۶) (انظر الصحيح للبخارى (ج۱ص۴۴۰) كتاب فرض الخمس باب من قاتل للمغنم هل ينقص من أجره؟ رقم (۳۱۲۶)-
۷) (فتح البارى (ج۶ص۲۸)-

داسې روایت دَ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه هم نقل دي: ((عن معاذ بن جبل أنه قال: یا رسول الله، کل بنی سلمة یقاتل، فمنهم من یقاتل ریاء.....)) که چرته دا حدیث صحیح وی نو د دې خبرې احتمال دې چه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه به همدغه سوال کړې وی کوم چه دې اعرابی اوکړو ځکه چه دَ حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه سوال خاص دې، یعنی په دې کښې دَ سوال تعلق بنوسلمه سره دې خودَ اعرابی سوال عام دې. او دا خوکیدې نشی چه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ته اعرابی اووئیلې شی، په دې وجه مذکوره روایات په مختلفو قصو باندې محمول کولې شی.(۱)

**ریاء او سمعه دواړه مذموم دی:** دَ باب په روایت کښې ((والرجل یقاتل لیری مکانه)) واردشویدې اودَ اعمش عن ابی وائل په طریق کښې ((ویقاتل ریاء)) راغلې دې. (۲)

دَ باب روایت خو سمعه (شهرت) دې او دوئم روایت ریاء سره متعلق دې لیکن بهر حال دواړه مذموم دی. (۳)

**قوله: قال: من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا فهوفی سبیل الله:** نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی چا چه د دې د پاره قتال اوکړوچه د الله تعالی کلمه دې اوچته شی نو هغه في سبیل الله دې. ((کلمة الله)) نه مراد کلمه توحید ده، نو چه کوم سړې دَ توحید کلمې دَ سرلوړئې دپاره جنګ کوی هغه مقاتل في سبیل الله دې نه چه دَ غنیمت، شهرت، بهادرئې او مړانې غوښتونکې دې. (۴)

**دَحدیث باب دَ طرق مختلفه وَ حاصل:** دَ حدیث باب مختلف طرق وړاندې کیخودو سره دا خبره حاصلیږی چه دَ قتال پنځه اسباب کیدیشی.① دَ غنیمت طلب ② دَ بهادرئې ښکاروندنه ③ ځان خودل ④ حمیت ⑤ غضب. او په دې کښې هر یو سبب دَ مدح او ذم اړخ لری. دَ دې دَ پاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ سوال کونکی دَ سوال جواب په او یا نه کښې ورنه کړو بلکه دا ئې اوفرمائیل ((من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا فهوفی سبیل الله)) (۵)دَ چا جنګ چه دَ الله تعالی دَ کلمې دَ سرلوړئې دَ پاره وی هم هغه قتال في سبیل الله دې.

**دَحضور صلی الله علیه وسلم جواب جوامع الکلم نه دی:** دَ حضور صلی الله علیه وسلم پورته ذکر شوې جواب دَ بلاغت او ایجاز دَ اعلی پیمانې حامل دې او دا جمله دَ جوامع الکلم نه ده. ځکه چه که هغوی صلی الله علیه وسلم دَ سوال کونکی دَ ذکر شوی امورو جواب ورکولو چه هغه په في سبیل الله کښې داخل نه دی نودَ دې خبرې احتمال وو چه دَ هغوی نه علاوه قتال که دَ څه بل څه دَ سبب نه وی نو هغه

---

۱ ) (حواله بالا-

۲ ) (انظر الصحیح للبخاری(ج۲ص۱۱۱۱) کتاب التوحید باب قوله تعالی:﴿ولقد سبقت کلمتنا لعبادنا المرسلین﴾رقم (۷۴۵۸)-

۳ ) (فتح الباری(ج۶ص۲۸)-

٤ ) (شرح الکرمانی(ج۱۲ص۱۱۳)-

۵ ) (فتح الباری (ج۶ص۲۸)-

في سبيل الله دي خو داسې څه خبره نشته. د دې دپاره هغوی ﷺ جامع او مانع جمله اختيار اوفرمائيله او په جواب کښې ئې د ماهيت قتال نه د مقاتل د حال طرف ته عدول اوکړو.(۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث باب مناسبت بالکل واضح اوظاهر دې.اودا مناسبت دحضور ﷺ دې قول((من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا))کښې دې.(۲)

## ۱۶- بَاب: مَنْ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**ماقبل سره مناسبت:** تيرشوی باب کښې د هغه سړی د فضيلت ذکر وو چه خالص د اعلاء کلمة الله د پاره جهاد اوکړی او په دې باب کښې د الله تعالى په لارکښې د قدمونو په خاورو ککړيدو فضيلت ذکر دې.

**دترجمة الباب مقصد:** دترجمة الباب مقصد واضح دې چه په دې کښې امام بخاری رحمه الله قتال في سبيل الله کښې د قدمونو په خاورو ککړيدو فضيلت بيانوی.

اود قدمونو په خاورو د ککړيدو مطلب د کافرانو سره په جنګ ورځنبيدل دی او په دې خبره کښې هيڅ شك شبه نشته چه د خلقو په خپل مينځ کښې جنګ کولو سره خاورې الوزی او دا دوړې سره د دې چه په ټولو اندامونو پريوځی خود قدمونو د خاص کولو وجه دا ده چه په ټولو حرکتونوکښې هم قدم اصل، ښکلې او عمده وی.(۳)

**قوله:** وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِنَ الْأَعْرَابِ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ إِلَى قَوْلِهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ. [التوبة:۱۲۰]

**د آيت ترجمه:** د الله تعالى قول دې د مدينې خلقو ته او کوم چه د هغوی خاؤشا اوسيږی د هغوی دپاره دا ښه نه وو چه د رسول الله ﷺ ملګرتيا اونه کړی او نه دا ښه وو چه خپل ځان د هغوی د ځان نه خوښ اوګڼړی، دا د دې سبب نه دی چه هغوی ته د الله تعالى په لار يعنی جهاد کښې کومه تنده اولګيده او کومه کمزوری اورسيده او چه کومه اولږه اوشوه او چه کوم تګ ئې اوکړو اود کافرانو د پاره د غصې سبب شو او د دښمنانو ئې چه کوم خبر واخستو په هغه ټولو باندې د هغوی په نوم يوه يوه نيکی اوليکلې شوه يقيناً الله تعالى د نيکوکارو اجر نه ضائع کوی. (۴)

**د آيت ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د آيت ترجمة الباب سره مطابقت د آيت په دې جز کښې دې **(ولايطئون موطئا يغيظ الكفار ولاينالون من عدو نيلا إلا كتب لهم به عمل صالح)** نو حضور ﷺ د عمل صالح دا تفسير بيان کړلو چه د کوم سړی قدمونه د الله

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۲۹)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۰۸)-
۳) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۰۸) وشرح القسطلانى (ج۵ص۴۸)-
۴) (بيان القرآن (ج۱سورة التوبة، الآية:۱۲۰)-

تعالى په لار کښې په دوړو ککړشى هغه به د دوزخ په اور نه لگى او دا د حضور ﷺ وعده ده او ښکاره خبره ده چه د هغوى وعده پخه ده. (۱)

او ابن المنير رحمه الله فرمائى چه د آيت مطابقت ترجمه سره داسې دې چه الله تعالى د هغه په لار کښې اوچتيدونکى قدمونوباندې هم د ثواب وعده کړيده سره د دې چه هغه قتال اونه کړى. (۲)

[۲۶۵۶] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا عَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو عَبْسٍ (۳) هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَبْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ [ر: ۸۶۵]

## تراجم رجال

۱- اسحاق: دا اسحاق بن منصور بن بهرام کوسج رحمه الله دې. د دوى تذکره ((کتاب الإيمان باب حسن اسلام المرء)) لاندې تيرشو. (۴)

۲- محمد بن المبارك: دا ابوعبدالله محمد بن المبارك بن يعلى قرشى صورى قلانسى رحمه الله دې. د دمشق اوسيدونکې وو(۵)

په کال ۱۵۳ھ کښې پيدا شوې وو. (۶)

هغه د معاويه بن سلام، عطاء بن مسلم الخصاف، صدقة بن خالد، يحيى بن حمزة الحضرمى، هشيم بن حميد الغسانى، اسمعيل بن عياش، مالك، دراوردى، مغيره بن عبدالرحمن الحزامى، عمرو بن واقد، عيسى بن يونس او ابن عيينه رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت کوى.

د هغوى نه د حديث روايت کونکوکښې د هغوى ځوئ محمد، اسحاق بن منصور کوسج، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمى، عبدالسلام بن عتيق، عمران بن بکار، محمد بن يحيى الذهلى، عبيد الله بن فضاله، محمد بن عوف، محمدبن محمدبن مصعب الصورى، وحشى، محمدبن مصفى، على بن عثمان نفيلى، احمد بن يوسف سلمى، عباس بن محمد ترقفى، ابوزرعه دمشقى، موسى بن عيسى بن المنذر رحمهم الله او نور حضرات هم شامل دى. (۷)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۲۶)-
۲) (المتوارى (ص۱۵۲)-
۳) (قوله: أبوعبس رضى الله عنه: الحديث مرتخرجه فى كتاب صلاة الجمعة باب المشى إلى الجمعة-
۴) (كشف البارى (ج۲ص۴۲۰)-
۵) (تهذيب الكمال(ج۲۶ص۳۵۲)-
۶) (الثقات لابن حبان (ج۹ص۷۱)-
۷) (شيوخ او تلامذه د پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۶ص۳۵۲-۳۵۴)-

ابوزرعه دَ وليد بن عقبه نه نقل كړى دى هغوى فرمائى: ((سمعت مروان بن محمد يقول: ليس فينا مثله، يعنى محمد بن المبارك)) (۱)

حضرت ابوزرعه رحمه الله فرمائى: ((شهدت جنازته فى شوال سنة خمس عشرة ومئتين، وصلى عليه أبو مسهر بباب الجابية، فلما فرغ أثنى عليه، وقال: يرحمه الله، فإنه..... فذكر جميلا)) (۲)

يحيى بن معين رحمه الله فرمائى: ((محمد بن المبارك شيخ الشام بعد أبى مسهر)) (۳)

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى ((هذا رجل الشام بعد أبى مُسهر)) (۴)

عجلى او ابوحاتم رحمه الله ((ثقة)) (۵)

دارقطنى رحمه الله هم هغه ته ثقه وئيلې. (۶)

ابن شاهين رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړيدې.(۷)

ابن حبان رحمه الله هم هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړيدې او فرمائيلى: ((وكان من العُبّاد))(۸)

ابونعيم اصفهانى رحمه الله فرمائى ((ذو العقل الوافى، والورع الصافى، والبيان الشافى)) (۹)

علامه ذهبى رحمه الله هغه په دې جليل القدر الفاظو سره ياد كړيدې. ((الإمام، العابد، الحافظ، الحجة، الفقيه، مفتى دمشق)) (۱۰)

خليلى رحمه الله فرمائى ((ثقة))(۱۱)

ذهلى رحمه الله فرمائى ((كان أفضل من رأيت بالشام))(۱۲)

حافظ ذهبى رحمه الله نور فرمائى ((وثقه جماعة)) (۱۳)

دا دَ اصول سته راوى دې.(۱۴)

---

۱) (تهذيب الكمال (ج۲۶ص ۳۵٤)-
۲) (حواله بالا-
۳) (حواله بالا-
٤) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا-
۶) (سنن الدار قطنى (ج۱ص ۳۲۰ وج۲ص ۱۸٤)-
۷) (تهذيب التهذيب (ج۹ص ٤۲٤)-
۸) (الثقات لابن حبان (ج۹ص ۸۱)-
۹) (حلية الأولياء (ج۹ص۲۹۸)-
۱۰) (سير أعلاالنبلاء (ج۱۰ص ۳۹۰)-
۱۱) (تهذيب التهذيب (ج۹ص ٤۲٤)-
۱۲) (حواله بالا-
۱۳) (تذكره الحفاظ (ج۱ص۳۸۷)-
۱٤) (الكاشف (ج۲ص ۲۱٤)-

او امام بخارى رحمه الله د ده نه صرف يو روايت اخستې دې. (١)
لكه چه نن د ابوزرعه رحمه الله په حواله سره اوس تيرشو. د هغه وفات كال ۲۱۵ﻫ كښې شوې
رحمه الله تعالى رحمة واسعة.
تنبيه: حافظ ابن حجر رحمه الله د هغوى باره كښې د حافظ ذهبى رحمه الله دا قول نقل كړيدې
((وأحاديثه تستنكر)) (٢)
ليكن دا غلط دى ځكه چه حافظ ذهبى د هغوى رحمه الله ترجمه (ميزان الاعتدال) كښې اصلاً
هډو نقل كړې نه ده او په اصل كښې د هغه پورته ذكرشوې قول د محمد بن المتوكل
العسقلانى باره كښې دې او حافظ صاحب ته دلته تسامح شويده.(٣)
فائده: عبدالله بن محمد الدمشقى رحمه الله فرمائى: ((سمعت محمد بن المبارك يقول: ما آمن بالله من
رجا مخلوقا فيما ضمن الله له)) (٤) يعنى د كوم څيز ضمانت چه الله تعالى وركړيدې په هغې
باندې چه چا د مخلوق نه اميد اوساتلو نو هغه په الله تعالى باندې ايمان نه دې راوړې.
مطلب دا چه د انسان جمله ضرورياتو او حاجاتو ذمه الله تعالى اخستې ده. اوس كه يو
سړې د مخلوق نه د ضرورتونو د حاصلولو خواهش مند وى نو د هغه ايمان په الله تعالى
باندې هډو دې نه، ځكه چه كه د هغه په الله تعالى ايمان وې نو مخلوق نه به ئى خپل
اميدونه نه تړل.
٣- يحيى بن حمزة: دا ابوعبدالرحمن يحيى بن حمزه بن واقد حضرمى بلتهى رحمه الله
دې.(۵)
۴- يزيد بن ابى مريم: دا ابوعبدالرحمن يزيد بن ابى مريم انصارى رحمه الله دې.
۵- عبايه بن رافع بن خديج: دا عباية بن رفاعة بن رافع بن خديج انصارى رحمه الله دې.
۶- ابوعبس: دا ابوعبس عبدالرحمن بن جبر بن عمرو بن زيد رضي الله عنه دې. (۶)
قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ما اغبرتا قدما عبد فى سبيل
الله فتمسه النار: حضرت ابوعبس عبدالرحمن بن جبر رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم
فرمائيلى چه د كوم يو سړى قدمونه د الله تعالى په لار كښې د دوړو شى نو د دوزخ اُور به
په هغه نه لګى.

١) (سير أعلام النبلاء (ج١٠ص٣٩١)-
٢) (تهذيب التهذيب (ج٩ص٤٢٤)-
٣) (تعليقات تهذيب الكمال (ج٢۶ص٣۵۵)-
٤) (حلية الأولياء (ج٩ص٢٩٩)-
۵) (د هغوى د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الجنائز باب ماينهى من الحلق عند المصيبة-
۶) (د دې دريواړو حضراتو د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الجمعة باب المشى إلى الجمعة-

حموی او مستملی په روایت کښې ((اغبرتا)) تثنیه سره دې. دا یو لغت دې او د نورو په نزد ((اغبرت)) دې او همدغه فصیح دی. (۱)

**د الله تعالی په لارکښې د حرکاتو اوتصرفاتو عظمت:** د حدیث مطلب دا دې چه د دوړو په موجودګئی سره به نې د دوزخ أور نه سوزوی او په دې کښې د الله تعالی په لارکښې تصرفاتو او حرکاتو ته اشاره ده. لړه شان اندازه اولګونی چه صرف په قدمونو باندې د دوړو لګیدو په وجه د دوزخ أور حرامیږی نو د هغه سړی به څه مرتبه او فضیلت وی چا چه خپل پوره طاقت، قوت او کوشش د الله تعالی په لارکښې لګولې وی.(۲)

**د حدیث باب هم معنی نوراحادیث:** ابن حبان رحمه الله د حضرت جابر رضی الله عنه نه د روایت باب د معنی په شان روایت نقل کړیدې. چه حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه هغه په غزوه کښې وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ((من اغبرت قدماه فی سبیل الله حرمه الله علی النار)). حضرت جابر رضی الله عنه فرمائي چه کله خلقو د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارك واوریدو نو هغوی د خپلو خپلو سورلونه راؤدانګل او د دغه ورځ نه وړاندې مونږ خلق دومره پیدل تلونکی نه دی لیدلی. (۳)

دغه شان علامه طبرانی رحمه الله هم د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل کړې دی چه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو((من اغبرت قدمه فی سبیل الله باعدالله منه النار مسیرة ألف عام للراکب مستعجل))(۴)

یعنی د چا قدم چه د الله تعالی په لار کښې د دوړو شو نو الله تعالی به د هغه نه د دوزخ أور دومره لرې کړی څومره چه د یو تیز سور د زرو کالو مسافت وی.

مطلب دا چه یو تیز رفتار سور به زرکاله کښې څومره فاصله کوی د هغې په اندازه به الله تعالی د دغه سړی نه د دوزخ أور لرې کړی د چا قدمونه چه د الله تعالی په لارکښې د دوړوشوې وی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت ظاهر دې او هغه ((مااغبرتاقدماعبد.....)) کښې دې.(۵)

## ۱۷-بَاب: مَسْحِ الْغُبَارِ عَنْ الرَّأْسِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**ماقبل سره ربط:** په تیرشوی باب کښې د الله تعالی په لارکښې د قدمونو د دوړوکیدو د فضیلت ذکر وو. په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه قدمونه کوم چه په دوړو ککړ شوی وی، د فضیلت څیز دې خود دې صفاکول جائز او مباح دی.

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص ۳۰) وشرح القسطلانی (ج۵ص۴۹)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص ۳۰)-
۳) (الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج۸ص۶۲)-
٤) (مجمع الزوائد للهیثمی (ج۵ص۲۸۵)-
۵) (عمدة القاری(ج ١٤ص۱۰۹)-

**د ترجمة الباب مقصد**: علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د امام بخارى رحمه الله مقصد دې ترجمې نه د سر نه د جهاد دوړود مسح عدم كراهيت بيان دې. يعنى د الله تعالى په لاركښې په سر وغيره لګيدلې دوړې صفا كولو عدم كراهيت بيانول غواړى. (۱)

ابن المنير رحمه الله فرمائى چه په اسلام كښې بعضو حضراتو د اودس نه پس مسح بالمنديل مكروه او ناخوښه ګنړله، د دې د پاره متبادرالى الذهن دا كيږى چه د جهاد آثار يعنى دوړې وغيره مسح هم ناخوښه اومكروه به وى نود دې وهم لرې كولو د پاره امام بخارى رحمه الله دا ترجمة الباب قائم كړو.(۲)

حافظ صاحب د ابن المنير رحمه الله د قول نور وضاحت كولو سره ليكى چه د جهاد آثارو او اودس آثارو كښې فرق په دې اعتبار سره دې چه نظافت مطلوب شرعى دې، غبار د آثار جهاد نه دى، نو چه كله جهاد ختم شونود هغې د آثار باقى ساتلو هيڅ معنى نشته. او د اودس نه مقصد مونځ دې نو دا مستحب پاتې شو چه د مقصود د حصول پورې آثار هم باقى پاتې كړيشى. دغه شان په دواړو مسحوكښې واضح فرق دې.(۳)

[۲۶۵۷] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ (۴) أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ لَهُ وَلِعَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ ائْتِيَا أَبَا سَعِيدٍ فَاسْمَعَا مِنْ حَدِيثِهِ فَأَتَيْنَاهُ وَهُوَ وَأَخُوهُ فِي حَائِطٍ لَهُمَا يَسْقِيَانِهِ فَلَمَّا رَآنَا جَاءَ فَاحْتَبَى وَجَلَسَ فَقَالَ كُنَّا نَنْقُلُ لَبِنَ الْمَسْجِدِ لَبِنَةً لَبِنَةً وَكَانَ عَمَّارٌ يَنْقُلُ لَبِنَتَيْنِ لَبِنَتَيْنِ فَمَرَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَسَحَ عَنْ رَأْسِهِ الْغُبَارَ وَقَالَ وَيْحَ عَمَّارٍ تَقْتُلُهُ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ عَمَّارٌ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللَّهِ وَيَدْعُونَهُ إِلَى النَّارِ [ر:۴۳۶]

## تراجم رجال

۱- **ابراهيم بن موسى**: داابواسحاق ابراهيم بن يزيد الفراء رازى تميمى رحمه الله دې. (۵)

۲- **عبدالوهاب**: داعبدالوهاب بن عبدالمجيد ثقفى رحمه الله دې. د دوى تذكره ((كتاب الايمان باب حلاوة الايمان)) لاندې راغلې ده.(۶)

۳- **خالد**: داخالدبن مهران حذاء رحمه الله دې.

۴- **عكرمه**: دا مشهورمفسر حضرت عكرمه مولى ابن عباس رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذكره ((كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم....)) لاندې تيره شوه. (۷)

---

۱) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۰۹)-
۲) (المتوارى (ص۱۵۳)-
۳) (فتح البارى (ج۶ص۳۰)-
۴) (قوله: عن عكرمة رحمه الله: الحديث مرتخريجه فى كتاب الصلاة باب التعاون فى بناء المسجد-
۵) (د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها-
۶) (كشف البارى (ج۲ص۲۶)-
۷) (كشف البارى (ج۳ص۳۶۱-۳۷۰)-

۵- ابن عباس: دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات ((بدء الوحى)) څلورم حديث او ((كتاب الإيمان باب كفران العشير....)) لاندې راغلي دي.(١)

دَ حديث ترجمه: حضرت عكرمه رحمه الله فرمائي ماته او حضرت على بن عبدالله ته حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اووئيل چه حضرت ابوسعيدالخدرى رضي الله عنه له لاړشئ او دَ هغوى نه دَ هغوى حديث واورئ. نومونږ هغوى له راغلو هغه اودَ هغه رور په خپل باغ كښې وو او باغ ئې اوبه كولو. كله چه هغوى مونږ اوليدو نو دَ احتباء په صورت كيناستل او وئى فرمائيل چه دَ مسجد نبوى دَ تعمير په وخت مونږ به يوه يوه خښته اوچتوله او عمار به دوه دوه خښتې اوچتولې. نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ هغه خواكې تيرشو او دَ هغه دَ سر نه ئې دوړې صفا كړې او وئې فرمائيل دَ عمار بې كسى دَ افسوس قابله ده، دې به يو باغى ډله قتل كوى، دې به هغوى دَ الله تعالى طرف ته راغواړى او هغوى به دې دوزخ طرف ته راغواړى.

دَ روايت باب دَ بعض اجزاء توضيح: په روايت كښې دَ على بن عبدالله نه مراد دَ حضرت ابن عباس خوئ على دې. (٢)

((فاحتبى)) دا دَ باب افتعال نه دى او احتباء معنى دا ده چه په سرين يعنى دَ كوناټو په سر كيناسته او زنگونونه ئې اودرول اودَ هغې نه چاپيره سهارا اخستلو دَ پاره دواړه لاسونه تړل يا دَ ملا او زنگونو نه چاپيره كپړه تړل. (٣)

((ويح)) كلمه دَ ترحم ده او فعل محذوف مفعول مطلق كيدو په بناء باندې منصوب دې. (۴)

دَ حضرت ابوسعيدالخدرى رضى الله عنه دا رور څوک دې؟: حافظ شرف الدين دمياطى رحمه الله دَ حديث باب په الفاظو اشكال كولوسره فرمائى چه دَ حديث الفاظ صحيح نه دى (وهوأخوه) ځكه چه دَ حضرت ابوسعيد الخدرى رضي الله عنه صرف هم يو نسبى رور قتاده بن النعمان الظفرى رضي الله عنه وو چه دَ دوى دَ شريكې مور نه پيدا شوې رور وو. خودَ هغوى وفات دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخلافت په زمانه كښې شوې وو، هغه وخت دَ على بن عبدالله بن عباس پيدائش هم نه وو شوې. ځكه چه هغه دَ حضرت على رضي الله عنه دَ دورخلافت په آخرى ورځوكښې پيداشوې وو.نو دَ على بن عبدالله ملاقات قتاده بن النعمان الظفرى رضي الله عنه سره څنگه صحيح كيديشى؟ (۵)

دغه شان دَ حضرت عكرمه رحمه الله ملاقات هم دَ حضرت قتاده بن النعمان الظفرى رضي الله عنه نه ثابت نه دې ځكه چه هغه هم عهدفاروقى نه پس پيدا شوې دې.(۶)

---

١) (كشف البارى (ج١ص٤٣۵و٢٠۵)-
٢) (فتح البارى (ج١ص٥٤١) اودَعلى بن عبدالله دَپاره اوگورئ كتاب الصلاة باب التعاون فى بناء المسجد
٣) (عمدة القارى (١٤ص١٠٩) والقاموس الوحيد (ص٣٠٩) مادة حبى-س
٤) (عمدة القارى (ج١٤ص١٠٩) وموسوعة النحو ومالصرف والإعراب (ص٧١٧)-
٥) (حواله بالا وعمدة القارى (ج١٤ص١٠٩) وإرشاد السارى (ج٥ص٤٩)-
۶) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١١٤)-

د دې اشكال جواب علامه كرمانى يو خودا وركړې دې چه كيديشى چه دا د هغه څول رضاعى رور وى. هم دا جواب حافظ صاحب هم اختيار كړيدې.(١)

اودونم جواب علامه كرمانى دا وركړې چه مراد ((أخ فى الإسلام))هم كيدې شى.(٢) دَ الله تعالى ارشاد دې: ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾.(٣)

**"الفئة الباغية" نه كومه ډله مراد ده؟** په حديث باب كښې راغلى دى چه حضرت عمار به باغى جماعت قتل كوى چه دې به هغوى دَ الله تعالى طرف ته راوغواړى او هغوى به دې دَ دوزخ دَ أور طرف ته. اوس سوال دا دې ((الفئة الباغية)) نه كوم باغى جماعت مراد دې؟ ① علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى ((الفئة الباغية))نه اهل مكه مرادى چا چه حضرت عماربن ياسر رضى الله عنهما دَمكې نه بهر اوويستلو او سخت تكليف ئې وركړو.

پاتې شو دا سوال چه په حديث كښې فعل مضارع استعمال كړيشوې دې يعنى ((تقتله، يدعوهم)) او ((يدعونه )) چه په مستقبل كښې دَ دې تولو حالاتو په وقوع كيدو باندې دلالت كوى نو د دې جواب دا دې چه فعل مضارع دلته دَ ماضى په معنى كښې مستعمل دې او دا استعمال د اهل عرب په نزد شائع او ذائع دې.(۴)

② علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه په حديث كښې په مستقبل كښې واقع كيدونكې يو واقعې طرف ته اشاره كړيشويده. اوهغه واقعه په جنګ صفين كښې پيښه شوه كومه چه د رسول الله ﷺ معجزه وه. په هغه جنګ كښې يو طرف ته حضرت على رضي الله عنه او بل طرف ته حضرت معاويه رضي الله عنه اودَ هغه ملګرى وو. دَ دې وجه ((الفئة الباغية)) معنى ((الجماعة المخطئة)) به وى، چه حضرت على رضي الله عنه په حقه وو او حضرت معاويه رضي الله عنه نه اجتهادى غلطى شوې وه، هم په دې جنګ كښې حضرت عمار رضي الله عنه شهيدشو چه دَحضرت على رضي الله عنه دَ ملګرونه وو.(۵)

③ اوبعضو حضراتو وئيلى دى ((الفئة الباغية)) نه خوارج مراد دې ليكن دا توجيه په هر لحاظ سره بديهى البطلان ده ځكه چه دَ خوارجو دَ حضرت على رضي الله عنه خلاف خروج بالاتفاق دَ حضرت عمار رضي الله عنه دَ شهادت نه پس شوې دى. علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى:

((ولايصح أن يقال أن مراده ((الخوارج))، الذين بعث على عمارا يدعوهم إلى الجماعة لأن الخوارج إنما خرجوا على على بعد قتل عمار بلا خلاف، فإن ابتداء أمر الخوارج كان عقب التحكيم، وكان التحكيم عقب انتهاء القتال بصفين، وكان قتل عمار قبل ذلك قطعا)) (۶)

---

١ ) (حواله بالا وفتح البارى (ص١١ ٥٤)-
٢ ) (شرح الكرمانى (ج١٢ص ١١٤)-
٣ ) (الحجرات: ١٠)-
٤ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص٢٧)-
٥ ) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١١٣) وعمدة القارى (ج١٤ص١٠٩-١١١)-
٦ ) (إرشاد السارى (ج٥ص٥٢)-

بیا علامه عیني او علامه قسطلاني رحمه الله فرمائی چه دلته راجح جواب د علامه کرماني رحمه الله دي. ځکه چه د حدیث ظاهر سیاق د هغې موافقت کوي، خو د علامه ابن بطال رحمه الله قول مبني برادب دې چه هغوی د ادب په توګه د اهل صفین طرف ته د بغاوت د نسبت نه احتراز کړیدې.(١)

د حدیث باقي تشریحات ((كتاب الصلاة باب التعاون في بناء المسجد)) لاندې تیرشوی دی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث مناسبت ترجمة الباب سره په دې جمله کښې دې. ((ومسح عن رأسه الغبار)) (٢)

## ١٨- بَاب: الْغَسْلِ بَعْدَ الْحَرْبِ وَالْغُبَارِ

**ماقبل سره مناسبت:** په تیرشوي باب کښې د دوړو وغیره د مسح د عدم کراهیت بیان وو او په دې باب کښې د دغه دوړو د غسل او وینځلو د عدم کراهیت بیان دی.

**د ترجمې مقصد:** علامه قسطلاني رحمه الله فرمائی چه امام بخاري رحمه الله د جنګ نه پس د دوړو د وینځلو جواز بیانول غواړي. (٣) بلکه دا د فعل نظافت په نقطه نظر سره هم بهتر او اولی دې لکه چه وړاندیني باب کښې چه تیرشو.خو علامه عیني رحمه الله فرمائی چه پورتنئ ترجمه په دوو څیزونوباندې مشتمل ده. یو غسل او دوئم دوړې. نو یو امر خو دا دې چه نبي کریم ﷺ د جنګ نه پس غسل فرمائیلې وو، دوئم د دې امر بیان دې چه د جبرائیل امین سر په دې جنګ کښې د دوړو شوې وو.(٤)

[٢٦٥٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ (٥) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَجَعَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَوَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ وَقَدْ عَصَبَ رَأْسَهُ الْغُبَارُ فَقَالَ وَضَعْتَ السِّلَاحَ فَوَاللَّهِ مَا وَضَعْتُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَيْنَ قَالَ هَا هُنَا وَأَوْمَأَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ قَالَتْ فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣٨٩١]

## تراجم رجال

١- محمد: دا ابوعبدالله محمدبن سلام بیکندی رحمه الله دې.

٢- عبدة: دا عبده بن سلیمان بن حاجب کلابی رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذکره ((کتاب

---

١) (عمدة القاری (١٤ج ١١٠) وشرح القسطلانی (ج٥ص٥٠)-
٢) (عمدة القاری (ج١٤ص١٠٩)-
٣) (شرح القسطلانی (ج٥ص٥٠)-
٤) (عمدة القاری (ج١٤ص١١٠)-
٥) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الصلاة باب الخیمة فی المسجد للمرضی وغیرهم

الإیمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم أنا أعلمکم بالله.....)) لاندې راغلی دہ.(۱)

۳-هشام: دا ابوالمنذر هشام بن عروه رحمه الله دي.

۴-عروه: دا حضرت عروه بن زبیر بن عوام رحمه الله دي.

۵-عائشه: دا ام المؤمنین حضرت عائشه بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنها ده. دَ دې دریوارو حالات ((بدء الوحی)) دَ دوئم حدیث لاندې راغلی.(۲)

**قوله:** أن رسول الله صلی الله علیه وسلم لما رجع یوم الخندق ووضع السلاح واغتسل فأتاه جبریل وقد عصب رأسه الغبار: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله رسول الله ﷺ دَ غزوه خندق نه واپس راغلو نو وسله ئې کیخوده او غسل ئې اوفرمائیلو. په دې دوران کښې حضرت جبرائیل علیه السلام راغلو اودَ هغه په سر باندې دوړې جمع شوې وې.

((قد عصب رأسه)) دا جمله حالیه ده او مطلب دا دې چه څنګه په سر باندې پټنۍ تړلې وی او دې پټنۍ ټول سر راګیرکړې وی، دغه شان دوړو دحضرت جبرائیل علیه السلام سر راګیرکړې وو.(۳) او حدیث باب سره متعلق نورتفصیلات به مغازی کښې راځي. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حدیث باب مناسبت په دې الفاظوکښې دې. ((واغتسل، فأتاه جبریل وقد عصب رأسه الغبار)) (۵)

## ۱۹-باب: فضل قول الله تعالی: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ فَرِحِينَ

بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ [آل عمران:۱۶۹-۱۷۱]

**ماقبل سره مناسبت:** په وړاندینو بابونوکښې دَ الله تعالی په لارکښې دَشهید کیدو مختلفو فضیلتونو ذکر وو، په دې باب کښې هم دَ شهید فی سبیل الله دَ یو خالص فضیلت ذکر دې، هغه دا چه شهید مړ نه دې بلکه ژوندې وی، او دَ هغه دَ رب دَ طرف نه هغه ته رزق ورکولې شی.

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۹۳-۹٤)-

۲) (کشف الباری (ج۱ص۲۹)-

۳) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۰) وقال العلامة الخطابی رحمه الله فی أعلام الحدیث (ج۲ص۱۳۶۳) قوله: عصب رأسه الغبار، معناه: رکب رأسه الغبار وعَلِقَ به. یقال: عصب الریق بفمی: إذا جف، فبقیت منه لزوجة تمسک الفم

٤) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۹۹و ۳۰۹-۳۰)-

۵) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۰)-

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې دَ هغه حضراتو فضيلت ذکر کول غواړى، دَ چا باره کښې چه آيات ﴿ولاتحسبن الذين قتلوا....﴾ (١)

اودَ ترجمة الباب تقديرى عبارت داسې دې.((باب فضل من وردفيه قول الله تعالى......)) ځکه چه دَ ترجمة الباب ظاهرى الفاظ دلته مراد نه دى، په دې وجه اسماعيلى دَ ترجمې نه دَ فضل لفظ حذف کړې دې. (٢)

**په ترجمة الباب کښې دَ مذکوره آيات خلاصه:** په پورته ذکر شوى آيت کښې دَ دې امر ذکر دې چه کوم خلق دَ الله تعالى په لارکښې دَ شهادت اوچته مرتبه مومى نو هغوئ ته نۀ مړه وئيلِ پکاردى نه دا گنړل پکار دى ځکه چه هغه احياء او ژوندى دى او هغوى ته دَ هغوى دَ رب دَ خوانه رزق هم ورکولې کيږى او الله تعالى چه کوم فضل او کرم هغوى سره کړيدې هغوى په دې خوشحاله او راضى دى او دا چه الله تعالى دَ محسنينو اجر نه ضائع کوى.

**دَ حيات الشهداء حقيقت:** په ترجمة الباب کښې ذکرکړيشوې آياتونو کښې عامو مسلمانانو ته خطاب کولو سره اوفرمائيل چه تاسو خلق دَ الله تعالى په لارکښې قتل کړيشوو خلقو ته مړه مه وائې، همدغه ممانعت سورة البقرة کښې هم راغلې دې دَ الله تعالى ارشاد دې ﴿ولاتقولوالمن يقتل فى سبيل الله أموات بل أحياء ولكن لاتشعرون﴾ (٣)

دَ شهيد متعلق دا وئيل چه هغه مړشو صحيح او جائز دې خودَ هغه مرګ دَ نورو مړو په شان ګنړلو ممانعت کړيشويدې. دَ دې وجه دا ده چه دَمرګ نه پس لکه دَ برزخ ژوند دَ هرسړى روح ته حاصل دې. اوهم دَ دې نه دَ سزا او جزا ادراک کيږى ليکن شهيد ته په دې حيات کښې دَ نورو مړو نه يو قسم امتياز حاصل دې او هغه امتيازدا دې چه دَ حيات آثار هغه کښې دَ نورو نه قوى دې. لکه څنګه چه په انمله کښې دَ ذکاء حس کوم چه دَ آثار حيات نه دې په نسبت دَ پوندې طبًا او حسًا قوى دې. تردې پورې چه دَ شهيد دَ دې حيات دَ قوت يو اثر په خلاف دَ معمولى مړو دَ هغه جوسه ظاهرى پورې هم رسيدلې چه دَ هغه بدن سره دَ دې چه دَ غوښې نه جوړدې زمکه ئې نه متاثر کوى او په مثال دَ ژوندئى جوسې صحيح او سالم پاتې کيږى. لکه څنګه چه احاديث او مشاهدات ګواه دى نو دَ دې امتياز او خصوصيت دَ وجه شهداوٴ ته احياء اوونيلې شو او هغوى ته دَ مړو وئيلو ممانعت کړې شويدې او همدغه هغه ژوند دې کوم کښې چه انبياء عليهم السلام دَ شهداوٴ نه هم زيات امتيازى قوت لرى. تردې چه دَ ظاهر مرګ نه پس دَ صحيح بدن سره يو اثر دَ دې حيات دَ دې عالم په احکاموکښې دا هم ظاهريږى چه په مثال دَ ژوندو خاوندانو دَ هغوى بيبيانوسره نکاح کول جائز نه دى او دَ هغوى مال په ميراث کښې نه تقسيميږى، نو په دې حيات کښې دَ ټولو نه زيات قوى انبياء عليهم السلام دى بيا شهداء دى او بيا نور مړى. (۴)

---

١ ) (آل عمران:٧٩-٨١)-
٢ ) (عمدة القارى(ج ١٤ص ١١٠)-
٣ ) (البقرة: ١٥٤)-
٤ ) (بيان القرآن(ج ١ص ٨٧-٨٨)-

**شهداوته د رزق ملاویدلو مطلب:** شهداء ته د رزق ملاویدلو کیفیت په احادیث صحیحه کښې راغلې دې چه د دوی ارواح د عرش په قنادیلو کښې اوسیږی او د جنت د نهرونو نه اوبه څکی، او د هغې میوې خوری. مسند احمد، ابوداوٗد، ترمذی او ابن ماجه کښې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې

«قال رسول الله صلی الله علیه: لما أصیب إخوانکم بِأُحد جعل الله عزوجل أرواحهم فی أجواف طیر خضر، ترد أنهار الجنة، تأکل من أثمارها، وتأوی إلی قنادیل من ذهب فی ظل العرش...»(۱)

**یواشکال اود هغې جواب:** اودا اشکال چه کله هغه په جنت کښې وی نو د حشر په ورځ به څنګه راویستلې شی؟ نو د دې جواب دا دې چه هغه به په جنت کښې نه وی بلکه هم په خپلو قبرونوکښې به وی لیکن دا حصه د نهرونو او میوو به د یوداسې مقام نه ملاویږی چه جنت سره به متعلق وی لکه څنګه چه به کافران هم په قبرونوکښې وی لیکن هغوی ته به عذاب د دوزخ ورکړې کیدیشی.(۲)

[۲٦۵۹] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۳) قَالَ دَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الَّذِينَ قَتَلُوا أَصْحَابَ بِئْرِ مَعُونَةَ ثَلَاثِينَ غَدَاةً عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ عَصَتْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ قَالَ أَنَسٌ أُنْزِلَ فِي الَّذِينَ قُتِلُوا بِبِئْرِ مَعُونَةَ قُرْآنٌ قَرَأْنَاهُ ثُمَّ نُسِخَ بَعْدُ بَلِّغُوا قَوْمَنَا أَنْ قَدْ لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَرَضِينَا عَنْهُ [ر: ۲٦٤۷]

## تراجم رجال

۱- **اسماعیل بن عبدالله:** دا ابوعبدالله اسماعیل بن ابی اویس عبدالله بن عبدالله بن اویس بن مالك بن ابی عامر اصبحی رحمه الله دې. د ده حالات «کتاب الإیمان باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال» لاندې راغلی دی.(۴)

۲- **مالك:** دا امام مالك بن انس بن مالك بن ابی عامرالاصبحی المدنی رحمه الله دې. د ده

---

۱) (مسندالإمام أحمد (ج۱ص۲٦٦) ومسلم ۹ج۲ص۱۳۵) کتاب الإمارة. باب بیان أن أرواح الشهداء فی الجنة. وأنهم أحیاء عندربهم یرزقون رقم(٤۸۸۵) وسنن أبی داوٗد (ج۱ص۳٤۱) کتاب الجهاد باب فی فضل الشهادة رقم (۲۵۲۰) والجامع للترمذی (ج۲ص۱۳۰) أبواب تفسیر القرآن باب ومن سورة آل عمران رقم (۳۰۱۱) وابن ماجه (ص۲۰۱) أبواب الجهاد باب فضل الشهادة فی سبیل الله رقم (۲۸۰۱)-

۲) (بیان القرآن (ج۱سورة آل عمران) والجامع لأحکام القرآن للقرطبی (ج٤ص۲٦۹)-

۳) (قوله: عن أنس بن مالك رضی الله عنه: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الوتر باب القنوت قبل الرکوع وبعده رقم (۱۰۰۱)-

٤) (کشف الباری (ج۲ص۱۱۳)-

حالات ((بدءالوحی)) دَ دوئم حديث په ذيل کښې راغلی. (۱)

۳-اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه: دا اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه انصاری رحمه الله دي. دَ ده حالات ((کتاب العلم باب من قعد حيث ينتهي به المجلس.....)) (۲)

۴-حضرت انس بن مالك رضي الله عنه: دا مشهورصحابی خادم رسول ﷺ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ ده حالات ((کتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې راغلی دی. (۳)

**دَ حدیث ترجمه:** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائي چه رسول ﷺ دَ دې خلقو دَ پاره دَ ديرشو ورځو(يوې مياشت پورې) بددعا اوفرمائيله چا چه اصحاب بئر معونه قتل کړې وو. قبيله رعل، ذکوان او عصيه باندې چا چه دَ الله تعالی او دَ هغه دَ رسول نافرمانی کړې وه. حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه کوم اصحاب بئرمعونه کښې قتل کړيشوې وو دَ هغوی باره کښې دَ قرآن کريم آيت نازل شوی وو، کوم چه مونږ هم لوستلې وو خو يو څوورځې پس منسوخ شو. هغه آيت مبارك دا وو. ﴿بلغوا قومنا أن قد لقينا ربنا، فرضي عنا ورضينا عنه﴾.

په حديث کښې دَ ذکر شوې واقعې تفصيل په کتاب المغازی کښې غزوه بئرمعونه لاندې راغلې دې. (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مطابقت داسې دې چه په ترجمة الباب کښې مذکوره آيت هم دَ هغه صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين په حق کښې نازل شويدې کوم چه په بئر معونه کښې شهيدان شوې وو.(۵)

**فائده:** ابن بطال رحمه الله فرمائي چه په ترجمة الباب کښې مذکوره آيت دَ دې خبرې دليل دې چه کوم سړې په دهوکه سره قتل شی هغه شهيددې، ځکه چه اصحاب بئرمعونه هم په دهوکه سره قتل شوې وو.(۶)

[۲۶۶۰] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (۷) يَقُولُ اصْطَبَحَ نَاسٌ الْخَمْرَ يَوْمَ أُحُدٍ ثُمَّ قُتِلُوا شُهَدَاءَ فَقِيلَ لِسُفْيَانَ مِنْ آخِرِ ذَلِكَ الْيَوْمِ قَالَ لَيْسَ هَذَا فِيهِ [۳۸۱۸، ۴۳۴۲]

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۲۹۰) و کشف الباری (ج۲ص۸۰)-
۲) (کشف الباری (ج۲ص۲۱۳)-
۳) (کشف الباری (ج۲ص۴)-
۴) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۶۱)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۱۱)-
۶) (شرح ابن بطال (ج۵ص۲۹)-
۷) (قوله: جابربن عبدالله رضی الله عنهما: الحديث أخرجه البخاری أيضًا (ج۲ص۵۷۹) كتاب المغازی باب غزوة أحد. رقم (۴۰۴۴) و (ج۲ص۶۶۶) تاب التفسير سورة المائدة باب ﴿إنما الخمروالميسر والأنصاب والأزلام رجس من عمل الشيطان﴾ رقم (۴۶۱۸) والحديث من إفراده-

# تراجم رجال

۱- علی بن عبدالله: دا امیر المؤمنین فی الحدیث امام علی بن عبدالله ابن المدینی رحمه الله دې. دَ هغوی حالات ((کتاب العلم باب الفهم فی العلم)) لاندې راغلی دی. (۱)

۲- سفیان: دا مشهور محدث سفیان بن عُیَینه بن ابی عمران کوفی رحمه الله دې. دَ ده حالات ((بدء الوحی)) دَ اول حدیث لاندې (۲) او تفصیلی حالات ((کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا)) په ذیل کښې راغلی دی. (۳)

۳- عمرو بن دینار المکی: دا عمرو بن دینار جمحی ابومحمد المکی الاثرم رحمه الله دې.(۴)

۴- حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنهما: دا مشهور صحابی، حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنهما دې. (۵)

قوله: یقول: اصطبح ناس الخمر یوم أحد، ثم قتلوا شهداء: عمرو بن دینار نه روایت دې چه هغوی د حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنهما نه اوریدلی دی چه هغه فرمائیل، دَ احد په ورځ ډیرو مسلمانانو شراب څکلې وو بیا هم په هغه ورځ شهیدان شول.

((اصطبح أی شرب الخمر صبوحا)) یعنی هغوی دَ سحر په وخت کښې شراب څکلې وو.(۶)

((صبوح)) وائی دَسحر وخت کښې شراب څکلوته او((غبوق)) دَماښام شراب څکلوته وائی.(۷)

دَحدیث مطلب دا دې چه دَ احد په ورځ کوم مسلمانان شهیدان شو هغوی کښې ډیرو حضراتو دَ سحر په وخت کښې شراب څکلې وو او هم په هغه ورځ هغوی شهیدان شو ځکه چه په هغه وخت کښې دَ شرابو دَ حرمت حکم نه وو راغلې. دَ دې تصریح په کتاب التفسیر کښې موجود ده. حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی ((صبح أناس غداة أحد الخمر، فقتلوا من یومهم جمیعا شهداء، وذلك قبل تحریمها))(۸)

حدیث باب دَ دې خبرې هم دلیل دې چه شراب دَ غزوه احد نه پس حرام کړې شوی دی. (۹)

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۲۹۷)-
۲) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۸)-
۳) (کشف الباری (ج۳ص۱۰۲)-
٤) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل-
۵) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره ګورئی کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه
۶) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۱۶)-
۷) (عمدة القاری (ج١٤صض۱۱۳)-
۸) (صحیح البخاری (ج۲ص۶۶۶) کتاب التفسیر باب قوله ﴿إنما الخمر والمیسر والأنصاب والأزلام رجس من عمل الشیطان﴾ رقم (٤٦١٨) وشرح ابن بطال )ج۵ص۲۹)-
۹) (فتح الباری (ج۷ص۳۵۳)-

**قوله: فقيل لسفيان: من آخرذلك اليوم؟ قال: ليس هذافيه:** حضرت سفيان بن عينيه رحمه الله ته اووئيلې شو چه په حديث کښې ((من آخرذلك اليوم)) الفاظ هم شته؟ نو هغه اووئيل چه په روايت کښې دا الفاظ نشته. په اصل کښې دلته د حضرت سفيان رحمه الله نه سهو شوې ده. ګنې نو اسماعيلي ((قواريري عن سفيان)) په طريق سره همدغه روايت نقل کړيدې او په هغې کښې دا الفاظ موجود دي.((وقتلوا آخر النهار شهداء))(۱)
دغه شان د كتاب التفسير په روايت کښې هم دا الفاظ موجود دي.(۲)
نولکه چه حضرت سفيان رحمه الله نه اول سهو شوې بيا ورته ياد شو. (۳)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن المنير اسكندراني رحمه الله اود هغه په اتباع کښې علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د حديث ترجمة الباب سره مناسبت په لفظ ((شهداء)) کښې دې. ځکه چه هغه شراب کوم چه هغوی په هغه ورځ سحر څکلې وو هغې دوی ته هيڅ نقصان اونه رسولو، سره د شرابو څکلو هغوی شهداء بللې شو ځکه چه هغه وخت مباح وو. د دې وجه نه الله تعالى د هغوی د شهادت نه پس د هغوی مدح او تعريف اوکړلو، ويره او پريشاني ئې د هغوی نه لرې کړه. (۴)
اوحافظ رحمه الله فرمائي چه کيديشي امام بخاري رحمه الله دا روايت د هغه آياتونو د نازليدلو د اسبابو نه يو طرف ته د اشارې د پاره ذکر کړې وی. امام ترمذي رحمه الله فرمائي(۵) د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت کړيدې:

((قال: ماكلم الله أحدا قط إلا من وراء حجابه، وأحيى أباك فكلمه كفاحا، فقال: ياعبدي، تمنّ علي أعطيك، قال: يارب، تحييني فأقتل فيك ثانية، قال الرب: إنه قدسبق مني ﴿أنهم لايرجعون﴾ وأنزلت هذه الآية: ﴿ولاتحسبن الذين قتلوا في سبيل الله أمواتا﴾ ))(۶)

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي چه الله تعالى چاسره هم خبرې فرمائي د پردې نه اخوا ئې فرمائي، ليکن الله تعالى زما پلار ژوندې کړو او هغه سره ئې مخامخ خبرې اوکړې، وئې فرمائيل اې زما بنده اوغواړه چه څه ته غواړې دربه کړم. عبدالله وئيل اې ربه ته ما ژوندې کړې (او دنياته مې اوليګه) دی د پاره چه ستا په لارکښې بيا شهيد شم. الله تعالى اوفرمائيل (دا خو نشي کيدې) ځکه چه مانه دا خبره اول صادر شوې ده چه (د دنيانه واپس راغلې) به نه واپس کيږي او دا آيت نازل شو. ﴿ولاتحسبن الذين قتلوا في سبيل الله أمواتا﴾

---

۱) (فتح الباري (ج۶ص۳۱-۳۲) وعمدة القاري (ج ۱۴ص۱۱۳)-
۲) (صحيح البخاري (ج۲ص۶۶۶) كتاب التفسير باب قوله ﴿إنما الخمر والميسر...﴾ رقم (۴۶۱۸)-
۳) (فتح الباري (ج۶ص۳۲)-
۴) (حواله بالا وعمدة القاري (ج ۱۴ص۱۱۳)-
۵) (الجامع للترمذي (ج۲ص۱۳۰) أبواب تفسير القرآن، باب ومن سورة آل عمران رقم (۳۰۱۰)-
۶) (فتح الباري(ج۵ص۳۱)-

او د وهب بن کیسان رحمه الله په روایت کښې دی چه حضرت جابر رضي الله عنه د هغه شهیدانو نومونو هم شمیرلې وو او په هغې کښې د حضرت جابر رضي الله عنه پلار عبدالله هم وو. چا چه د غزوه احد په ورځ شراب څکلې وو. (۱)

علامه گنگوهی رحمه الله فرمائی چه د حدیث جابر رضي الله عنه او ترجمة الباب کښې ذکر شوې آیت ﴿وأن الله لایضیع أجرالمؤمنین﴾ په مینځ کښې مناسبت ظاهر دې. او هغه داسې چه که د دې حضراتو په شرابو څکلوباندې نیول شوې وې نو د مؤمنانود فعل اضاعت به شوې وو ځکه چه هغوی د څه حرام څیز ارتکاب نه وو کړې. چه په هغې ئی نیولې وې. (۲)

## ۲۰-بَاب: ظِلِّ الْمَلَائِكَةِ عَلَى الشَّهِيدِ

**ماقبل سره مناسبت:** په تیرشوی باب کښې د دې ذکر وو چه شهیدان ژوندی دی اوهغوی ته د هغوی د رب د طرف نه رزق هم ملاویږی او په دې باب کښې د دې خبرې ذکر دې چه: شهید د تعظیم او تکریم د پاره فرښتې د هغوی د پاسه په خپلو وزرو سره سورې کوی.

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری دا فرمائی چه د شهداؤ مقام دومره اوچت دې چه ملائکې هم د هغوی خادمانې جوړیږی او د هغوی د پاسه سورې کوی. د دوی په سورې کولوکښې د شهید اجلال او تعظیم دې. (۳)

[۲۶۶۱] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ الْمُنْكَدِرِ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا (۴) يَقُولُ جِيءَ بِأَبِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ مُثِّلَ بِهِ وَوُضِعَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَذَهَبْتُ أَكْشِفُ عَنْ وَجْهِهِ فَنَهَانِي قَوْمِي فَسَمِعَ صَوْتَ صَائِحَةٍ فَقِيلَ ابْنَةُ عَمْرٍو أَوْ أُخْتُ عَمْرٍو فَقَالَ لِمَ تَبْكِي أَوْلَا تَبْكِي مَا زَالَتِ الْمَلَائِكَةُ تُظِلُّهُ بِأَجْنِحَتِهَا قُلْتُ لِصَدَقَةَ أَفِيهِ حَتَّى رُفِعَ قَالَ رُبَّمَا قَالَهُ [ر: ۱۱۸۷]

## تراجم رجال

۱- صدقه بن الفضل: داحافظ حدیث ابوالفضل صدقة بن الفضل مروزی رحمه الله دې. (۵)

۲- ابن عینیه: دا مشهور محدث سفیان بن عُیَینه بن ابی عمران کوفی رحمه الله دې. د دوی څه حالات ((بدء الوحی)) د اولنی حدیث لاندې (۶)

---

۱) (فتح الباری (ج۷ص۳۵۳)-

۲) (لامع الدراری (ج۷ص۲۱۹)-

۳) (فیض الباری (ج۳ص۴۲۶)-

۴) (قوله: جابرا رضی الله عنه: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الجنائز، باب الدخول علی المیت بعدالموت إذا أدرج فی أکفانه-

۵) (د دوی حالات د پاره اوگورئ کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل-

۶) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۸)-

او مفصل حالات (کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا) په ذیل کښې راغلی دی.(۱)

۴- محمد بن المنکدر: دا محدث شهیر محمد المنکدر بن عبدالله المدنی رحمه الله.(۲)

۵- جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنهما: دامشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنهما دې. (۳)

**قوله**: قلت لصدقة: أفيه حتى رفع؟ قال: ربما قاله: ما صدقه ته اوونيل چه حديث کښې ((حتی رفع)) هم شته؟ نو هغوی اوفرمائيل او، کله کله به سفيان هم دا وئيل.

دلته قائل امام بخاری رحمه الله دې.هغه دخپل استاذ صدقة بن الفضل نه معلومول چه آيا حديث کښې ((حتی رفع)) الفاظ هم شته؟ نوجوابًا صدقة بن الفضل اوونيل او.سفيان به دا هم وئيل. (۴) ليکن همدغه روايت په (کتاب الجنائز) کښې ((علی بن عبدالله وهوابن المديني عن سفيان)) طريق سره هم مروی دی او دَ دې په آخر کښې ((حتی رفعتموه)) الفاظ موجود دی.(۵)

دغه شان حميدی او نورو حضراتو هم دَ سفيان نه دغه شان نقل کړی دی. (۶) دَ (کتاب المغازی) په روايت کښې هم ((أبوالوليد عن شعبة عن ابن المنکدر)) په طريق سره ((حتی رفع)) الفاظ نقل کړيشوی دی. (۷)

نومعلومه شوه چه عدم جزم سره دا روايت صرف صدقة بن الفضل روايت کړيدې. (۸)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت دَ حديث په جمله ((مازالت الملائكة تظله بأجنحتها)) کښې دې. (۹)

## ۲۱- بَاب: تَمَنِّي الْمُجَاهِدِ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا

**ماقبل سره ربط او مناسبت**: په وړاندينوبابونوکښې دا بيان شوې وو چه مجاهدته به دَ هغه دَ شهادت نه پس دَ الله تعالی دَ طرف نه رزق ورکولې شی او هغوی ژوندی وی. نور دا چه

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۱۰۲)-

۲) دَدوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه

۳) (حواله بالا-

۴) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۳)-

۵) (الصحيح البخاری (ج۱ص۱۶۶) کتاب الجنائز باب الدخول علی الميت بعد الموت اذا أدرج فی أکفانه رقم (۱۲٤٤)-

۶) (فتح الباری (ج۱٤ص۱۱۳)-

۷) (صحيح البخاری (ج۲ص۵۸٤) کتاب المغازی باب من قتل من المسلمين يوم أحد رقم (٤۰۸۰)-

۸) دَ حديث باب دَ ټولو تشريحاتودَپاره اوګورئ کتاب الجنائز باب الدخول علی الميت بعد الموت إذا أدرج فی اکفانه و کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۵۰-۲۵۱)-

۹) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۳)-

ملائکې د هغوی د تکریم او تعظیم د پاره په خپلو ورزو باندې په هغوی سورې وی. دې لولو انعاماتو او فضیلتونو ته په کتوباندې مجاهد دا تمنا کوی چه هغه دې بیا په دونیم ځل او دریم ځل شهید شی او نور ډیر فضیلتونه اوکرامتونه دې حاصل کړی لکه چه د حدیث باب نه واضح دی.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَترجمة الباب مقصددادې چه کله شهید په خپل ځان باندې د الله تعالی نعمتونه او مهربانئی اووینی نو دَ هغه خواهش به دا وی چه هغه دنیا ته واپس شی، جهاد اوکړی او شهید شی، اودا دَ دې دَ پاره چه هغه ته نور ډیر نعمتونه حاصل شی. (۱)

[۲٦٦۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۲) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَحَدٌ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا الشَّهِيدُ يَتَمَنَّى أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ لِمَا يَرَى مِنْ الْكَرَامَةِ [ر: ۲٦٤۲]

## تراجم رجال

۱- **محمد بن بشار:** دادَ حدیث مشهور امام ابوبکر محمدبن بشار عبدی بصری رحمه الله دی. بُندار دَ دوی لقب دې. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم......)) لاندې راغلی دی. (۳)

۲- **غندر:** دا ابوعبدالله محمد بن جعفر هذلی رحمه الله دې. دَ غندرپه لقب مشهور دې. دَدوی حالات ((کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې راغلی دی. (۴)

۳- **شعبه:** دا امیرالمؤمنین فی الحدیث، شعبه بن الحجاج بن الوردعتکی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده)) لاندې راغلی دی. (۵)

۴- **قتاده:** دا قتاده بن دعامه بن قتاده بن عزیز سدوسی بصری رحمه الله دې. (۶)

۵- **انس:** دا مشهورصحابی رسول ﷺ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې. دَدې دوارو حضراتو حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) په ذیل کښې راغلی دی. (۷)

---

۱) (عمدة القاری (ج ١٤ص ١١٣)-
۲) (قوله: أنس بن مالک رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه آنفافی باب الحور العین وصفتهن-
۳) (کشف الباری (ج ۳ص ۲۲۱)-
٤) (کشف الباری ج ۲ص ۲۵۰)-
۵) (کشف الباری (ج ۱ص ٦٧٨)-
٦) (کشف الباری(ج ۲ص ۳)-
۷) (حواله بالا(ص ٤)-

**تنبیه:** دَ حدیث باب تشریحات ((باب الحور العین وصفتهن)) لاندې تیرشوی دی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت کښې دا اشکال دې چه ترجمه خو دَ مجاهد دَ تمنا اوخواهش ده لیکن امام بخاری چه کوم روایت نقل کړیدې په هغې کښې دَ ((حب)) لفظ وارد شویدې؟

دَ دې جواب دا دې چه همدغه روایت امام نسائی او امام حاکم ﷫ هم روایت کړیدې او هلته دَ تمنی لفظ واردشویدې، نو حضرت انس ﷛ فرمائی:

((قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: یؤتی بالرجل من أهل الجنة فیقول الله عزوجل یا ابن آدم، کیف وجدت منزلك؟ فیقول: أی رب خیر منزل، فیقول: سل وتمن، فیقول: أسألك أن تردنی إلی الدنیا فأقتل فی سبیلك عشر مرات لمایری من فضل بالشهادة)) (۱)

رسول الله ﷺ اوفرمائیل دَ جنتیانو نه به یو سړې راوستلې شی او الله تعالی به هغه ته اوفرمائی اې دَ آدم ځویه تا خپل دَ اوسیدو ځائ څنګه بیاموندلو؟ هغه به وائی اې ربه ډیر ښکلې ځائ دې. الله تعالی به اوفرمائی سوال اوکړه او تمنااوکړه، نو هغه سړې به وائی زما خو ستانه هم دغه غوښتنه ده چه ته ما دنیا ته واپس کړه چه ستا په لارکښې لس ځلې قتل کړې شم (هغه به دا درخواست په دې وجه کوی) څکه چه هغه دَ الله تعالی په لارکښې دَ قتلې کیدو فضیلتونه لیدلی دی. اوس دَ نسائی او مستدرك دَ روایت نه دا معلومه شوه چه د حب نه مراد هم تمنا ده.(۲)

## ۲۲-بَاب: الْجَنَّةُ تَحْتَ بَارِقَةِ السُّیُوفِ

**ماقبل سره مناسبت:** په مخکینوبابونوکښې دَ جنت او دَ هغه ځائ دَ مختلفو نعمتونو او منازلو وغیره بیان شویدې او په دې باب کښې امام بخاری ﷫ دَ جنت او دَ هغه ځائ دَ نعمتونو دَ حاصلولو طریقه ښائی چه جنت دَ تورو د سوری لاندې دې.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ ترجمة الباب مقصد واضح دې او هغه دا جنت چه ملاویږی نو هم د تورو دَ سوری لاندې ملاویږی.

**دَترجمة الباب لغوی تحلیل:** امام بخاری ﷫ دلته ترجمة الباب قائم کړیدې فرمائی چه ((باب الجنة تحت بارقة السیوف)) دَ بارقه اضافت دَ سیوف طرف ته ((إضافة الصفة إلی الموصوف)) دَ قبیل نه دې. او دا دَ ((السیوف البارقة)) په معنی کښې دې.(۳)

او ((بارقة)) دَ ((بروق)) نه مشتق دې. وئیلی شی ((برق السیف بروقا إذا تلألأ)) اوس دَ ((بارقة))

---

۱) (سنن النسائی (ج۲ص۶۰) کتاب الجهاد باب مایتمنی أهل الجنة رقم (۳۱۶۲) والحاکم فی مستدرکه (ج۲ص۷۵) کتاب الجهاد باب مقام الشهداء-

۲) (فتح الباری (ج۶ص۳۲)-

۳) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۱۷)-

معنى پرقيدونكې شوه.(١)
او كله كله بارقه وئيلى شى اود دې نه هم توره مراد وى، نو په دې صورت كښې به اضافت بيانيه وى لكه ((شجرالإراك)) چه وئيلې شى.
ابن بطال رحمه الله فرمائى چه دا د ((بريق)) نه ماخوذ دې او د دې معنى د بجلئى پرق دې. (٢)
او علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه دا د ((إبريق)) نه دې، وئيلى كيږى ((أبرق الرجل بسيفه إذا لمع به)) او تورې ته هم ابريق وائى. (٣)
حافظ ابن حجر فرمائى چه شايد د امام بخارى رحمه الله دا ترجمه د دې روايت نه ماخوذ ده كومه چه طبرانى په صحيح سندسره د حضرت عمار بن ياسر رضى الله عنهما نه روايت كړيده چه حضرت عمار رضى الله عنه د جنګ صفين په ورځ فرمائيلى ((الجنة تحت الأبارقة)) او علامه خطابى رحمه الله فرمائيلى چه ((الأبارقة)) دا د ((الإبريق)) جمع ده. (۴)

**قوله:** وَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ أَخْبَرَنَا نَبِيُّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رِسَالَةِ رَبِّنَا مَنْ قُتِلَ مِنَّا صَارَ إِلَى الْجَنَّةِ: [ر: ٢٩٨٩]او حضرت مغيره بن شعبه رضى الله عنه فرمائيلى دى چه مونږ ته زمونږ نبى صلى الله عليه وسلم زمونږ د رب په ذريعه خبر راكړې دې چه په مونږ كښې څوك قتل كيږى هغه به جنت ته ځى.

((عن رسالة ربنا)) الفاظ صرف د كشميهنى په روايت كښې موندلې شى او نورو رُواتو د صحيح بخارى هغه حذف كړى دى كيديشى چه مقصد ئې اختصار وى ځكه چه په موصول طريقه كښې هم دا الفاظ موجود دى.

**د پورتنى تعليق تخريج**: پورته بيان شوې تعليق د اوږد حديث شريف حصه ده، كوم چه امام بخارى رحمه الله موصولاً (كتاب الجزية والموادعة) كښې (۵) او (كتاب التوحيد) (۶) كښې نقل كړى دى.

**دمذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت**: د مذكوره تعليق مناسبت ترجمة الباب سره داسې دې چه د مسلمانانو نه كوم يو كس هم شهيد او مقتول شو نو جنت كښې به داخليږى ښكاره خبره ده چه هغه به د تورې د پرق لاندې راځى. (٧)

١ ) (حواله بالا ومختار الصحاح مادة برق-
٢ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص٣)-
٣ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص٣١)-
٤ ) (فتح البارى (ج٦ص٣٣)-
٥) (صحيح البخارى(ج١ص٤٤٧)كتاب الجزية والموادعة باب الجزية والموادعة مع أهل الذمة رقم (٣١٥٩)
٦ ) (صحيح البخارى (ج٢ص١١٢٣) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿يا أيها الرسل بلغ ما أنزل إليك من ربك ....إلخ﴾ رقم(٧٥٣٠)-
٧ ) (عمدة القارى(ج١٤ص١١٤)-

**قوله: وَقَالَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَيْسَ قَتْلَانَا فِي الْجَنَّةِ وَقَتْلَاهُمْ فِي النَّارِ قَالَ بَلَى:** [ر: ۳۰۱۱] او حضرت عمر رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو آیا زمونږ مقتولین جنت کښې او د هغوی مقتولین په دوزخ کښې نه دی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل ولې نه.

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق هم امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې په مختلفو مقاماتو موصولاً نقل کړیدې. (۱)

**ترجمة الباب سره دتعلیق مناسبت:** د پورته ذکر شوی تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت د تیرشوی تعلیق لاندې راغلی دې. (۲)

[۲۶۶۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ وَكَانَ كَاتِبَهُ قَالَ كَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ (۳) وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ تَابَعَهُ الْأُوَيْسِيُّ عَنْ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ
[۲۶۷۸، ۲۸۰۴، ۲۸۶۱، ۲۸۶۲، ۲۸۱۰، وانظر ۲۷۷۵]

## تراجم رجال

**۱- عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله جعفی بخاری مسندی رحمه الله دې. د دوی حالات ((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) لاندې نقل کړیشوی دی. (۴)

**۲- معاویه بن عمرو:** دا معاویه بن عمرو بن المهلب الازدی الکوفی رحمه الله دې. (۵) د ده نه امام بخاری بغیر د واسطې نه هم روایت نقل کړی دی. (۶)

---

۱) (صحیح البخاری (ج۱ص۴۵۱) کتاب الجزیة والموادعة باب رقم (۳۱۸۱-۳۱۸۲) و(ج۲ص۶۰۲) کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة رقم (۴۱۸۹) و(ج۲ص۷۱۷) کتاب التفسیر باب قوله ﴿إذ یبایعونک تحت الشجرة﴾ رقم (۴۸۴٤) و(ج۲ص۱۰۸۷) کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب مایذکر من ذم الرأی وتکلف القیاس رقم (۷۳۰۸)-

۲) (عمدة القاری (ج١٤ص١١٤)-

۳) (قوله: عبدالله بن أوفی رضی الله عنه: الحدیث أخرجه البخاری أیضاً (ج۱ص۳۹۷) کتاب الجهاد باب الصبر عندالقتال رقم (۲۸۳۳) و(ص٤١٦) باب کان النبی صلی الله علیه وسلم إذا لم یقاتل أول النهار أجر القتال حتی نزول الشمس رقم (۲۹۶۶) و (ص ٤٢٤) باب لاتتمنوا لقاء العدو رقم (۳۰۲٤) و (ج۲ص۱۰۷۵) کتاب التمنی باب کراهیة تمنی لقاء العدو رقم (۷۲۳۷) ومسلم فی صحیحه (ج۲ص ٨٤) کتاب الجهاد باب کراهة تمنی لقاء العدو والأمر بالصبر عنداللقاء رقم (٤٥٤٢) وأبوداؤد فی سننه (ج۱ص ۳۵٤) کتاب الجهاد باب کراهیة تمنی لقاء العدو رقم (۲۶۳۱)-

٤) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۷)-

۵) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الأذان باب إقبال الإمام علی الناس عند تسویة الصفوف-

۶) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۱۸) وکتاب الجمعة باب إذا نفر الناس عن صلاة الجمعة-

۳- ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهيم بن محمد بن حارث الفزارى رحمه الله دې.(۱)

۴- موسى بن عقبه: داموسى بن عقبه الاسدى المدنى رحمه الله دې (۲)

۵- سالم ابوالنضر ابن ابى اميه: داسالم بن ابى اميه ابوالنضرالمدنى القرشى مولى عمرو بن عبيدالله رحمه الله دې. (۳)

۶- عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه: دامشهورصحابى رسول صلى الله عليه وسلم حضرت عبدالله بن ابى اوفى علقمه الاسلمى رضي الله عنه. (۴)

**قوله: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: واعلموا أن الجنة تحت ظلال السيوف:** حضرت عبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې دې (اې خلقو) پوهه شئى چه جنت د تورو د سورى لاندې دې.

**دَ حديث مطلب:** دا ((ظلال)) دا دَ ظل جمع ده اودَ سورى په معنى كښې دې اودَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دا پورتنۍ ارشاد دَ كنايه او استعاره دَ قبيل نه دې او په دې كښې دَ جهاد طرف ته ترغيب دې. ځكه چه دَ انسان فطرت دې چه دَ راحت او آرام حاصلولودَ پاره دَ سورى په لټون كښې وى او دَ هميشه والى سورې دَ جنت سورې دې نو كه دَ دې طلب وى نو جهاد كول پكار دى.(۵)

او علامه ابن الجوزى رحمه الله فرمائي چه دَ حديث شريف مراد دا دې چه دَ جنت دَ داخليدو ذريعه او سبب جهاد دې. كله چه دَ جنګ ميدان كښې يو سړې دَ بل په مقابله كښې راځى نو په هغې كښې هريو د بل دَ تورې دَ سورى لاندې راځى كه په دې حالت كښې قتل كړيشو نو هغه ته به جنت ملاويږى. (۶)

او علامه ابن المهلب رحمه الله فرمائى چه دَ حديث مطلب دا دې چه دَ الله تعالى دَ كلمې دَ اعلاء دَ پاره جنګيږى كه هغه قاتل وى كه مقتول جنتى دې. (۷)

**قوله: تابعه الأويسى عن ابن أبى الزناد عن موسى بن عقبة:** اويسى دَ معاويه بن عمرو په دې روايت كښې متابعت كړيدې. ((ابن أبى الزناد عن موسى بن عقبة)) په طريق سره. دَ اويسى نه مراد حضرت امام بخارى رحمه الله شيخ عبدالعزيزبن عبدالله العامرى رحمه الله دې.(۸)

---

۱) ( دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الجمعة باب القائلة بعدالجمة-

۲) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء-

۳) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب المسح على الخفين-

۴) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين....-

۵) (جامع الأصول (ج۲ص۵۶۸)-

۶) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۱۵)-

۷) (شرح ابن بطال (ج۵ص۳۱)-

۸) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب العلم باب الحرص على الحديث-

او مراد دا دې چه د حديث باب راوى معاويه بن عمرو بن مهلب متابعت په دې روايت كښې اويسى كړيدې.

**دَ مذكوره متابعت تخريج:** دا متابعت امام بخارى رحمه الله صحيح بخارى نه علاوه چرته بل ځاى كښې موصولاً ذكركړيدې. او ابن ابى عاصم دا په (كتاب الجهاد) كښې نقل كړيدې. (۱)

دغه شان عمر بن شبه هم دا متابعت دَ اويسى نه خپل (كتاب اخبار المدينة) كښې روايت كړيدې. په هغې كښې دَ دې امر اضافه هم ده چه حضور ﷺ په حديث كښې خودلې شوې خبره د غزوه خندق په موقع ارشاد فرمائيلې وه. (۲)

**دَمسلمانانو ټول مقتولين جنتيان دى:** ابن المهلب رحمه الله فرمائى چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه قول دې ((أليس قتلانا فى الجنة وقتلاهم فى النار)) نه دا خبره معلومه شوه چه دَ مسلمانانو ټول مقتولان جنتى دى ليكن دا په اجمالى توګه باندې دى او دا ناممكن ده چه په هغې كښې چرته دَ يو تعين اوكړيشى او اووئيلې شى چه فلانكې جنتى دې. ځكه چه دَ حضور ﷺ فرمان دې ((والله أعلم بمن يجاهد فى سبيله)) نو مونږ په اجمالى توګه باندې دا وئيلې شو چه دَ مسلمانانو ټول مقتولين جنتيان دى خودَ تفصيل او تعين او نيتونو حال دَ الله تعالى په حواله دې.(۳)

دَ دې مسئلې نور تفصيل ((باب لايقول فلان شهيد)) لاندې به انشاء الله راځى.

**تنبيه:** دَ حديث باب په سندكښې دا الفاظ راغلى دى ((وكان كاتبه)) دې كښې ((كان)) ضمير ابوالنضر طرف ته واپس كيږى او((كاتبه)) ضمير عمربن عبيدالله طرف ته راجع دې او مطلب دا دې چه سالم ابوالنضر، عمر بن عبيدالله كاتب وو. (۴) هم (كتاب الجهاد) كښې دَ دې خبرې تصريح موجود ده. موسى بن عقبه فرمائى ((حدثنى سالم أبوالنضر مولى عمربن عبيدالله كنتُ كاتباله))(۵)

دلته حافظ ابن حجراوعلامه عينى رحمهما الله (۶) دا ليكلى دى چه سالم عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنهما كاتب وو دا وهم دې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دلته ترجمة الباب دَ حديث دَ الفاظونه نه ده اخذ كړې، دَ دې وجه يا خودا ده چه كله دَ تورې ږرق او رڼړا وى هم دَ هغې په حساب سره به دَ هغې سورې هم وى. دغه شان به مطابقت حاصل شى. يا كه دا اووئيلې شى چه امام بخارى رحمه الله دا ترجمه د يو بل حديث نه اخذ كړيده ليكن

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص ۳۴)و هدى السارى (ص۳۶)-
۲) (فتح البارى (ج۶ص ۳۴) وتغليق العليق(ج۳ص۴۳۲)-
۳) (شرح ابن بطال (ج۵ص۳۱)-
۴) (شرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۱۸) وشرح القسطلانى (ج۵ص۵۳)-
۵) (صحيح البخارى (ج۱ص ۴۲۴) كتاب الجهاد باب لاتتمنوالقاء العدو رقم(۳۰۳۴)-
۶) (فتح البارى (ج۶ص۳۲) وعمدة القارى(ج۱۴ص ۱۱۴)-

هغه حدیث د هغه په شرط موافق نه وو په دې وجه په دې ترجمه کښې ئې تنبیه اوکړه او د ترجمه لاندې ئې نقل نه کړو.(۱)

## ۲۳-بَاب: مَنْ طَلَبَ الْوَلَدَ لِلْجِهَادِ

**د ترجمة الباب مقصد**: امام بخارى دې ترجمة الباب قائمولو سره دا خبره ښائى چه يو سړې خپلې ښځې سره د کوروالى په وخت کښې د جهاد د پاره د اولاد خواهش او تمنا اوکړى نو هغه ته به ثواب ملاويږى که اولاد پيدا شى اوکه نه. او د اولاد پيدا کيدونه پس که هغه جهاد اوکړى او که نه، بهرحال د نيت ثواب به خامخاملاويږى. (۲)

[۲۶۶۳] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَام لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى مِائَةِ امْرَأَةٍ أَوْ تِسْعٍ وَتِسْعِينَ كُلُّهُنَّ يَأْتِي بِفَارِسٍ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ فَلَمْ يَقُلْ إِنْ شَاءَ اللَّهُ فَلَمْ يَحْمِلْ مِنْهُنَّ إِلَّا امْرَأَةٌ وَاحِدَةٌ جَاءَتْ بِشِقِّ رَجُلٍ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ قَالَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فُرْسَانًا أَجْمَعُونَ [ر: ۳۲۴۲]

## تراجم رجال

۱- **ليث**: دا امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. د ده حالات ((بدء الوحى)) د دريم حديث په ذيل کښې راغلى دى. (۴)

---

۱) (المتوارى (ص۱۵۳) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله كأنه أشار بالترجمة إلى حديث عمار بن ياسر.فأخرج الطبرانى بإسناد صحيح عن عمار بن ياسر أنه قال يوم صفين: الجنة تحت الأبارقة (فتح البارى ج۶ص۳۳) وجمع الزوائد للهيثمى (ج۷ص۲۴۱)-

۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۱۵)-

۳) (قوله: أباهريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضاً (ج۱ص۴۸۷) كتاب أحاديث الأنبياء باب ﴿ووهبنا لداؤد سليمن نعم العبد إنه أواب﴾ رقم (۳۴۲۴) و(ج۲ص۷۸۸) كتاب النكاح باب قول الرجل لأطوفن الليلة على نسائى رقم (۵۲۴۲) و (ج۲ص۹۹۴) كتاب الإيمان والنذور باب كيف كان يمين النبى صلى الله عليه وسلم؟ رقم (۶۶۳۹) و(ج۲ص۹۹۴) كتاب كفارات الإيمان باب الاستثناء فى الإيمان رقم (۶۷۲۰) و (ج۲ص۱۱۱۳) كتاب التوحيد باب فى المشيئة والإرادة رقم (۷۴۶۹) ومسلم (ج۲ص۴۹) كتاب الإيمان باب الاستثناء فى اليمين وغيرها رقم (۴۲۸۵) والترمذى (ج۱ص۱۸۵) أبواب النذور والإيمان باب ماجاء فى الاستثناء فى اليمين رقم (۱۵۳۲) والنسائى (ج۲ص۱۴۸) كتاب الإيمان والنذور باب إذا حلف فقال له رجل: إن شاءالله هل له استثناء؟ رقم (۳۸۶۲) والاستثناء رقم (۳۸۸۷)-

۴) (كشف البارى (ج۱ص۳۲۴)-

۲- جعفر بن ربيعه: دا امام جعفر بن ربيعة بن شرجيل رحمه الله دي. (۱)

۳- عبدالرحمن بن هرمز: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدني قرشي رحمه الله دي. دَ دوی مختصر حالات ((كتاب الإيمان باب حب الرسول من الإيمان)) لاندې تيرشوی. (۲)

۴- ابوهريره رضي الله عنه: دا مشهورصحابی رسول صلى الله عليه وسلم حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. دَ دوی حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيرشوی دی. (۳)

**قوله:** عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: قال سليمان بن داود عليهما السلام لأطوفن الليلة على مائة امرأة أو تسع وتسعين كلهن يأتي بفارس يجاهد في سبيل الله: حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ حضور صلى الله عليه وسلم نه روايت کوی چه هغوی فرمائيلی دی چه يو ځل حضرت سليمان عليه السلام اوفرمائيل دَ الله قسم! زه به په يوه شپه کښې سلو يا يوکم سل ښځو له ځم. په هغوی کښې به دَ هرې يوې نه يو يو په اس سورلی کونکې پيدا کيږی چه دَ الله تعالى په لارکښې به جهاد کوی.

((لأطوفن)) کښې لام جواب قسم دې او قسم محذوف دې او تقدير عبارت داسې دې ((والله لأطوفن)) دَ دې تائيد دَ دې قول نه کيږی کوم چه دَ(كتاب النكاح) په روايت کښې راغلې دې.

((لم يحنث))(۴) ځکه چه سړې هم په قسم حانث کيږی او دَ قسم دَ پاره ضروری دی چه دَ دې مقسم به هم وی. (۵)

او ((أطوفن)) مشتق دَ طواف نه دې دَ څه معنی چه ((الدوران حول الشيء)) ده او دلته دَ جماع نه کنايه ده. (۶)

**قوله:** مائة امرأة أو تسع وتسعين:

**دَ حضرت سليمان عليه السلام دَ بيبيانو په تعدادکښې دَ رواياتو اختلاف:** دَ حضرت سليمان عليه السلام دَ بيبيانو دَ شمير په رواياتوکښې سخت اختلافات دی. دلته دَ باب په روايت کښې سل يا يوکم سل شك سره راغلی دی. په يوروايت کښې ((ستين))(۷) اوپه يو روايت کښې ((سبعين))(۸)

۱) (دَ ده دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب التيمم باب التيمم فى الحضر إذا لم يجد الماء......-
۲) (كشف البارى (ج۲ص۱۱)-
۳) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۹)-
۴) (انظر الصحيح للبخارى كتاب النكاح باب قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسائى رقم (۵۲۴۲)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۴۶۰)-
۶) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۱۵)-
۷) (صحيح البخارى (ج۲ص۱۱۳) كتاب التوحيد باب فى المشيئة والإرادة رقم (۷۴۶۹)-
۸) (انظرصحيح البخارى(ج۲ص۴۸۷) كتاب أحاديث الأنبياء باب ﴿ووهبنا لداوٗد سليمن نعم العبد إنه أواب﴾ رقم (۳۴۲۴)

او په يو كښې ((تسعين))(۱) او په يوبل روايت كښې بغيرد شك نه ((مائة))(۲) دى.
اوس په دې تولو روايتونوكښې د جمع يو صورت دا دې كه دا اووئيلې شى چه په دې ښخوكښې شپيته (۶۰) خو آزادې وې او نورې وينځې او بالعكس او سبعين په مبالغه باندې محمول كړيشى، نو پاتې شوې مائة او تسعون نو چونكه هغه د سلونه كمې او لس كم سلو نه زياتې وې چه د كسور اعتبار ئى نه دې كړې نو هغه خو تسعون اووئيل او چا چه اعتبار اوكړواو كسور ئى پوره كړل او سل ئى اووئيل ((هذا ماقاله الحافظ رحمه الله فى ، ، الفتح،،)) (۳)
خو د حافظ دا جواب د تكلف نه خالى نه دې او په دې كښې په دې اعتبار هم لريوالې دې چه حديث يو دې اود روايت د تولو طرقو راوى هم يو يعنى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. خكه چه د رواياتو په مينځ كښې د جمع او تطبيق صورت په هغه وخت كښې اختيارولې شى چه كله دا معلومه وى چه دا تول اعداد نبى عليه السلام په مختلفو موقعو كښې ارشاد فرمائيلې وى او داسې هيڅ خبره نشته.
نو راجح جواب دا معلوميږى چه د رواياتو په مينځ چه د اعدادو كوم اختلاف دې د رواتو د خپل تصرف نتيجه ده، كيديشى نبى عليه السلام يو داسې عدد ذكر كړې ووچه په كثرت باندې دال وې نو بعضو رواتو د دې تعبير ستون سره اوكړوه او نورو سبعون يا تسعون سره، اود ډيرو رواة حديث دا عادت دې چه هغوى د اصل حديث اود هغې د مغز يادولو اهتمام خو كوى ليكن د هغې حواشى او تفصيلاتو كښې نه بختيږى د كوم چه په اصل حديث كښې څه اثر نه وى. نو دلته هم دغه شوى دى چه رواة خو اصل قصه ياده كړيده ليكن د تعداد نسوه په معامله كښې هغوى هغه حيثيت ورنه كړو كوم ئى چه اصل قصې ته وركړې. هم دې ځائ نه دلته اختلافات پيدا شو او دا اختلاف د اصل حديث د صحت د پاره نقصانى نه دې. خكه چه د محدثينو په نزد دا قاعده مسلمه ده چه د حديث په يوه حصه كښې د راوى وهم د اصل حديث ضعف ته مستلزم نه دې او حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا قاعده په خپله فتح البارى كښې په مختلفو موقعو استعمال كړيده.(۴)
يو بل صورت دا دې چه داسې اووئيلې شى چه د قليل په ذكر سره د كثير نفى نه لازميږى او دا مفهوم د عدد د قبيل نه دې چه د جمهورو په نزد حجت نه دې. (۵)

**قوله: فقال له صاحبه: قل: إن شاء الله:** نوهغه ته د هغه صاحب اووئيل إن شاء الله اووايه.

---

۱) (انظر صحيح البخارى (ج۱ص۹۸۲) كتاب الإيمان والنذور باب كيف كان يمين النبى صلى الله عليه وسلم؟ رقم (۶۶۳۹)-
۲) ( انظر الصحيح للبخارى كتاب النكاح باب قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسائى رقم (۵۲۴۲)-
۳) (فتح البارى (ج۶ص۴۶۰)-
۴) (فتح البارى (ج۹ص۲۸۶) وتكملة فتح الملهم (ج۲ص۲۰۷)-
۵) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۱۵)-

**د صاحب نه څوک مراد دي؟** علامه عيني حافظ ابن حجر او علامه نووی ﷭ فرمائی چه د صاحب نه مراد فرشته ده لکه چه په هغه باندې د (**كتاب النكاح**) روايت هم دلالت کوی. ((**فقال له الملك**)) (۱) او هم دا قول دې حضراتو صحيح ګرځولې دې. (۲)

او د بعضو نورو حضراتو وينا دا ده چه دلته د صاحب نه مراد آصف بن برخيادې چا سره چه د کتاب علم وو، ليکن حافظ صاحب دا قول مردود ګرځولې دې.(۳)

علامه قرطبی فرمائی چه د صاحب نه مراد د حضرت سليمان ﷺ وزير دې، که انسان وی که پيرې او که مراد ترينه فرښته وی نو دا هم هغه فرښته ده چه هغه له به ئې وحی راوړله او چا چه د صاحب نه مراد خاطر قلب ګرځولې دې د هغوی قول د حقيقت نه لرې دې. (۴)

بهرحال قول همدغه دې چه د صاحب نه مراد دلته ملک (فرښته) ده كما مرالان.

**قوله: فلم يقل: إن شاء الله**:نو هغه انشاء الله اونه وئيل.

مطلب دا چه حضرت سليمان ﷺ په ژبه سره انشاء الله اونه وئيل دا مطلب بالکل نه دې چه هغوی ﷺ د زړه نه هم د الله تعالى طرف ته د تفويض نه غافل شوې وو. ځکه چه دا د نبوت د منصب نه خلاف ده. ممکن دی چه څه بل څه امر پيښ شوې وی. (۵)

دغه شان معامله زمونږ نبی ﷺ ته هم پيښه شوې وه چه کله د مکې مشرکانو د حضور ﷺ نه د روح، خضر او ذوالقرنين باره کښې سوال اوکړونو هغوی ﷺ په جواب کښې اوفرمائيل چه زه به صبا تاسو ته جواب درکوم. ځکه چه د هغوی الله تعالى سره په تعلق دا يقين وو چه څنګه هغه فرمائی همدغه شان به وی. ليکن د هغوی د ژبې مبارکې نه انشاء الله ذهول شو، دا مطلب نه دې چه د زړه نه هم غافل او ذاهل شوې وو. (۶)

**قوله: فلم يحمل منهن إلا امرأة واحدة جاءت بشق رجل**:نو د هغه ښځونه صرف يوه ښځه حامله شوه او هغې يو نامکمل بچې راوړلو. مطلب دا چه د سليمان ﷺ انشاء الله نه وئيلو په وجه صرف د يوې ښځې حمل شو او هغه حمل هم ناقص وو.

**قوله: والذى نفس محمد بيده، لوقال: إن شاء الله لجاهدوا فى سبيل الله فرسانا أجمعون**: او هغه الله قسم! د چا په قبضه قدرت کښې چه د محمد ځان دې که چرې هغه (سليمان ﷺ) انشاء الله وئيلې وو نو هغه ټولو به د الله تعالى په لارکښې جهاد کولو. مطلب دا چه که سليمان ﷺ د ژبې مبارکې نه ان شاء الله وئيلې وو نو هغه مراد به پوره

۱) (صحيح البخاری كتاب النكاح باب قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسائى رقم (۵۲۴۲)-.
۲) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۱۵) وفتح البارى (ج ۶ص ۴۶۱) وشرح مسلم للنووى (ج ۲ص ۴۹)-.
۳) (فتح البارى (ج ۶ص ۴۶۱)-.
۴) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۱۵)-.
۵) (فتح البارى (ج ۶ص ۴۶۱)-.
۶) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۱۵)-.

شوې وو او هغه ټولو ښځو به يو يو فارس راوړلې وې چه د الله تعالى په لار کښې به ئې جهاد کولو.(۱)

دَ دې مطلب تائيد دَ صحيح بخارى (کتاب النکاح) دَ يو روايت نه هم کيږى کوم کښې چه ((وکان أرجى لحاجته)) الفاظ راغلى دى(۲)

دَ نبى کريم ﷺ دَ دې ارشاد نه هم دا معلومه شوه چه دا ضرورى نه ده چه دَ هرانسان خواهش دې پوره شى سره دَ دې چه هغه انشاء الله وئيلې وى بلکه دَ استثناء حاصل خو دا دې چه هغه څنګه هم خواهش کړې دې دَ هغې دَ واقع کيدلو توقع او اميد ساتى او په ترک استثناء کښې دَ وقوع کيدلو اميد نه وى. (۳)

**فائده**: علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه په حديث باب کښې دَ جهاد په نيت دَ اولاد غوښتلو ترغيب دې کله داسې هم کيږى چه ماشوم دَ اميد په خلاف مجاهد نه وى او کافر وى ليکن ده ته په خپل نيت او عمل ثواب ملاويږى. (۴)

**دَ بچې دَ ناقص کيدو وجه**: علامه رشيداحمد ګنګوهى رحمه الله دَحديث دَالفاظو((إلا امرأة واحدة جاءت بشق....)) تشريح کولو سره فرمائى چه کيديشى دَ دې ښځې دَ ناقص ماشوم پيدا کيدو وجه دَ حضرت سليمان عليه السلام په اراده باندې وى چه هغوى عليه السلام اراده خو کړې وه دَ ان شاء الله وئيلو ليکن دا چه هغه نه عزم پوره کيدل ممکن نه شو نو دا عزم ناقص شو نو دغه شان دَ هغه بچې هم ناقص او نامکمل شو پوره نشو.(۵)

**مودودى صاحب.... او حديث باب**: مودودى صاحب خپل تفسير (تفهيم القرآن) کښې ﴿ولقد فتنا سليمان وألقينا على كرسيه جسدًا ثم أناب....إنك أنت الوهاب﴾ تفسيرکولو سره دَ حضرت ابوهريره رضى الله عنه حديث باب دَ عقل نه خلاف ګرځولې او دَ دې قول دَ رسول ﷺ نه دَ تسليم کولونه ئې انکار کړيدې، هغه ليکى چه :

دريم ټولې وائى چه حضرت سليمان عليه السلام يوه ورځ قسم اوخوړلو چه نن شپه به زه خپلو اويا بيبيانوله ورځم او دَ هرې يوې نه به يو دَ الله تعالى دَ لارې مجاهد پيداکيږى خو دې خبرې سره هغه انشاء الله اونه وئيل، دَ دې نتيجه دا شوه چه صرف يوه بى بى اميدواره شوه او دَ هغې نه هم يو نيمګړې ماشوم پيدا شو، کوم چه دائى راوړلو او دَ حضرت سليمان عليه السلام په کرسۍ ئې کيخودو.دا حديث حضرت ابوهريره رضى الله عنه دَ حضور ﷺ نه روايت کړيدې او دا بخارى، مسلم او نورو ډير محدثينو په مختلفو طريقو سره نقل کړيدې. پخپله په بخارى شريف کښې دا په مختلفومقاماتوکښې چه په کومو طريقوسره نقل کړيشوې دې په هغې

۱) (فتح البارى (ج۶ص۴۶۱)-
۲) (صحيح البخارى تاب النکاح باب قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسائى رقم (۵۲۴۲)-
۳) (فتح البارى (ج۶ص۴۶۱)-
۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص۳۲)-
۵) (لامع الدرارى (ج۷ص۲۲۰)-

کښې چا کښې د ببیبانو تعداد (۲۰) دې او چا کښې (۷۰) چا کښې (۹۰) چا کښې (۹۹) او په چا کښې (۱۰۰). ترکومې چه د سند تعلق دې په دې کښې د اکثررواياتو سند قوی دې او په اعتبار د روایت د دې په صحت کښې کلام نشي کيدلې. ليکن د حديث مضمون صريح د عقل خلاف دې او په چغو چغو وائي چه دا خبره به رسول الله ﷺ هيڅ کله هم داسې نه وی فرمائيلې څنګه چه نقل شويده. بلکه هغوى ﷺ به د غالبا د يهوديانو د فضول وينا ذکر کولو سره په يوه موقع دا د مثال په توګه بيان کړې وى او اوريدونکى ته دا غلط فهمى شويده چه دا خبره حضور ﷺ پخپله د واقع په توګه بيانوى. داسې روايات صرف د سند د صحت په زور د خلقو د حلق نه تيرولو کوشش کول دين توقې مسخرې جوړول دى. هر سړې پخپله حساب لګولې شى چه د ژمى په اوږده شپه کښې هم د ماسخوتن او سحر په مينځ کښې لس يولس ګينټو نه زيات وخت نه وى، که د ببيبانود کم نه کم تعداد (۲۰) اومنلې شى نود دې معنى دا شوه چه حضرت سليمان عليه السلام په هغه شپه بغير د سا اخستلوفى ګينټه دشپږوبيبانوپه حساب سره مسلسل لس يايولس ګينټې کوروالې کولو. آيا دا عملاً ممکن دى؟ او آيا دا توقع کولې شى چه حضور ﷺ به دا خبره د واقع په توګه بيان کړې وى. (۱)

په دې حديث باندې د هغه کلام او په احاديث صحيحه باندې غير اصولى تنقيد کولو چه کومه دروازه هغه پرانستې ده هغې ته په کتلو په الله تعالى قسم چه د زمونږ غونې زيږ شو او بدن مو اورپيدو. په دې خبره کښې هيڅ شک نشته چه په احاديثوباندې په ماضى کښې سليمانه علمى نقدو بحث کيږى او بيا به هم کيږى ليکن د دې بحث او تمحيص څه اصول او قواعد هم دى د څه تفصيل محدثينو حضراتود اصول په کتابونوکښې کړيدي.

که هر سړى ته د دې خبرې اجازت ورکړيشي چه احاديث صحيحه د سند، صحت او رجال ثقاهت باوصف هغه رد کړى، صرف د دې د پاره چه د هغې معنى د هغه د عقل موافق نه دى نو د دين بنيادونه به په ړڼيدو شى او هر کس او ناکس د ورکى او لوئى د پاره به د تحريف دروازه يك دم کولاوشى. لاحول ولاقوة الابالله العظيم.

او دا مودوى صاحب چه د شپې د وختونو کوم حساب ذکر کړيدې او دا چه په دومره لږ وخت کښې شپيتو ښځو سره جماع کول ممکن نه دى نو دا د لانديښو وجوهاتو په بناء باندې مدفوع (منسترد) دى:

**رومبئى وجه**: روستودا خبره راغلې ده چه د حضرت سليمان عليه السلام د ببيبانو يومقرر شمير د حديث نه ثابت نه دې، ښکاره همدغه ده چه نبى اکرم ﷺ يوداسې عدد ذکر کړې وو چه په کثرت باندې دال وو. بعض رواتو د دې تعبير شپيتوسره اوکړو، چا لس کم سلو سره يا د دې نه زياتو سره اوکړو، ځکه چه رواة خو د اصل حديث يادولو اهتمام کوى او د حديث د دې اجزاؤ او تفاصيلوسره زيات کار نه لرى او د کوم چه په اصل حديث کښې څه اثر نه وى،

---

۱) (تفهيم القرآن (ج۳ص۳۳۷)-

نو مونږ ته دا حق څنګه حاصل دې چه یو عدد مقرر کړو بیا د دې په حساب د شپې اوقات مقرر او متعین کړو؟

**دوئمه وجه**: که د شپیتو دا شمیر فرض کړه مونږ صحیح اوګنړو نو شپږو ښځو سره یو ګینټه کښې جماع کول څرنګ محال دې؟ اوکه شپه په دولس ګینټو باندې هم مشتمل شی نو صحیح حساب په یوه ګینټه کښې پنځه ښځې شوې نو دا څنګه عقلاً محال شو چه د دې په وجه صحیح حدیث ردکړیشی؟ که د انبیاء علیهم السلام قصص او د هغوی په حکایاتو کښې مونږ داقسم قیاسونه شروع کړل نونه به د یونبی معجزه ثابته شی نه د هغوی نه علاوه د چا کرامت، انبیاء علیهم السلام خو څه بلکه بعض اولیاؤ نه څومره داسې امور ثابت دی چه هغوی په ډیر لږ وخت کښې ډیر کارونه کړی دی او نور خلق د هغې نه په دو چند وخت کښې هم هغه کارونه نشی پوره کولې. بعض فلاسفه... د چا سرخیل چه حضرت شیخ الاسلام مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله دې ثابت کړی چه د وخت د پاره طول او عرض دواړه وی. د کومو څیزونو چه مونږ په عامو احوالوکښې مشاهده کوو هغه د وخت طول دې او د ډیرو کارونو په لږ وخت کښې پوره کولو چه کوم ذکر کولې شی هغه د وختونو په عرض کښې واقع کیږی.

**د بحث خلاصه**: حاصل دا دې چه صرف د عقل بعضې امور واقع کیدل مستبعد ګنړل د صحیح احادیثو د رد د پاره کافی نه دی. معجزات او کرامات داسې امور دی کوم چه عقل مستبعد ګنړی لیکن دا بې شك او شبهې ثابت دی.

او ترکومې چه د بعضو اصولیینو د دې خبرې تعلق دې چه د حدیث د صحت دپاره دا ضروری دی چه هغه دې د عقل خلاف نه وی نو د دې نه د هغوی مطلب دا وی چه د عقل نه خلاف په دې معنی وی چه د هغې نه محال عقلی لازم راځی، دا مطلب نه دی چه هغه صرف عقل مستبعد اوګنړی. د دې دلائلونه علاوه کوم چه د معجزاتو په ثبوت دلالت کوی.علامه سیوطی رحمه الله (تدریب الراوی) کښې فرمائی:

((إن من جملة دلائل الوضع أن يكون مخالفا للعقل بحيث لايقبل التأويل، ويلتحق به مايدفعه الحس والمشاهدة، أويكون منافيا لدلالة الكتاب القطعية أو السنة المتواترة أو الإجماع القطعي، أما لمعارضة مع إمكان الجمع فلا))(۱)

یعنی د حدیث د وضع په ادله کښې دا هم دی چه هغه به د عقل مخالف وی، په دې حیثیت سره چه بالکل تاویل قبول نه کړی، دې سره هغه هم شامل دې کوم ته چه حس یا مشاهده رد کړی. یا دا چه هغه د کتاب الله د قطعی دلالت یا سنت متواتره یا اجماع قطعی منافی کیږی. هغه تعارض کوم کښې چه د جمع بین الروایات امکان وی،نو هغه د وضع حدیث د دلیلونو نه نه دې.

علامه سخاوی رحمه الله (فتح المغیث) کښې لیکی:

---

۱) (انظر تدریب الراوی (ج۱ص۲۷۶)-

((وكأن يكون مخالفا للعقل ضرورة أو استدلالاً، ولا يقبل تأويلا بحال، نحو: الإخبار عن الجمع بين الضدين، وعن نفي الصانع، وقدم الأجسام، وما أشبه ذلك لأنه لايجوز أن يرد الشرع بماينافي مقتضى العقل)) (۱)
لکه څنګه چه ضرورة او استدلالاً د عقل مخالف وی او په هیڅ قسم تاویل نه قبلوی لکه جمع بین الضدین او نفی صانع او قدم اجسام او د هغې مشابه د یوځیز خبر چه ورکړیشوی وی څکه چه داخبره هډو صحیح نه ده چه حکم شرعی په یوداسې ځیز کښې راشی چه د عقل د مقتضی منافی وی. (۲)
**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح او ښکاره دې چه په دې کښې د حضرت سلیمان علیه السلام د جهاد د پاره د بچی غوښتلو ذکر دې. (۳)

## ۲۴-بَاب: الشَّجَاعَةِ فِي الْحَرْبِ وَالْجُبْنِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې په جنګ کښې بهادری اختیارولو تعریف او په بزدلئی کښې خرابې بیانول غواړی. (۴)

[۲۶۶۵] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ وَاقِدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ (۵) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ وَأَجْوَدَ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبَقَهُمْ عَلَى فَرَسٍ وَقَالَ وَجَدْنَاهُ بَحْرًا [ر: ۲۴۸۴]

### تراجم رجال

۱-احمدبن عبدالملك بن واقد: دا مشهور محدث احمدبن عبدالملك بن واقد الاسدی رحمه الله دې. (۶)
۲-حمادبن زید: دا ابواسماعیل حماد بن زیدبن درهم بصری رحمه الله دې. د دوی حالات ((کتاب الإیمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنین......)) لاندې ذکر شوی دی. (۷)
۳-ثابت بُنانی: دا مشهور تابعی بزرك ابومحمد ثابت بن اسلم بنانی رحمه الله دې. د دوی

---

۱) (فتح المغیث شرح ألفیة الحدیث (ج۱ص۲۹۴) والناقد الحدیث فی علوم الحدیث (ص۴۸)-
۲) (تکملة فتح الملهم (ج۲ص۲۱۲-۲۱۳) وأیضًا انظر الاستاذ المودودی من حیاته وأفکاره للبنوری-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۱۵)-
۴) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۱۷)-
۵) (قوله: عن أنس رضی الله عنه: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الهبة باب من استعاز من الناس الفرس-
۶) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الصلاة باب الخدم للمسجد-
۷) (کشف الباری (ج۲ص۲۱۹)-

حالات ((کتاب العلم باب القرءة والعرض علی المحدث)) لاندې تیرشوی دی.(۱)

۴-انس ﷛: دَ حضرت انس بن مالك ﷛ حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیرشوی دی. (۲)

**قوله: کان النبی صلی الله علیه وسلم أحسن الناس وأشجع الناس وأجود الناس:** حضرت انس ﷛ فرمائی چه نبی کریم ﷺ په خلقو کښې دَ ټولونه زیات ښکلې دَ ټولو نه زیات بهادر او ټولونه زیات سخی وو.

**دَ نبی علیه السلام درې صفتونه:** په دې حدیث کښې دَ نبی ﷺ درې صفتونه ذکر کړیشو.

① احسن ② اشجع ③ اجود(۳)

دَحکماء اسلام وینا ده چه دَ انسان درې قُوی دی، عقلیه، غضبیه او شهویه. دَ قوت غضبیه دَ کمال ننداره شجاعت او بهادری ده. دَ قوت شهویه دَ کمال مظهر جود او سخاوت دې او دَ قوت عقلیه کمال او مظهر حکمت دې. او په لفظ احسن کښې هم دَ دې قوت عقلیه کمال ته اشاره ده ځکه چه حسن صورت تابع دې دَ مزاج دَ اعتدال او دَ مزاج اعتدال دَ نفس صفائې او پاکیزګئی ته او جودت طبع نه ماخوذ دې او دغه درېواړه صفات دَ امهات الاخلاق نه دی. (۴)

**قوله: ولقد فزع أهل المدینة فکان النبی صلی الله علیه وسلم سبقهم علی فرس:** او دَ مدینې خلق اوویریدل نو نبی کریم ﷺ په یو اس باندې سور شو او دَ ټولونه وړاندې اورسیدو. ((فزع)) بکسر الزاء ((الفزع)) نه مشتق دې او دَ دې معنی دَ ویریدلو ده.(۵)

**قوله: وقال: وجدناه بحرا:** اوحضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو مونږ دا اس دَ سمندر په شان اوموندلو. دَ (کتاب الهبة) په روایت کښې راغلی چه پورته ذکر شوې اس دَ حضرت ابوطلحه ﷛ وو کوم چه نبی ﷺ دَ هغه نه دَعاریت په توګه اخستې وو او هم په دې روایت کښې دَ هغه اس نوم (مندوب) وو. (۶)

علامه مهلب ﷫ فرمائی چه حضور ﷺ دَ هغه اس دَ تیزوالی تشبیه سمندر سره ورکړه او وئی فرمائیل چه مونږ دا اس په سرعت سیر کښې دَ سمندر په شان اوموندلو. لکه څنګه چه

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۱۸۳)-
۲) (کشف الباری (ج۲ص٤)-
۳) (عمدة القاری (ج١٤ص١١٧)-
٤) (شرح الکرمانی (١٢ص١١٩)-
٥) (مختار الصحاح (ص٥٠٢) مادة فزع-
٦) (صحیح بخاری (ج١ص٣٥٨) کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس رقم (٢٦٢٧)-

د سمندر اوبه یو شان په تیزئی سره روانې وی دغه شان دا اس هم په یو رفتار منډې وهلې بالکل سترې نشو.(۱)

علامه مهلب نور فرمائی چه د ټولونه اول اس ته د سمندر تشبیه رسول الله ﷺ ورکړه. (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت د حضرت انس رضی الله عنه دې ارشاد کښې دې ((وأشجع الناس))(۳)

[۲۷۲۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ(۴) أَنَّهُ بَيْنَمَا هُوَ يَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ النَّاسُ مَقْفَلَهُ مِنْ حُنَيْنٍ فَعَلِقَهُ النَّاسُ يَسْأَلُونَهُ حَتَّى اضْطَرُّوهُ إِلَى سَمُرَةٍ فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ فَوَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعْطُونِي رِدَائِي لَوْ كَانَ لِي عَدَدُ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُونِي بَخِيلًا وَلَا كَذُوبًا وَلَا جَبَانًا [۲۹۷۹]

## تراجم رجال

۱- **ابوالیمان:** داابوالیمان حکم بن نافع بصری رحمه الله دې. د ده حالات ((بدء الوحی)) الحدیث السادس لاندې تیر شوی. (۵)

۲- **شعیب:** دا ابوبشر شعیب بن ابی حمزه القرشی الاموی رحمه الله دې. د ده حالات ((بدءالوحی)) د شپږم حدیث لاندې راغلی دی. (۶)

۳- **زهری:** دا امام محمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې. د ده مختصر حالات ((بدء الوحی)) دریم حدیث په ذیل کښې راغلی دی. (۷)

۴- **عمربن محمد بن جبیر:** دا د رسول الله ﷺ مشهور صحابی حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه نمسې عمر بن محمد بن جبیر بن مطعم بن عدی القرشی النوفلی المدنی رحمه الله دې.(۸) دوی د خپل والد صاحب محمدبن جبیر نه روایت کوی. د هغوی نه د حدیث روایت کونکې

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص ۳٤)-

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص ۳٤)-

۳) (عمدة القاری (ج ١٤ص ۱۱۷)-

٤) (قوله: جبیر بن مطعم: الحدیث أخرجه البخاری (ج۱ص٤٤٦) کتاب فرض الخمس باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یعطی المؤلفة قلوبهم وغیرهم من الخمس ونحوه رقم (۳۱٤۸) والحدیث من إفراده-

۵) (کشف الباری (ج ۱ص ٤۷۹)-

۶) (کشف الباری (ج ۱ص ٤۸۰)-

۷) (کشف الباری (ج ۱ص ۳۲۶)-

۸) (تهذیب الکمال (ج۲۱ص٤۹۵) وقال الذهبی فی المیزان (ج۳ص ۲۲۰) ماروی فی علمی سوی الزهری-

صرف امام زهری رحمه الله دې. (۱)

امام نسائی فرمائی ((ثقة)) (۲)

ابن حجر رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۳)

ابن حبان رحمه الله دَ هغه ذکر په (کتاب الثقات) کښې کړيدې. (۴)

دې په امهات سته کښې صرف دَ صحیح بخاری راوی دې او امام بخاری رحمه الله هم دَ ده نه صرف يو حديث (مذکورفی الباب) اخستې دې.(۵)

۵- **محمد جبير:** دا ابوسعيد محمدبن جبير بن مطعم المدنی رحمه الله دې. (۶)

۶- **جبیربن مطعم رضي الله عنه:** دا دَ رسول الله ﷺ مشهور صحابی حضرت جبير بن مطعم بن عدی رضي الله عنه دې. (۷)

**قوله: أنه بينما هو يسير مع رسول الله صلى الله عليه وسلم ومعه الناس مقفله من حنين:** حضرت جبير بن مطعم فرمائی چه کله هغه رسول الله ﷺ سره روان وو او په دې وخت کښې هغوی سره نور خلق هم وو دَ غزوه حنين دَ واپسئ په وخت کښې. دلته په حديث باب کښې دَ رسول الله ﷺ يوه واقعه بيان کړې شوې ده چه دَ غزوه حنين نه په واپسئ کښې پېښه شوې وه. داسې اوشوه چه کله حضور ﷺ په غزوه حنين کښې دَ فتح او نصرت نه پس دَ اهل حنين قيديان دَ هغوی دَ کورونو والا ته واپس کولو نه فارغ شو نو حضور ﷺ سور شو او روان شو، نور خلق هم هغوی پسې شاشا ته روان شو او دَ هغوی ﷺ نه ئې دَ غنيمت دَ مال غوښتنه شروع کړه.

په دې موقع باندې هغوی ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ((أعطوني ردائی.....))(۸)

((مقفله)) مصدرميمی دې يا ظرف زمان اودَ ((قفول)) معنی ((رجوع)) ده. (۹) او هم دَ بخاری شريف په يو روايت کښې ((مقبلامن حنين)) (۱۰) الفاظ راغلی دی يعنی دغه وخت کښې حضور ﷺ دَ حنين نه واپس کيدلو، په دې روايت کښې دا حال واقع شوې دې. (۱۱)

---

۱ ) (حواله بالا-

۲ ) (حواله بالا-

۳ ) (تقريب التهذيب (۴۱۶) رقم (۴۹۶۳)-

٤ ) (الثقات لابن حبان (ج۷ص۱۶۶)-

۵ ) (تهذيب الکمال (ج۲۱ص٤۹۶)-

۶ ) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الأذان باب الجهر فی المغرب-

۷ ) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الغسل باب من أفاض علی رأسه ثلاثا-

۸ ) (سيرة ابن هشام (ج۳-٤ص٤۹۲)-

۹ ) (شرح الطيبی (ج۱۱ص۳۱) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۸)وجامع الأصول (ج۵ص۱۰)-

۱۰ ) (صحيح بخاری (ج۱ص٤٤۶) کتاب فرض الخمس باب ماکان النبی صلی الله عليه وسلم يعطی المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس ونحوه رقم (۳۱٤۸)-

۱۱ ) (فتح الباری (ج۶ص۲۵٤)-

((فعلقه الناس يسألونه حتى اضطروه إلى سمرة، فخطفت ردائه
خلق حضور ﷺ پورې اونختل او دَ هغوی نه ئې غوښتنه کوله، تردې چه حضور ﷺ دَ کيکر اونې پورې په پناه اخستلو مجبورشو نو کيکر دَ هغوی څادر مبارک رانښکلو.

((علق)) دادَباب ((سمع)) نه دې او((تعلق)) په معنی کښې دې يعنی اينختل او لازم نيول.(۱)

او دَ ((الناس)) نه مراد ((الأعراب)) يعنی کلی وال دی. لکه چه (کتاب فرض الخمس) په روايت کښې ((الأعراب)) راغلې دی. (۲)

او ((يسألون)) الناس نه حال واقع کيږی. (۳)

او دَ((خطف)) معنی ناڅاپی اوچتولو ده. (۴)
او دلته مطلب دا دې چه دَ حضور څادر دَ کيکر په ازغوکښې ګيوړ شو او په هغه ازغو کښې اونختلو. (۵)

**قوله: فوقف النبی صلی الله علیه وسلم فقال: أعطونی ردائی، لوکان عددهذه العضاه نعما لقسمته بينكم:** نو نبی کريم ﷺ توقف اختيارکړو او وئی فرمائيل چه زما څادر ماته راکړئی، که زما د دې ازغو او ونو برابر څاروی وې نو ټول به ما په تاسو خلقو کښې تقسيم کړې وې.
علامه قسطلانی دَ دې جملې مطلب دا بيان کړيدې چه زه خپل مال تاسو خلقو ته درکولوله تياريم نو تاسو خلقو چه دا کوم غنيمت حاصل کړيدې هغه خو زه په طريق اولی درکوم. (۶)

((عضاه)) دا دَ عضاهة وعضهة وعضة جمع ده. (۷) او عضاه هرهغه ونې ته وائی چه ازغيژنه وی لکه کيکر وغيره.(۸)
ابن التين رحمه الله فرمائی دا کلمه حالت وصل او وقف دواړو کښې دَ باء سره لوستلې شی.(۹)
**دَ کلمه "نعم" لغوی تحقيق:** دَ ((نعم)) تحقيق کولو سره علامه ابوجعفر النحاس رحمه الله فرمائی

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ١٤ص١١٨)-
۲ ) (صحيح بخاری (ج١ص٤٤٥٦) كتاب فرض الخمس باب ماكان النبی صلی الله عليه وسلم يعطی المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس ونحوه رقم (٣١٤٨)-
۳ ) (عمدة القاری (ج ١٤ص١١٨)-
٤ ) (مختار الصحاح (ص١١٨) مادة خطف-
۵ ) (شرح الطيبی (ج١١ص٣١)-
۶ ) (شرح القسطلانی (ج٥ص ٥٤)-
۷ ) (عمدة القاری (ج ١٤ص١١٨)-
۸ ) (جامع الأصول (ج٥ص ١٠)-
۹ ) (عمدة القاری(ج ١٤ص١١٨)-

چه د نعم اطلاق ابل، بقر او غنم باندې کیږي صرف اوښ ته نعم نشی وئیلی، دغه شان په غوا او بکرئی باندې هم د دې استعمال شائع نه دې.(۱)

او علامه فراء نحوی رحمه الله فرمائی ((هو ذکر لا یؤنث، یقولون: هذا نعم وارد، وجمعة نعمان کحمل وحملان)) (۲)

**دَ نعم اعراب:** دلته ((نعما)) منصوب واقع شویدې، او دَ ابوذر په روایت کښې دالفظ مرفوع دې. (۳)

نوکه دا کلمه مرفوع ده نودا دَ کان اسم مؤخر دې او ((عدد هذه العضاه)) خبر مقدم او که منصوب دې نو **نعما** بنا برتمییزمنصوب دې او **کان** تامه دې.

یا دا چه کان ناقصه دې او نعما دَ کان خبر او عددُ دَ کان اسم دې.

**قوله:** ثم لاتجدونی بخیلاً ولا کذوباً ولا جباناً: بیا به نه تاسو ما بخیل اومومئ او نه دروغژن او نه بزدل.

مطلب دا چه که تاسو ما په مشکل او سخت وخت کښې هم ازمینبت کړئی نوصفات رذیله مثلاً بخل، کذب اوبزدلي وغیره سره به مې متصف اونه مومئی (۴)

**نفی مطلق دَ وصف ده دَ مبالغې نه ده:** دلته نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دریو صفات رذیلوُ دَ خپل ذات مبارك نه نفي فرمائیلې ده او چه کوم الفاظ ئی فرمائیلی دی په هغې کښې کذب دَ مبالغه. جبان صفت دَ مشبهه صیغه دې،او بخیل دَ دواړو احتمال لری خودلته دَ مبالغې نفی مراد نه ده بلکه مطلقاً دَ وصف نفی ده گنې نو مشهور اشکال به پیښ شی چه په کذوب کښې نفی مطلقاً دَ کذب نه بلکه زیاتوالی دِ کذب دې، دغه شان په نورو الفاظو کښې هم دغه اشکال دی او مطلب به داسې شی چه کاذب خو دِې لیکن کذوب نه دې وهلم جرا-

دَ دې دَ پاره دلته مطلقًا نفی دَ اوصاف ثلاثه ده نه چه دَمبالغې. دا داسې ده لکه چه دَ الله تعالی په ارشاد کښې دی ﴿وما ربك بظلام للعبید﴾ (۵) په دې آیت کښې هم نفی مطلق دَ ظلم ده گنې نو الله تعالی به نعوذبالله ظالم کیدل لازم راشی او دا بدیهی البطلان دې. (۶)

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دا کلمه((ثم)) تراخی فی الرتبه دَ پاره دې.اودَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ ارشاد مطلب دادې چه زه په دې عطاء کښې مجبور نه یم بلکه پوره شوق او رغبت سره به

---

۱ ) (حواله بالا-

۲ ) (مختارالصحاح (ص ۶۶۹)-

۳ ) (فتح الباری (ج۶ص۳۵)-

٤ ) (شرح الطیبی (ج۱۱ص۳۲)-

۵ ) (فصلت:٤۶)-

۶ ) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۱۸) وشرح القسطلانی (ج۵ص۵٤)-

تاسوته درکوم او زه دروغژن هم نه یم چه اوس تاسو سره وعده اوکرم او تاسونه خان خلاص کرم، بیا روستو منکر شم او تاسو ته مال درنکرم او نه زه بزدل یم چه د چانه اوویریږم، نو لکه چه دا دواړه جملې ((ولاکذوبا ولاجبانا)) د کلام سابقه تتمه ده. علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ د عدم کذب نه د قوت عقلیه کمال یعنی حکمت طرف ته، عدم جبن نه د قوت غضبیه کمال یعنی بهادرئی طرف ته او عدم بخل نه د قوت شهویه کمال یعنی سخاوت طرف ته اشاره اوفرمائیله. یعنی حضور ﷺ قوت عقلیه، قوت غضبیه او قوت شهویه کښې کامل وو او همدغه دریواړه د قوی اخلاق فاضله اصل دي، رومبې صدیقین دوئم شهداء او دریم صلحاء مرتبه ده. اللهم اجعلنا منهم. (۱)

**د حدیث فوائد:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د جبیر په حدیث کښې یوځو فائدې دی مثلاً: ① که جاهلان د یو صاحب علم او فضل سړی باره کښې بدګمانئی ښکاروی نو هغه سړی له پکار دی چه هغه سړې دې د خپلو ښو عاداتو او ښکلې خصلتونو سرعام ذکر اوکړی، دې د پاره چه بدګمانی ختمه شی.

② د حدیث نه دا هم معلومه شوه چه یو سړې چا کښې چه بخل، کذب او بزدلئی په شان صفات رذیله وی نو هغه د خلقو مقتداء او پیشوا نشی جوړیدې. او خلقو ته هم پکار دی چه په چا کښې د دې نه یو صفت هم وی نو امام او خلیفه دې نه جوړوی. (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت د رسول الله ﷺ په دې مبارك ارشاد کښې دې. ((ثم لا تجدونی بخیلا، ولا کذوبا، ولا جبانا)) (۳)

## ۲۵- بَاب: مَا يُتَعَوَّذُ مِنَ الْجُبْنِ

**ماقبل سره ربط او مناسبت:** په وړاندینی باب کښې د بزدلئی مذموم او قبیح کیدو بیان وو او په دې باب کښې د دې خبرې ذکر دې چه هرکله بزدلی مذموم او قبیح دی نو دینه پناه غوښتل پکار دی.

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دا خودل غواړی چه د بزدلئی نه پناه غوښتل پکار دی لکه څنګه چه رسول الله ﷺ دې نه پناه غوښتې وه. (۴)

[۲٦٦٧] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُونٍ الْأَوْدِيَّ قَالَ كَانَ سَعْدٌ (٥) يُعَلِّمُ بَنِيهِ هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ كَمَا يُعَلِّمُ الْمُعَلِّمُ الْغِلْمَانَ

---

۱) (شرح الکرمانی (۱۲ص ۱۲۰)-
۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص ۳٤)-
۳) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۱۷)-
٤) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۱۹)-
۵) (قوله: سعد: الحدیث أخرجه البخاری أیضاً (جص۲ ۹٤۲) کتاب الدعوات باب التعوذ من عذاب القبر رقم (٦۳٦۵) و(ص۲ ۹٤۲) باب التعوذ من البخل رقم (٦۳۰) ..... [بقیه حاشیه په راروانه صحفه......

الْكِتَابَةَ وَيَقُولُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ مِنْهُنَّ دُبُرَ الصَّلَاةِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أُرَدَّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَحَدَّثْتُ بِهِ مُصْعَبًا فَصَدَّقَهُ [۶۳۷۰، ۶۳۷۴، ۶۳۶۵، ۶۳۹۰]

## تراجم رجال

۱- موسی بن اسمعیل: دا ابوسلمه موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دي. د دوی حالات ((بدء الوحی)) څلورم حدیث په ذیل کښې راغلی دی. (۱)

۲- ابوعوانه: دَدوی نوم وضاح بن عبدالله یشکری رحمه الله دي،دَدوی حالات هم ((بدء الوحی)) څلورم حدیث په ذیل کښې راغلی دی.(۲)

۳-عبدالملك بن عمیر: دا ابوعمر عبدالملك بن عمیر بن سوید الکوفی رحمه الله دي. (۳)

۴-عمرو بن میمون الاودي: دا ابویحیی عمرو بن میمون الاودی الخضرمی الکوفی رحمه الله دي. (۴)

۵-سعد: دا دَ رسول الله ﷺ مشهور صحابی حضرت سعد بن ابی وقاص اللیثی المدنی رضي الله عنه دي. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب إذا لم یکن الإسلام علی الحقیقة....)) لاندې راغلی دی.(۵)

**قوله:** قَالَ: كَانَ سعد يعلم بنيه هؤلاء الكلمات كما يعلم المعلم الغلمان الكتابة: عمرو بن میمون لاودی رحمه الله فرمائی چه حضرت سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه خپلو ځامنوته دا کلمې داسې خودلې لکه څنګه چه معلم شاګردانوته کتابت ښائی.

دلته دَ تمهید په توګه راتلونکې دعائیه کلماتو دَ اهمیت خودلو دَ پاره دابیان کړیشوچه حضرت سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه دَدې کلماتو خپلوبچوته دَ زده کولو بې حده اهتمام کولو او راوی عمرو بن میمون دَ دې ماشومانوته تحریر خودلو سره تشبیه ورکړه لکه چه څنګه

.....دتیرمخ بقیه] و(ص۹۴۲) باب الاستعاذة من أرذل العمر، ومن فتنة الدنيا ومن فتنة النار رقم (۶۳۷۴) و (ص۹۴۵) باب التعوذ من فتنة الدنيا رقم (۶۳۹۰) والترمذی فی سننه (ج۲ص۱۹۶) أبواب الدعوات باب فی دعاء النبي صلی الله علیه وسلم وتعوذه فی دبر کل صلوة رقم (۳۵۶۷) والنسائی (ج۲ص۳۱۵) تاب الاستعاذة باب الاستعاذة من فتنة الدنيا رقم (۵۴۸۰-۵۴۸۱) وباب الاستعاذة من البخل رقم (۵۴۴۹)-

۱ ) (کشف الباری (ج۱ص۴۳۳)-

۲ ) (حواله بالا (ص ۴۳۴)-

۳ ) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الأذان باب اهل العلم والفضل أحق بالإمامة-

۴ ) دَ دوی دَحالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أوجيفة لم تفسد عليه صلاته-

۵ ) (کشف الباری (ج۲ص۱۷۳)-

ماشومانوته د تحرير اوكتابت خودل د ډېر محنت او اهميت متقاضي وي دغه شان دا کلمات هم خودلو کښې محنت او اهتمام کول پکار دي.

**قوله: ويقول: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يدعو منهن دبر الصلاة:** او حضرت سعد رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ به د دې کلماتوسره د هرمانځه نه پس دعا فرمائيله. او هغه کلمات دا دي.

**قوله: اللهم إني أعوذبك من الجبن، وأعوذبك أن أرد إلى أرذل العمر، وأعوذ بك من فتنة الدنيا، وأعوذبك من عذاب القبر:** اې الله! زه ستا پناه غواړم د بزدلئ نه، ستا پناه غواړم چه راوګرځولې شم خراب عمر ته او پناه غواړم د دنيا د فتنې نه او پناه غواړم د قبرد عذاب نه.

«أرذل العمر» نه د ژوند هغه دور مراد دې کله چه د بوډاوالی د وجې نه د عقل او پوهې قوتونه کار پرېږدي، د غور او فکر صلاحيتونه ختم شي او سړې د عقل د خفت او فهم د کموالی نه د ماشومانو په شان حرکتونه کوي. (۱)

په نتيجه کښې د ده نه د فرائضو په ادا کولوکښې کوتاهي کيږي او د خپل بدن پاکئ او صفائي نه عاجز شي او د خپل کور او خاندان د پاره مصيبت او بوج جوړشي او هغوی د ده د مرګ ارزوګانې کوي اوکه خاندان وغيره نه وي نو بيا خو مصيبت او مصيبت دې نو سړي له د داسې وخت نه پناه غوښتل پکار دي. (۲)

«فتنة الدنيا» نه مراد دا دې چه د دنيا په بدله کښې آخرت خرڅ کړي، د دنيا فاني ژوند ته د آخرت په ابدي ژوند باندې فوقيت ورکړي. (۳)

د کتاب الدعوات په روايت کښې «فتنة الدنيا» تفسير د راوي حديث عبدالملك بن عمير په «فتنة الدجال» سره کړيدې. (۴)

اوپه دې خبره کښې هم څه شك نشته چه د دجال فتنه به د ټولو نورو فتنونه خطرناکه وي (۵)

**قوله: فحدثت به مصعبا فصدقه:** نو ما دا حديث مصعب ته واورولو او هغوی د حديث تصديق اوکړو.

د دې قول قائل راوي حديث عبدالملك بن عمير رحمه الله او مصعب نه مراد مصعب بن سعد بن ابی وقاص رحمه الله دې.

---

۱) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۲۱)-

۲) (عمدة القاری (۱٤ص۱۱۹)-

۳) (حواله بالا-

٤) (صحيح البخاری(ج۲ص۹٤۲) کتاب الدعوات، باب التعوذمن عذاب القبر رقم (۶۳۶۵)-

۵) (شرح القسطلانی (ج۵ص۵۵)-

اوس مطلب دا شو چه راوی حدیث عبدالملك بن عمیر وائی چه ما دا حدیث د تصدیق په غرض حضرت مصعب ته واورولو نو هغوی د حدیث د صحت تصدیق اوکړو.(۱)

**فائده:** ابن سعد رحمه الله ((طبقات)) کښې د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د اولاد شمیر ۳۱ خودلې دې په دې کښې ۱۴ خامن او ۱۷ لونړه وې.(۲)

او په دې کښې پنځه محدثین وو او د خپل والد صاحب نه به نې روایت کولو د هغوی نومونه دادی: عمر، عامر، محمد، مصعب اوعائشه. (۳)

**تنبیه:** حافظ مزی رحمه الله په اطراف کښې فرمائیلی دی چه امام بخاری د صحیح بخاری په روایت کښې مصعب بن سعدبن ابی وقاص نه دې ذکر کړې او نسائی ذکر کړیدې. (۴)

لیکن حافظ مزی رحمه الله ته دلته تسامح شویده ځکه چه د بخاری شریف په ټولو روایاتوکښې د مصعب تذکره موجود ده. (۵)

[۲۶۶۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ (۶) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ

[۴۴۳۰، ۶۰۰۶، ۶۰۰۸، ۶۰۱۰]

## تراجم رجال

۱- **مسدد:** دا مسدد بن مسرهد رحمه الله دی، د ده حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې تیر شویدې. (۷)

۲- **معتمر:** دا معتمر بن سليمان تيمی بصری رحمه الله دې. (۸)

---

۱) (عمدة القاری (۱٤ص۱۱۹)-

۲) (طبقات ابن سعد- (۳ص۱۳۷)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۳۶)-

٤) (تحفة الأشراف (ج۳ص۳۰۷)-

۵) (فتح الباری (ج۶ص۳۶)-

۶) (قوله: أنس بن مالک رضی الله عنه: احديث أخرجه البخاری أيضًا (ج۲ص۶۸۳) كتاب التفسير باب قوله تعالى: ﴿ومنكم من يرد إلى أرذل عمر﴾ رقم (٤۷۰۷) كتاب الدعوات، باب التعوذ من فتنة المحيا والممات رقم (۶۳۶۷) وباب الاستعاذة من الجبن والكسل رقم (۶۳۶۹) وباب التعوذ من أرذل العمر رقم (۶۳۷۱) ومسلم (ج۲ص۳٤۷) كتاب الذكر والدعاء باب التعوذ من العجز والكسل وغيره رقم (۶۷۷۳) وأبوداؤد (ج۱ص۲۱۵) تاب الصلاة

۷) (كشف الباری (ج۲ص۲)-

۸) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب العلم باب من خص بالعلم قوما دون كراهية أن لايفهموا-

۳-ابی: ((أب)) نه مراد ابوالمعتمر سلیمان بن طرحان تیمی بصری رحمه الله دي. (۱)

۴-انس بن مالك رضي الله عنه: دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي، دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیرشوی دی.(۲)

**قوله: کان النبی صلی الله علیه وسلم یقول: اللهم إني أعوذبك من العجز والکسل والجبن والهرم، وأعوذبك من فتنة المحیا والممات، وأعوذ بك من عذاب القبر:** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی یا الله زه ستا دَ پناه غوښتلو طلبګار یم، دَ عاجزه کیدلو، سستئی، بزدلئی او بوډاولی دَ انتهاء نه او زه ستادَ پناه غوښتونکې یم دَ ژوندانه او مرګ دَ فتنې نه او زه ستا دَ پناه غوښتونکې یم دَ قبر دَ عذاب نه.

**دَ حدیث شریف دَ ګرانو الفاظووضاحت:** ((عجز)) دَ قدرت ضد دې په یوکار باندې قدرت او طاقت نه لرونکی ته عاجز وئیلی شی.(۳)

او((کسل)) وائی ضعیف الهمتئی او سستئی ته، دَ دې نه پناه غوښتلووجه دا دې چه دا صفت دَ اعمال صالحوَ نه لرې کوی. (۴)

اوس دَ عجز اوکسل په مینځ کښې فرق دا شو چه کسل په یوکار باندې قدرت لرلوسره هغه پریخودل دی اوپه عجزکښې قدرت مفقود دې.نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دواړو نه پناه غوښتې ده.(۵)

دَ ((هرم)) باره کښې علامه کرمانی رحمه الله فرمائی ((ضدالشباب))(۶) چه دَ ځوانئی ضد دې. او امام راغب اصفهانی رحمه الله فرمائی چه ((هرم)) هغه بوډا ته وئیلې شي دَ چا عمر چه ډیر زیات شوې وی، دَ څه په وجه چه دَ هغه اندامونه دَ کمزورئی او ضعف ښکارشی. (۷)

دَ ((هرم)) نه پناه غوښتلو وجه دا ده چه دا دَ هغه بیمارونه دې دَ کوم چه څه علاج نه وی.(۸)

((محیاوممات)) دواړه مصدر میمی دی او دَ مرګ او ژوند په معنی کښې دی. ((فتنة المحیا)) دا ده چه سړې دَ دنیا په فتنه کښې اخته شی او په دې مشغول او غرقاب شی او آخرت شاته اوغورزوی.(۹)

---

۱) (حواله بالا-
۲) (کشف الباری (ج۲ص ٤)-
۳) (شرح الکرمانی(ج۱۲ص۱۱۲)-
٤) (عمدة القاری(ج١٤ص۱۱۹)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۳۶)-
۶) (شرح الکرمانی(ج۱۲ص۱۲۱)-
۷) (المغرب (ج۲ص۳۸۳) وعمدةالقاری (ج١٤ص۱۱۹)-
۸) (عمدةالقاری (ج١٤ص۱۱۹)-
۹) (عمدةالقاری(ج١٤ص۱۱۹-۱۲۰)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت د حديث په دې لفظ ((والجبن)) كښې دې.(۱)

## ۲۶- بَاب: مَنْ حَدَّثَ بِمَشَاهِدِهِ فِي الْحَرْبِ

**ماقبل سره مناسبت:** اول امام بخارى رحمه الله باب قائم كړې وو دَ ((باب الشجاعة فى الحرب والجبن)) او په دې كښې شجاعت وبسالت فى الحرب تعريف وو او په دې باب كښې دَ دې خبرې بيان دې كه يو سړې دَ خپلې بهادرئى او جانبازئى واقعات خلقو ته اوروى نو جائز دى خو په دې شرط چه رياء او ځان خودنه نه وى.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ ترجمة الباب مقصد دا دې چه دَ اعلاء كلمة الله دَ پاره كه ڇا څه تكليف اوچت كړو او څه مشقت ئى برداشت كړو نود هغې خلقو ته بيانول جائز دى. ددې دَ پاره چه خلقو ته د دې ترغيب وى او هغوى دَ دې په اقتداء كښې فخر محسوس كړى خو كه مقصد دَ بهادرئى او رياء كارئى وى نو ناجائز دې. (۲)

**قوله:** قَالَهُ أَبُو عُثْمَانَ عَنْ سَعْدٍ: [ر:۳۰۷۱،۳۵۱۷] دا (خبره) ابوعثمان دَ سعدنه نقل كړيده. دلته دَ ابوعثمان نه النهدى مراد دې، اود سعدنه حضرت سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه مراد دې.(۳)

اودا تعليق امام بخارى رحمه الله موصولاً ((كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم و كتاب المغازى)) (۴) كښې نقل كړيدې. (۵)

اودَ دې تعليق مقصد دا دې چه حضرت سعد رضى الله عنه دَ خپلې بهادرئى واقعات بيانول. (۶)

[۲۶۶۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ(۷) قَالَ صَحِبْتُ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ وَسَعْدًا وَالْمِقْدَادَ بْنَ الْأَسْوَدِ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ فَمَا سَمِعْتُ أَحَدًا مِنْهُمْ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا أَنِّي سَمِعْتُ طَلْحَةَ يُحَدِّثُ عَنْ يَوْمِ أُحُدٍ [۳۸۳۵]

---

۱) (عمدة القارى (ج ١٤ص١١٩-

۲) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٢٠)-

۳) (حواله بالا-

٤) (صحيح البخارى(ج ١ص٥٢٧) كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم باب ذر طلحة بن عبدالله رقم ۲۷۲۲-۲۷۲۳) و (ج۲ص۵۸۱) كتاب المغازى باب ﴿إذا همت طائفتان منكم أن تفشلا﴾ رقم (٤٠٦٠-٤٠٦١)-

۵) (تغليق التعليق (ج ٣ص ٤٣٣)-

۶) (فتح البارى (ج ۶ص ۳۶)-

۷) (قوله: عن السائب بن يزيد: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج ٢ص ٥٨١) كتاب المغازى باب ﴿إذهب طائفتان منكم أن تفشلا﴾ رقم (٤٠٦٠) والحديث أخرجه البخارى فقط كما فى جامع الأصول (ج٨ص٢٥٣)

# تراجم رجال

۱- قتيبه بن سعيد: دا شيخ الاسلام، روايۀ الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد بن ثقفی رحمه الله دي. د دوی حالات ((كتاب الإيمان باب افشاء السلام من الإسلام)) لاندې راغلی. (۱)

۲- حاتم: دا ابواسماعيل المدنی الكوفی رحمه الله دی. (۲)

۳- محمد بن يوسف: دا محمد بن يوسف بن عبدالله الكندی ابن اخت النمر المدنی رحمه الله دي. (۳)

۴- السائب بن يزيد: دا سائب بن يزيدبن الكندی رحمه الله دي. دا د اصاغرصحابه نه وو. (۴)

**قوله: قال: صحبت طلحة بن عبيدالله وسعدا والمقدادبن الأسود وعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنهم، فما سمعت أحداً منهم يحدث عن رسول الله صلی الله عليه وسلم:** حضرت سائب بن يزيد رضی الله عنه فرمائی چه زه د حضرت طلحه بن عبيدالله، حضرت سعدبن ابی وقاص، حضرت مقداد بن الاسود او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنهم په صحبت كښې پاتې وم خو په دوی كښې يو كس نه مې هم د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه د حديث روايت كول نه دی اوريدلی.

**د صحابه كرامو په روايت حديث كښې د احتياط وجه:** علامه ابن بطال فرمائی چه دې حضراتو د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه د حديث روايت په دې وجه نه كولو چه چرته د هغوی نه په حديث كښې كمې زياتې اونه شی. او هغوی د رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې وعيد كښې داخل نشی. ((من يقل علی مالم أقل فليتبوأ معقده من النار)) (۵)

دا حضرات د حديث په روايت كښې د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد ((فأقلوا الرواية عن الرسول، ثم أناشريككم)) (۶) تاسو د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه كم روايت كوئی او بيا زه هم تاسو سره په دې معامله كښې شريك يم. په دې وجه به هغوی محتاط اوسيدل. (۷)

هم د راوی حديث حضرت سائب بن يزيد رضی الله عنه په ابن ماجه كښې روايت دې ((صحبت سعدبن

---

۱) (كشف الباری (ج۲ص۱۸۹)-
۲) (ددوی د حالاتود پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب (بلاترجمة) بعد باب استعمال فضل وضوء الناس
۳) (د دوی د حالاتود پاره اوګورئ كتاب جزاء الصيد، باب حج الصبيان -
٤) (د دوی د حالاتود پاره اوګورئ كتاب الضوء باب (بلاترجمة) بعد باب استعمال فضل وضوء الناس
۵) (الحديث أخرجه البخاری (ج۱ص۲۱) كتاب العلم باب إثم من كذب علی النبی صلی الله عليه وسلم رقم (۱۰۹)-
۶) (سنن ابن ماجه (ص ٤) المقدمة باب التوقی فی الحديث عن رسول الله صلی الله عليه وسلم رقم (۲۸)-
۷) (شرح ابن بطال (ج۵ص۳۶)-

مالك من المدينة إلى مكة، فما سمعته يحدث عن النبى صلى الله عليه وسلم بحديث واحد)) (۱) زه حضرت سعدبن مالك رضي الله عنه سره دَ مدينې نه ترمكې پورې په سفركښې وم، خو ما دَ هغوى نه دَ نبى كريم ﷺ يو حديث هم روايت كولو سره واونه ريده.

ډيرو صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين به دَ نبى كريم ﷺ نه دَ حديث په روايت كولوكښې احتياط كولو.(۲)

**قوله: إلا أنى سمعت طلحة يحدث عن يوم أحد:** مګردا چه ما دَحضرت طلحه رضي الله عنه نه دَ أحددَ ورځې واقعات بيانول اوريدلې.

مطلب دا چه حضرت طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه كه څه بيان هم كولو نو دَ غزوه احد په موقع باندې چه هغوى كوم كارنامې كړې وې هغه ئې بيانولې ځكه چه هغه دَ جنګ احد په ورځ دَ كړېږ په وخت كښې دَ هغه صحابه كرامو نه وو كوم چه ثابت قدم وو اودَ هغوى قدمونه ګډود شوې نه وو. ليكن دَ نبى كريم ﷺ نه ئې روايت نه كولو. خشية الزيادة والنقصان. (۳)

هم امام بخارى رحمه الله په (كتاب المغازى) كښې دَ قيس نه روايت نقل كړيدې. ((رأيت يد طلحة شلاء وقى بها الرسول صلى الله عليه وسلم يوم أحد)) مادَ حضرت طلحه رضي الله عنه لاس شَل شوې اوليدلو دَ كوم په ذريعه چه هغه دَ احد په ورځ دَ رسول الله ﷺ حفاظت كولو. (۴)

دغه شان يو بل روايت چه دَ ابوعثمان النهدى نه مروى دې په دې كښې دى ((لم يبق مع النبى صلى الله عليه وسلم فى تلك الأيام الذى يقاتل فيهم غير طلحة وسعد))) (۵)

**دَ حديث دَ ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت دَ حديث په دې جمله كښې دې: ((سمعت طلحة يحدث عن يوم أحد)) ما حضرت طلحه رضي الله عنه دَ خپلو جنګى كارنامو بيانولو سره اوريدلې دې كومې چه هغه په جنګ احد كښې سرته رسولې وئى.(۶)

## ۲۷- بَاب: وُجُوبِ النَّفِيرِ وَمَا يَجِبُ مِنْ الْجِهَادِ وَالنِّيَّةِ

**ماقبل سره ربط او مناسبت:** امام بخارى رحمه الله په ماقبل كښې دَ مختلفو عنواناتو لاندې دَ جهاد او قتال في سبيل الله فضائل نقل كړې وو، اوس دَ څه احكامات جهاد ذكرئې هم كړې وو. او دَ جهاد دَ وجوب متعلق نور احكامات بيانول غواړى.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله دَ دې ترجمة الباب نه نفيرعام په وخت كښې دَ جهاد

---

۱ ) (ابن ماجه (ص ٤) المقدمة باب التوقى الحديث عن رسول الله صلى الله عليه وسلم رقم (۲۹)-
۲ ) (مرهذاالبحث مفصلا فى كتاب باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم فراجعه إن شئت-
۳ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٢٠)-
٤ ) (صحيح البخارى كتاب المغازى باب ﴿إذهمت طائفتان منكم أن تفشلا. والله وليهما﴾ رقم (٤٠٦٣)-
٥ ) (حواله بالا رقم (٤٠٦٠-٤٠٦١)-
٦ ) (عمدة القارى (١٤ص ١٢٠)-

دَ وتلو وجوب، دَ جهاد مشروع مقدار او دَ نیت مشروعیت بیانول غواړي. (۱)
او دا هم کیدیشی چه دَ مصنف مقصد دا وی چه جهاد په هرحال کښې فرض عین دې او همدغه قول دَ حضرت سعیدبن المسیب رحمه الله هم دې. (۲) لکه چه مونږ دَ (کتاب الجهاد) په شروع کښې بیان کړی دی.
اودَ دې خبرې تفصیل هم چه جهاد دَ نفیرعام په وخت کښې فرض عین ګنی فرض کفایه دې او دا چه دَ جهاد دَ نیت مشروعیت اوس هم باقی دې او دا مونږ دَ (کتاب الجهاد) په شروع کښې بیان کړي دي.
**دَ نبی کریم ﷺ په زمانه کښې دَ جهاد څه حکم وو؟:** باقی دا چه دَ نبی کریم ﷺ په مبارکه زمانه کښې څه حکم وو په دې کښې اختلاف دې. په دې کښې دَ جمهورو اتفاق دې چه جهاد دَ نبی کریم ﷺ دَ مدینې منورې دَ هجرت نه پس مشروع شو خو دَ دې نه پس آیا دا فرض عین وو که فرض کفایه؟
علامه ماوردی رحمه الله فرمائی چه دَ مهاجرینو په حق کښې فرض عین وو او دَ انصارو په ذمه فرض کفایه وو. په دې باندې دلیل دَ فتح مکه نه وړاندې په هر نوی مسلمان باندې مدینې منورې ته هجرت کول واجب وو دې دَ پاره چه دَ اسلام نصرت او معاونت اوکړیشی. (۳)
لیکن علامه سهیلی رحمه الله فرمائي چه په انصارو فرض عین وو او په مهاجرینو فرض کفایه.
دَ دې قول تائید دَ لیلة العقبه دَ بیعت نه کیږی چه په دې موقع دَ انصارو نه نبی ﷺ دَ دې خبرې بیعت اخستې ووچه هغوی به ده ته پناه ورکوی او دَ هغه نصرت به کوی. (۴)
اوس دَ دواړو دَ اقوالو حاصل دا شوچه په انصارو او مهاجرینو دواړو باندې فرض عین هم وو او فرض کفایه هم خو دَ دې باوجود دا حکم په خپل عموم باندې نه دې بلکه دلته دوه صورتونه دی:
① دَ مدینې نه باهر اوځی او جنګ اوکړی.
② په مدینه کښې پاتې شی او جنګ اوکړی.
نو په دواړو اقوالوکښې داسې تطبیق ممکن دې که دَ مدینې نه بهر وتل او دَ جنګ صورت وی نو په مهاجرینو باندې فرض عین وو او په انصارو باندې فرض کفایه.
اوکه جنګ هم په مدینه منوره کښې دننه وی نو په انصارو باندې فرض عین او مهاجرینو باندې فرض کفایه. (۵)
غالباًهم دَ دې دَ پاره حضور ﷺ دَ غزوه بدر په موقع روئې سخن دَ انصارو طرف ته کړې وو ځکه چه هغوی سره معاهده شوې وه چه هغوی به په مدینه کښې پاتې وی حفاظت او

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۲۰) وفتح الباری (ج۶ص۳۷)-
۲) (الأبواب واتراجم للکاندهلوی (ج۱ص۱۹۵)-
۳) (فتح الباری (ج۶ص۳۷)-
۴) (حواله بالا-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۳۷)-

معاونت به کوی. (۱)

بعض حضراتو خو دا وئیلی چه په کومه غزوه کښې حضور ﷺ پخپله بنفس نفیس شریک وی په هغې کښې د ټولو شرکت د فرض عین په توګه دی ګنی فرض کفایه. (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله ترجیح دې خبرې له ورکړې چه نبی کریم ﷺ به څوك معین کول د هغه په حق کښې فرض عین وو سره د دې چه هغه ونه وتلو. (۳)

وَقَوْلِ اللَّهِ عَزَّوَجَلَّ انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَاتَّبَعُوكَ وَلَكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ الْآيَةَ [التوبة:۴۱-۴۲]

وَقَوْلِهِ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ إِلَى قَوْلِهِ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ [التوبة:۳۸-۳۹]

**د رومبی ایت ترجمه او تشریح:** اود الله تعالی ارشاد دې چه د جهاد د پاره اوځئ اګر که لږسامان سره وی او که د ډیرسامان سره وی اود الله تعالی په لارکښې په خپل ځان او مال سره جهاد اوکړئ، همدغه ستاسو د پاره بهتر دی که چرې تاسو یقین لرئی اوکه څه په لاس لګیدلې ملاویدل او معمولی شان سفر هم وې نو دا منافقان به خامخا تاسره وو لیکن دوی ته خو دا مسافت لرې معلوم شو (په دې وجه منع شو او چه کله تاسو واپس د جهاد نه راشئی) نود الله تعالی قسمونه به خوری.(۴)

((**خفافا وثقالا**)) معنی خو یا ((**متأهبین أوغیرمتأهبین**)) ده. یعنی که د تیاری حالت وی یاد ((**نشاط أوغیرنشاط**)) چه زړه ئی کوی اوکه نه ئې کوی یا د ((**رجالا أو رکبانا**)) دې یعنی که پیاده وی او که سور په هرحالت کښې اوځئی.

اودا دواړه کلمې د (**انفروا**) ضمیر د جمع نه حال واقع شوی دی په دې وجه منصوب دې.(۵)

حضرت سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه پورته ذکر شوی آیت ((**انفروا خفافا وثقالا**)) د سورة التوبه د ټولونه اول نازل شوې آیت دې. د ابومالك الغفاری او ابن الضحاك همدغه قول دې او بله دا چه نور آیاتونه روستونازل شوی دی. (۶)

---

۱) (سیرة ابن هشام مع الروض الأنف للسهیلی (ج۲ص۶۴) قال ابن اسحق:.... ثم قال رسول الله ﷺ أشیروا علی یاأیها الناس ...وإنما یرید الأنصار، وذلک أنهم عددالناس، وأنهم حین بایعوه بالعقبة قالوا: یارسول الله ﷺ إنا براء من ذماماک حتی تصل إلی دورنا، فإذا وصلت إلینا فأنت فی ذمتنا نمنعک مما نمنع منه أبناءنا ونساءنا. ولمزید من التفصیل انظر کشف الباری کتاب المغازی (ص۵۳)-

۲) (فتح الباری (ج۶ص۳۷)-

۳) (فتح البای (ج۶ص۳۷)-

۴) (بیان القرآن سورة التوبة(ج۱ص۱۱۳)-

۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۱) وتفسیر الطبری (ج۶جزء ۱ص۹۸)-

۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۰) وتفسیر الطبری (ج۶جزء ۱ص۹۸)-

بعضو صحابه كرامو لكه حضرت ابوايوب انصارى او مقداد بن اسود رضي الله عنهم د دې ايت مبارك د نزول نه پس د يوجنګ نه هم تخلف نه كولو يعنى روستو پاتې كيدل نې ناخوښولو او پورته ذكر شوى آيت مبارك به ئې په عموم باندې محمول كولو. تردې چه د دې حضراتو انتقال هم د جهاد په ميدان كښې اوشو.(۱)

**قوله: وقوله: يأأيها الذين مالكم إذا قيل لكم انفروا في سبيل الله اثاقلتم إلى الأرض؟أرضيتم بالحياة الدنيا من الآخرة....قدير:**

**د دوئم ايت ترجمه او تشريح:** د الله تعالى ارشاد مبارك دې: اې د ايمان خاوندانو!په تاسو څه شوى دى چه كله تاسو ته وئيلې كيږى چه د الله تعالى په لاركښې اوځئ نو تاسو په زمكه پورې اينخلئ؟ آيا تاسو د آخرت په عوض د دنيا په ژوند قناعت كړيدې، نود دنياوى ژوند تمتع خو هيڅ هم نه دى، ډير قليل دې. كه تاسو د جهاد د پاره اونه ځئ نو الله تعالى به تاسو ته سخته سزا دركړى او ستاسو په بدله كښې به بل قوم پيدا كړى(اود هغوى نه به خپل كاروا خلى) او تاسو به الله تعالى ته هيڅ نقصان اونه رسوئى او د الله تعالى په هرڅيز باندې پوره قدرت دې.(۲)

په دې آياتونوكښې په هغه خلقو عتاب نازل كړيشويدې كوم چه په غزوه تبوك كښې روستو پاتې شوې وو.(۳)

**يو سوال او د هغې جوابونه:** اوس دلته سوال داپيداكيږى چه امام بخارى رحمه الله د قرآن كريم د ترتيب نه خلاف ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾ مقدم او ﴿ياأيها الذين آمنوا إذا قيل....﴾ ولې موخر كړو او په قرآن كښې خود دې عكس دې.؟

د دې اشكال څو جوابونه دى:

① يوجواب دا وركولې شى چه امام بخارى رحمه الله اصل ترتيب د نزول په اعتبار سره كړيدې او دا خبره اوس د طبرى په حواله سره تيره شوې ده. چه د سورة البراءة آياتونوكښې د ټولونه اول آيت ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾نازل شوې دې.(۴)

② شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله دا جواب وركړيدې چه كيديشى امام بخارى رحمه الله د دوو حالتونو طرف ته اشاره كول غواړى كوم چه حافظ صاحب (فتح البارى) ښې ذكر كړيدى. (يعنى د نبى ﷺ په مباركه زمانه كښې د جهاد حكم او د هغوى نه پس د جهاد حكم) (۵)

نوامام بخارى رحمه الله رومبنې آيت د دې د پاره مقدم كړو چه په دې كښې مطلقًا دلالت على فرض الخروج موندلې شى، د دې نه ئې دا اشاره اوكړه چه د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې

۱) (فتح البارى (ج۶ص۳۸)-
۲) (بيان القرآن سورة التوبة(ج۱ص۱۱۲)-
۳) ( (عمدة القاري (ج ١٤ص١٢١)-
٤) (جامع البيان فى تفسير القرآن (ج۶جزء۱۰ ص۹۸)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۳۷)-

جهاد مطلقا فرض عین وو خو دوئم ایت ئې د مقدم کیدو باوجوخکه موخر کړو چه هغه جهاد مطلقا فرض عین وو خو دوئم ایت ئې د مقدم کیدو باوجوخکه مؤخر کړو چه هغه مقید ((واذا قیل لکم انفروا)) دي، نو په دوئم صورت کښې د جهاد فرضیت د نفیرعام سره مقید دې فتامل (۱)

**قوله: یُذْکَرُ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ انفِرُوا ثُبَاتٍ [النساء:۷۱] سَرَایَا مُتَفَرِّقِیْنَ یُقَالُ أَحَدُ الثُّبَاتِ ثُبَةٌ:** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه هغوی ﴿انفروا ثبات﴾ کښې ((ثبات)) معنی ((سرایا متفرقین)) بیان کړیده.

**د مذکوره تعلیق تخریج:** د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دا تعلیق امام ابن جریر طبری رحمه الله موصولاً په خپل تفسیرکښې ذکر کړیدې. (۲)

**دمذکوره تعلیق مطلب:** د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د دې تعلیق مطلب دا دې چه دقرآن کریم آیت ﴿یاایها الذین آمنوا خذوا حذرکم فانفروا ثبات أو انفروا جمیعا﴾ (۳) کښې دا کوم د ((ثبات)) لفظ وارد شویدې د دې معنی ((سرایا متفرقین)) ده. اوس د آیت معنی دا شوه چه په مختلفو او جدا جدا ډلو کښې د جهاد د پاره اوځئی یا ټول په ټول هم په یو جماعت کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره اوځئی خو ځان سره وسله خامخا یوسئی د دې د پاره چه تاسو خپل حفاظت اوکړیشئی. (۴)

بعض حضراتو دا دعوی کړیده چه د سورة النساء دا ذکر شوې آیت د سورة البراءة آیت ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾ د پاره ناسخ دې. لیکن حافظ رحمه الله فرمائی چه په تحقیق سره خبره دا ده چه دلته نسخ نشته دې بلکه دلته معامله د امام وخت حواله ده چه کوم صورت اختیاروی اجازت دې او په حالاتو یاندې موقوف دی چه د حالاتوکومه تقاضا وی هم په هغې باندې به عمل هم وی. (۵)

**قوله: یُقَالُ واحدُ الثُّبَاتِ: ثُبَةٌ:** وئیلې شی چه د ((ثبات)) مفرد ((ثبة)) دې.

دا قول د امام بخاری رحمه الله د استاذ ابوعبیده رحمه الله دې کوم کښې چه هغوی د ((ثبات)) لغوی تحقیق بیان کړي دي چه دا **ثبة — بضم المثلثة وتخفیف الباء الموحدة بعدها هاء تانیث** — جمع ده اود ((ثبة)) جمع ((ثبتین)) هم راځی اود دې معنی جماعت ده. (۶)

---

۱) (الأبواب والتراجم (ج۶ص۳۷)-

۲) (قال الإمام ابن جریر الطبری: حدثنی المثنی قال: ثنا عبدالله بن صالح قال:حدثنی معاویة عن علی بن أبی طلحه عن ابن عباس قوله:﴿خذوا حذرکم فانفروا ثبات﴾ یقولک عصبا یعنی: سرایا متفرقین..... جامع البیان (ج٤جزء ۵ص ١٠٤-١٠٥)-

۳) (النساء:۷۱)-

٤) (جامع البیان (ج٤جزء ۵ ص ١٠٤)-

۵) (فتح الباری (ج۶ص۳۸)-

۶) (حوالہ بالا

اودَ ((ثبة)) دا کلمه ((ثبة يثبوثبوا)) نه مشتق ده او ونیلی شی ((ثبيت الرجل: إذا أثنيت عليه فی حياته)) کله چه ته دَ چا تعریف دَ هغه په ژوندکښې اوکړې لکه چه تادَ هغه ټول محاسن راجمع کړی دی. (۱)

امام نحاس رحمه الله فرمائی چه دَ ((ثبة)) یوه بله معنی هم راځی ((ثبة الحوض)) معنی دَ حوض مینځ او دا دَ ((ثاب يثوب)) نه راځی دَ څه معنی چه رجوع ده. چونکه دَ حوض ټولې اوبه دَ هغې مینځ کښې واپس کیږی او راجمع کیږی په دې وجه دې ته ((ثبة)) وائی اودَ دې تصغیر ((ثويبة)) دې او ((ثبة)) په معنی دَ ((الجماعة)) تصغیر ((ثبية)) راځی. (۲) والله اعلم.

[۲۶۷۰] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (۳) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا [ر: ۱۵۱۰]

## تراجم رجال

۱- عمروبن علی: دا ابوحفص عمرو بن علی بن بحربن یحیی بن کثیر الباهلی البصری رحمه الله دې. (۴)

۲- یحیی: دا ابوسعید یحیی بن سعید بن فروخ القطان تمیمي رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیرشوی. (۵)

۳- سفیان: دا مشهور امام حدیث ابوعبیدالله سفیان بن سعیدبن مسروق ثوری کوفی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې بیان کړیشوی دی. (۶)

۴- منصور: دا مشهور محدث ابوعتاب منصوربن المعتمر السلمی الکوفی رحمه الله دې دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أیاما معلومة)) لاندې تیرشوی. (۷)

۵- مجاهد: دا شیخ القراء والمفسرین ابوالحجاج مجاهد بن جبرمکی قرشی رحمه الله دې.

---

۱) (عمدة القاری (ج ۶ص ۳۸)-
۲) (فتح الباری (ج ۶ص ۳۸)-
۳) (قوله: عن ابن عباس رضی الله عنهما: الحدیث مرتجریجه فی کتاب الحج باب لایحل القتال بمکة-
۴) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب الرجل یوضئ صاحبه-
۵) (کشف الباری (ج ۲ص ۲)-
۶) (کشف الباری (ج ۲ص ۲۷۸)-
۷) (کشف الباری (ج ۳ص ۲۷۰)-

دَ دوى حالات ((كتاب العلم باب الفهم فى العلم)) لاندې بيان کړېشوى دى. (۱)

۶-طاؤس: دا طاؤس بن کيسان اليمانى الجُندى الحميرى رحمه الله دې. (۲)

۷-ابن عباس: دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما دې. دَ ده حالات ((بدء الوحى)) دَ څلورم حديث په ذيل کښې تيرشوى دى. (۳)

**قوله:** أن النبى صلى الله عليه وسلم قال يوم الفتح: لاهجرة بعد الفتح، ولكن جهاد ونية: حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما فرمائى چه نبى کريم ﷺ دَ مکې دَ فتح په ورځ ارشاد اوفرمائيلو چه دَ فتح مکه نه پس هجرت فرض نه دې ليکن دَ جهاد او نيت حکم باقى دې.

دَ حديث شريف دَ دې ټکړې تشريحات (كتاب الجهاد) په شروع کښې ((باب فضل الجهاد والسير)) په ذيل کښې بيان شوې دې.

**قوله:** وإذا استنفرتم فانفروا: او چه کله تاسو ته دَ وتلو حکم درکړېشى نو اوځئى. علامه نووى رحمه الله دَ دې جملې په تشريح کښې فرمائى چه مطلب دا دې چه دَ وخت امام تاسو ته دَ جهاد او نورو نيکو اعمالوحکم درکړى نو تاسو دَ هغه خبره منئى اواوځئى.(۴)

**قوله:** لاهجرة بعد الفتح، ولكن جهاد ونية: ترکيبى حيثيت نه دَ عبارت تقدير داسې جوړيږى ((لاهجرة باقية بعد الفتح، ولكن جهاد ونية باقيان)) يعنى دَ وطن نه هجرت کول يا دَ کفارو دَ تسلط نه دَ بچ کيدو دَ پاره کيږى يا دَ جهاد دَپاره يا دَ علم دَ طلب دَپاره. نو اول صورت خو منقطع شو او نور دواړه صورتونه اوس هم باقى دى. نو دا غنيمت اوګڼړئى او په کور کښې مه کينئى، بلکه چه کله تاسو دَ جهاد دَپاره راوبلى نودَ امام په آواز باندې لبيک وايئى. (۵)

اود حديث شريف دَ پورتِه ذکر شوې جملې نه دا هم معلومه شوه چه امام وخت کوم سړې مقرر کړى چه هغه دې دَ جهاد دَ پاره اوځى نو دَ هغه دَ پاره وتل واجب او ضرورى دى اوس روستود پاتيکيدو اجازت نشته. (۶)

**فائده:** په حديث کښې دَ دې خبرې زيرې دې چه مکه مکرمه ((زادها الله شرفا وكرامة)) هميشه به دارالاسلام وى. (۷)

---

۱ ) (كشف البارى (ج۳ص۳۰۷)-

۲ ) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب (بلاترجمة) رقم الحديث(۲۱۸)-

۳ ) (كشف البارى (ج۱ص۴۳۵)-

۴ ) (شرح النووى على مسلم (ج۲ص ۱۳۰)-

۵ )(قال العلامة الطيبى، انظرشرح الطيبى على مشكوة المصابيح(ج۷ص۲۸۷) وفتح البارى (ج۶ص۳۹)-

۶ ) (فتح البارى (ج۶ص۳۹)-

۷ ) (فتح البارى (ج۶ص۳۹)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَ حديث ترجمة الباب سره مطابقت ((ولكن جهاد ونية وإذا استنفرتم فانفروا)) په جمله كښې دې. (۱)

## ۲۸- بَاب: الْكَافِرِ يَقْتُلُ الْمُسْلِمَ ثُمَّ يُسْلِمُ فَيُسَدِّدُ بَعْدُ وَيُقْتَلُ

**ماقبل سره ربط**: په تيرشوى باب كښې امام بخارى دَ نفيرعام په وخت كښې دَ جهاد فرض او واجب حكم بيان كړې وو او په دې باب كښې امام بخارى دَ هغه كافر حكم بيانوى چا چه يو مسلمان قتل كړې وى بيا الله تعالى هغه دَ ايمان په توفيق او نعمت سرفراز كړو، بيا هغه پخپله هم دَ الله تعالى په لاركښې جنګ كولوكښې شهيد شو نو هغه به هم جنت ته ځى.

**دَ ترجمة الباب مقصد**: دَ ترجمة الباب مقصد دَ هغه كافر سړى دَ حكم بيانول دى چه يو مسلمان قتل كړى بيا اسلام قبول كړى اودَ هغې نه پس هغه پخپله هم شهيد شى، نودَ هغه كافر حكم هم ظاهر دې چه هغه هم جنتى دې چه دَ حديث باب نه مفهوم كيږى په دې وجه امام بخارى د هغې جواب ذكر نه كړو. (۲)

**اختلاف نسخ**: دَ صحيح بخارى په ټولونسخوكښې ترجمة الباب داسې دې لكه چه مونږ ذكر كړيدې. خودَ علامه كرمانى رحمه الله په روايت كښې داسې دى: ((باب الكافر يقتل المسلم فيسلم، فيسدد دينه بعد القتل أوثم يصير مقتولا)) (۳)

دغه شان دَنسفى په روايت كښې ((بعدُ)) نه پس واو نشته بلكه ((أو)) دې او هم په دې باندې علامه ابن بطال رحمه الله (۴) او اسماعيلى رحمه الله جزم كړيدې. (۵)

او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه همدغه روايت دَ نسفى، دَ امام بخارى رحمه الله دَ مراد سره ډير مناسب معلوميږى. (۶)

[۲۶۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۷) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَضْحَكُ اللَّهُ إِلَى رَجُلَيْنِ يَقْتُلُ أَحَدُهُمَا الْآخَرَ يَدْخُلَانِ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُ هَذَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلُ ثُمَّ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَى الْقَاتِلِ فَيُسْتَشْهَدُ

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱٤ص ۱۲۲)-
۲) (عمدة القارى (ج ۱٤ص ۱۲۲) وشرح القسطلانى (ج۵ص ۵۷)-
۳) (شرح الكرمانى(۱۲ج ۱۲۲)-
٤) (ابن بطال (ج۵ص ۳۸)-
۵) (عمدة القارى (ج ۱٤ص ۱۲۲)-
۶) (فتح البارى (ج ۶ص ٤٠)-
۷) (قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه مسلم كتاب الإمارة باب بيان الرجلين يقتل أحدهما الآخر يدخلان الجنة رقم (٤٨٩٤) والنسائى فى سننه، كتاب الجهاد، باب اجتماع القاتل والمقتول فى سبيل الله فى الجنة، وتفسير ذلك رقم (۳۱۶۷-۳۱۶۸) وابن ماجه فى سننه المقدمة باب فيما أنكرت الجهمية رقم(۱۹۱)-

# تراجم رجال

۱- عبدالله بن يوسف: دا عبدالله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دي. دَ ده حالات ((بدء الوحى)) دوئم حديث په ذيل کښې تيرشوى دى.(۱)

۲- مالك: دا مشهورامام مالك بن انس بن مالك الاصبحى رحمه الله دي.دَ دوى حالات هم ((بدء الوحى)) دوئم حديث په ذيل کښې تيرشوى دى.(۲)

۳- ابوالزناد: دا ابوالزنادعبدالله بن ذكوان رحمه الله دي.دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب حب الرسول صلى الله عليه من الإيمان))(۳)

۴- الاعرج: دا ابوداودعبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دي. دَدوى حالات هم دَ مذكوره باب لاندې تيرشوې دي. (۴)

۵- ابوهريرة: دا مشهور صحابى رسول ﷺ، حضرت ابوهريره عبدالرحمن بن صخر رضی الله عنه دي، دَدوى حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې راغلى دى. (۵)

قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: يضحك الله إلى رجلين: دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى الله تعالى د دوو سړو نه راضى كيږى.

**دَ الله تعالى دَ طرف نه دَ ضحک دَ نسبت توضيح:** دلته په حديث بابِ کښې دَ الله تعالى دَ طرف دَ ضحك نسبت كړيشويدې او ضحك دَ مخلوق صفت دې. نودَ دې نه دَ خالق مخلوق سره تشبيه لازم راځى؟ علامه كرمانى فرمائي چه ضحك او دا قسم نور مثالونو اطلاق كه په الله تعالى باندې وى نو دَ دې نه مجازاً دَ دې لوازم مراد كيږى او لازم الضحك دَ الله تعالى رضا ده. دلته به دَ ضحك نه مراد دَ الله تعالى رضاوى. (۶)

علامه خطابى رحمه الله فرمائي چه هغه ضحك كوم چه دَ انسانى صفاتو نه دى اودَ سړى دَ خه خوشحالئى او فرحت دَ اظهار دَ پاره كيږى،دَ دې اطلاق الله تعالى دَ پاره ناجائز دې. دَ دې ذكركولو وجه دلته دا ده چه دا دَ بشر په تعجب باندې دلالت كوى، دَ څه تعجب وغيره دَ وجه او دَ الله تعالى په صفت کښې كه چرې دا لفظ اووئيلې شي نو دا دَ ړومبنى سړى په حق کښې اخبار عن الرضا اودَ دوئم سړى په حق کښې اخبار عن القبول دې. يعنى الله تعالى دَ

---

۱) (كشف البارى (ج ۱ص۲۸۹)-
۲) (كشف البارى (ج ۱ص ۲۹۰) وكشف البارى (ج۲ص ۸۰)-
۳) (كشف البارى(۲ص ۱۰)-
٤) (حواله بالا(ص ۱۱)-
۵) (كشف البارى (ج ۱ص۶۵۹)-
۶) (شرح الكرمانى (۱۲ص۱۲۳)-

رومبې په فعل راضى شو اود دوئم فعل ئې قبول كړلو اود دې دواړو حضراتو بدله جنت دې سره د دې چه د دواړو حالتونه مختلف او مقاصد جدا جدا دى.(۱)

امام بخارى رحمه الله (كتاب التفسير)(۲) په روايت كښې دَ ضحك تفسير ((الرحمة)) سره كړيدى. نو علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه دا تفسير قريب دې خو ضحك دَ رضا په معنى محمول كول اقرب واشبه دې. (۳)

امام خطابى رحمه الله نور فرمائى چه دَ دې جملې معنى داهم كيديشى چه الله تعالى فرښتې دَ دې دواړو حضراتو په فعل باندې په تعجب كښې اچوى او هغوى خندوى.(۴)

او ابن فورك رحمه الله فرمائى مطلب دا دې چه الله تعالى دَ خپل فضل اظهار فرمائى لكه چه اهل عرب وائى ((ضحك الأرض من النبات)) كله چه زمكه خپل شينكې(بوټى) ښكاره كړى.(۵)

علامه ابن الجوزى رحمه الله فرمائى چه په دې قسم جملوكښې دَ اكثرو سلفو صالحينو عمل دا پاتې شويدې چه هغه په خپل ظاهرباندې پريخودې شي اوعقيده صرف ددې خبرې اوساتلې شي چه الله تعالى دَ مخلوق دَ صفاتونه برى دې او په ظاهر باندې دَ پريخودلو مطلب دا دې مونږ ته دَ دې باره كښې څه علم نشته او الله تعالى دَ مخلوق دَ صفاتونه منزه دې.(۶)

علامه عينى او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَ ضحك نه مراد دلته رضا ده او په دې باندې دَ ضحك متعدى بإلى كيدل دلالت كوى. نوونيلې كيږى ((ضحك فلان إلى فلان)) كله چه سړى بل چاته په خنده رويه مخ سره متوجه شى نو ښكاره خبره ده چه داسې متوجه كيدل په رضا او قبوليت سره دلالت كوى. (۷)

قوله: يقتل أحدهما الآخر يدخلان الجنة: په دوى كښې يوبل قتل كوى اودواړه به جنت كښې داخليږى.

جمله ((يدخلان الجنة)) محل جر كښې ده ځكه چه دا دَ رجلين صفت واقع كيږى. (۸)

قوله: يقاتل هذا في سبيل الله فيقتل: دې اول دَ الله تعالى په لاركښې جنګ كوى او شهيد كيږى.

دَصحيح مسلم په روايت كښې دَدې نه وړاندې داهم مذكوردى چه صحابه كراموررضوان الله

۱) (أعلام الحديث للخطابى (ج۲ص۱۳۲۵) وأيضاً انظر شرح ابن بطال (ج۵ص۳۸)-

۲) (هذاكما قال العلامة اخطابى فى أعلام الحديث (ج۲ص۱۳۶۷) فى رواية الفربرى وليس عن ابن معقل، قال الحافظ فى الفتح: لم أرذلك فى النسخ التى وقعت لنا من البخارى انظر فتح البارى (ج۸ص۶۳۲)-

۳) (أعلام الحديث للخطابى (ج۲ص۱۳۶۷)-

٤) ( أعلام الحديث للخطابى (ج۲ص۱۳۶۷)-

۵) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۲۳)-

۶) (فتح البارى (ج۶ص٤۰)-

۷) (حواله بالا وعمدة القارى (۱٤ج۱۲۳)-

۸) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۲۳)-

عليهم اجمعين په حيرانتيا سره سوال اوكړو ((قالوا: كيف يارسول الله؟))(۱) چه يا رسول الله دا په څنګه وى چه مقتول به هم جنت ته ځى او ورسره قاتل هم.

**دَ قاتل نه مراد مسلمان يا كافر؟** علامه ابن عبدالبر او ابن بطال رحمهما الله فرمائى چه دَ اهل علم په نزد دَدې حديث مطلب دادې چه اول قاتل كافروو يعنى مسلمان دَ كافر دَلاسه مرشوې وو(۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه هم دا امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې بيان كړى دى. ليكن دَ دې نه هم څه مانع نه دى چه دَ اول قاتل نه مراد مسلمان وى څكه چه په حديث كښې دَ قاتل لفظ عام دې. ((ثم يتوب الله على القاتل)) كه چرې يو مسلمان بل مسلمان عمداً او بلاشبهه قتل كړى بيا توبه اوكړى اودَ الله تعالى په لاركښې جنګ كولو سره شهيد شى نو بنكاره خبره ده چه دې هم قاتل دې ليكن جنت ته به ځى.

ليكن دا دوئم مطلب به دَ دې حضراتو په نزد صحيح او درست كيدېشى څوك چه دَ قاتل دَ توبې قبليدو قائل دى، لكه حضرت ابن عباس، زيدبن ثابت، ابن عمر او حضرت ابوهريره رضى الله عنهم. خو چه كوم حضرات دَ قاتل دَ توبې دَ قبوليت قائل نه دى دَ هغوى په نزد هم رومبنى معنى صحيح ده. (۳)

دَ ابن عبدالبر او ابن بطال رحمهما الله دَ قول تائيد دَ صحيح مسلم او مسند احمد دَ روايت نه هم كيږى، په صحيح مسلم كښې په صراحت سره دا الفاظ ذكر دى: ((ثم يتوب الله على الآخر فيهديه إلى الإسلام))(۴) دې نه صفا معلوميږى چه دَ قاتل نه مراد دلته كافر دې.

اودَ مسنداحمد دَ روايت الفاظ دا دى: ((قيل: كيف يارسول الله؟ قال: يكون أحدهما كافرا، فيقتل الآخر، ثم يسلم، فيغزو فيقتل))(۵) په دې حديث كښې خودَ صراحت سره دَ كافر لفظ ذكر دې(۶)

**قوله: ثم يتوب الله على القاتل فيستشهد:** بيا الله تعالى دَ دې دوئم توبه قبلوى، او هغه دَ شهادت په مرتبه باندې سرفراز كيږى. دَ ((تاب الله على)) معنى داده چه الله تعالى دَ توبې توفيق وركوى او قبلوى (۷)

علامه ابن بطال او علامه عينى رحمهما الله فرمائى چه دَ توبې نه مراد دلته اسلام دې. يعنى الله تعالى هغه ته دَ اسلام قبلولو توفيق وركوى.(۸)

---

۱ ) (صحيح مسلم كتاب الإمارة باب بيان الرجلين يقتل أحدهما الآخر يدخلان الجنة رقم (۴۸۹۴)-

۲ ) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۲۳) وشرح ابن بطال (ج۲ص ۳۸)-

۳ ) (فتح البارى (ج۶ص ۴۰) وانظر لمزيد من التفصيل فى قبولية توبة القاتل عمدا وعدمها كشف البارى كتاب التفسير (ص۱۵۸)-

۴ ) (صحيح مسلم كتاب الإمارة باب الرجلين يقتل أحدهما الآخر يدخلان الجنة رقم (۴۸۹۴)-

۵ ) (مسند أحمد بن حنبل (ج۲ص ۲۴۴، ۵۱۱)-

۶ ) (فتح البارى (ج ۶ص ۴۰)-

۷ ) (مختار الصحاح مادة توب-

۸ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص ۳۸) وعمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۲۳)-

دَ دې دليل دَ مسلم شريف دَ روايت داالفاظ دى: ((فيهديه إلى الإسلام)) (۱)

**فائده:** علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى چه دَ حديث باب نه دا خبره مستفاد شوه چه هر هغه سړې کوم چه دَ الله تعالى په لارکښې اووژلې شى هغه شهيد دې. (۲)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن المنيراسکندرانى رحمه الله فرمائى چه ترجمة الباب کښې ((فيسدد)) دې او په حديث کښې ((يستشهد)) راغلې دې. نو لکه چه امام بخارى رحمه الله په دې خبره تنبيه ورکول غواړى چه شهادت على وجه التسديد وى، په صحيح طريقه او اخلاص سره وى نو دې به هم جنت کښې داخليږى او هر هغه علم چه على وجه التسديد وى دَ هغې هم دغه حکم دې سره د دې چه شهادت افضل دې. ليکن د جنت داخليدل شهيد سره خاص نه دى او مصنف رحمه الله ترجمة الباب دَ حديث شرح ګرځولې ده. (۳)

[۲۶۷۲] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۴) قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ مَا افْتَتَحُوهَا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَسْهِمْ لِي فَقَالَ بَعْضُ بَنِي سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ لَا تُسْهِمْ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ أَبُوهُرَيْرَةَ هَذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ فَقَالَ ابْنُ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ وَاعَجَبًا لِوَبْرٍ تَدَلَّى عَلَيْنَا مِنْ قَدُومِ ضَأْنٍ يَنْعَى عَلَيَّ قَتْلَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْرَمَهُ اللَّهُ عَلَى يَدَيَّ وَلَمْ يُهِنِّي عَلَى يَدَيْهِ قَالَ فَلَا أَدْرِي أَسْهَمَ لَهُ أَمْ لَمْ يُسْهِمْ لَهُ

قَالَ سُفْيَانُ وَحَدَّثَنِيهِ السَّعِيدِيُّ عَنْ جَدِّهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَبُوعَبْدِ اللَّهِ السَّعِيدِيُّ هُوَ عَمْرُو بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ [۳۹۹۶، ۳۹۹۷]

## تراجم رجال

۱- **حميدى:** دا مشهور امام حديث ابوبکر عبدالله بن الزبيرعيسى القرشى الحميدى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر حالات ((بدءالوحى)) اولنى حديث لاندې او تفصيلى حالات ((کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا او أخبرنا وانبأنا)) لاندې راغلى دى. (۵)

۲- **سفيان:** دا ابومحمدسفيان بن عُيَينه بن ميمون الکوفى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر حالات ((بدءالوحى)) اولنى حديث لاندې او تفصيلى حالات ((کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا

---

۱) (صحيح مسلم کتاب الإمارة باب الرجلين يقتل أحدهما الآخر يدخلان الجنة رقم (۴۸۹۴)-

۲) (فتح البارى (ج۶ص۴۱) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۲۳)-

۳) (فتح البارى (ج۶ص۴۰) والمتوارى-

۴) (قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج۲ص۶۰۸) کتاب المغازى باب غزوة خيبر، رقم (۴۲۳۷) وأبوداؤد فى سننه کتاب الجهاد باب فيمن جاء بعدالغنيمة لاسهم له رقم (۲۷۲۳-۲۷۲۴)

۵) (کشف البارى (ج۱ص۲۳۷) و(ج۳ص۹۹)-

او اعبروا وا نہانا» لاندې راغلې دی. (١)

٣- الزهري: دا ابوبکر محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله ابن شهاب الزهری رحمه‌الله دې. دَ دوی حالات «بدءالوحی» دَ دریم حدیث لاندې تیرشوی دی. (٢)

۴- عنبسة بن سعید: دا عنبسة بن سعید بن العاص بن سعید بن العاص بن امية القرشي الاموی رحمه‌الله دې. ابوایوب او ابوخالد دَ هغه کنیت دې. (٣)
دَ هغه مور ام ولد وه. (۴) دې
دَ حضرت انس بن مالك، حضرت ابوهريره او حضرت عمر بن عبدالعزيز رضي‌الله‌عنهم وغیره نه دَ حدیث روایت کوی.
اودَ هغه نه دَ حدیث روایت کونکوکښې اسماء بن عبید الضبعي، حبیب بن ضمرة، محمدبن عمرو بن علقمه، امام زهری او ابوقلابه الجرمی رحمهم‌الله وغیره شامل دی. (۵)
امام یحیی بن معین، امام ابوداود او امام نسائی رحمهم‌الله فرمائی «ثقة» (۶)
امام دارقطنی رحمه‌الله فرمائی «ثقة: وهوجليس للحجاج بن يوسف» (٧)
ابوحاتم رحمه‌الله فرمائی «لابأس به» (٨)
یعقوب بن سفیان رحمه‌الله هم دَ ده توثیق فرمائیلې دې. (٩)
حافظ ذهبی رحمه‌الله فرمائی «ثقة، تابعي، كان أحد الأشراف» (١٠)
حافظ ابن حجر رحمه‌الله فرمائی «ثقة» (١١)
ابن حبان رحمه‌الله هغه په (کتاب الثقات) کښې ذکر کړیدې. (١٢)
دې دَ صحیحین او سنن ابوداؤد راوی دې. (١٣)

---

١) (كشف الباری (ج١ص١٣٧) و(ج٣ص١٠٢)-
٢) (كشف الباری (ج١ص٣٢۶)-
٣) (تهذیب الکمال (ج٢٢ص٤٠٨) الثقات لابن حبان (ج۵ص٢۶٨)-
٤) (طبقات ابن سعد (ج۵ص٢٣٩)-
۵) (دَ شیوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج٢٢ص٤٠٩)-
۶) (حواله بالا-
٧) (حواله بالا-
٨) (حواله بالا والجرح والتعديل (ج۵ص٥٢٤) رقم (١١٧٩، ٢٢٢٩)-
٩) (تهذیب التهذیب (ج٨ص١۵۶)-
١٠) (میزان الاعتدال (ج٣ص٣٠١)-
١١) (تقريب التهذيب (ص٤٣٢)-
١٢) (الثقات لابن حبان (ج۵ص٢۶٨)-
١٣) (الکاشف للذهبی )ج٢ص٩٩)-

په کال ۱۰۰ھ کښې دَ هغه انتقال اوشو. (۱) رحمه الله رحمةً واسعةً.

۵- ابوهريرة: دا دَ رسول الله ﷺ مشهور صحابي حضرت عبدالرحمن بن صخر رضي الله عنه دي، دَ دوی حالات ((کتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيرشوی دی. (۲)

قوله: قال: أتيت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو بخيبر بعد ما افتتحوها،

فقلت: يا رسول الله، أسهم لي: حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه زه دَ فتح خيبر نه پس حضور ﷺ هم په خيبر کښې وو د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم نو عرض مې اوکړو چه په مال غنيمت کښې ماله هم حصه راکړئې.

يو تعارض اودَ هغې جواب: دلته حديث باب کښې دا راغلی دی چه سائل حضرت ابوهريره رضي الله عنه وو او منع کونکې حضرت ابان بن سعيد رضي الله عنه وو. بخاری کتاب المغازی (۳) ابوداؤد (۴) کښې دا ذکر دی چه سائل ابان بن سعيد بن العاص رضي الله عنه وو، او منع کونکې حضرت ابوهريره رضي الله عنه وو په دې کښې دی:

((فقال أبان: اقسم لنا يا رسول الله، قال أبوهريرة: فقلت: لا تقسم له يا رسول الله))

نودَ تعارض لرې کولو دَ پاره محمدبن يحيى ذهلي رحمه الله خو دا جواب ورکړو چه راجح حضرت ابوهريره رضي الله عنه مانع کيدل دی او ابان بن سعيد وو. (۵)

او خطيب بغدادي رحمه الله وائي چه دَ بخاری حديث باب راجح دې په کوم کښې چه دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه سائل کيدل مذکور دی. (۶)

دَ حافظ ابن حجر او علامه عيني رحمه الله رائې داده که دَ سنن ابوداود روايت صحيح اودَ بخاری شريف دَ روايت سره برابر اوګرځولې شي نودَ دې خبرې احتمال شته چه دواړو دَ يويل دَ پاره منع کړې وی. دَ حضرت ابان رضي الله عنه دَ پاره حضرت ابوهريره رضي الله عنه په دې دليل باندې منع اوکړه چه داد ابن قوقل قاتل دې اودَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ پاره دَ حضرت ابان رضي الله عنه دا دليل پيش کړو چه دې دَ جنګ او جهاد قابل نه دې چه ده له حصه ورکړې شي. (۷)

نو اوس په دې رواياتو کښې هيڅ تعارض پاتې نشو.

اوس يوه بله خبره باندې پوهه شئ چه امام ابوداؤد رحمه الله (۸) چه کوم روايت نقل کړو په دې

۱) (تقريب التهذيب) ص ۴۳۲)-
۲) (کشف الباری (ج۲ص۶۵۹)-
۳) (صحيح البخاری کتاب المغازی باب غزوة خيبر رقم (۴۲۳۸)-
۴) (سنن أبي داوٗد کتاب الجهاد باب فيمن جاء بعد الغنيمة لاسهم له رقم (۲۷۲۳)-
۵) (فتح الباری (ج۷ص۴۹۲)-
۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۴)-
۷) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۴) وفتح الباری (ج۷ص۴۹۲)-
۸) (سنن أبي داوٗد کتاب الجهاد باب فيمن جاء بعد الغنيمة لاسهم له رقم (۲۷۲۴)-

کښې دَ ((أبان)) په ځائ سعيدبن العاص ذکر دې حالانکه صحيح ابن سعيد دې. خطيب بغدادي رحمه الله فرمائي ((وأنما هوابن سعيد، واسمه أبان)) (۱)

**قوله: فقال بعض بني سعيد بن العاص: لاتسهم له يارسول الله:** نودَ سعيد بن العاص يو خوئ اووئيل يارسول الله! دَ مال غنيمت نه ده ته حصه مه ورکوه. ((بعض بني سعيدبن العاص)) نه مراد حضرت ابان بن سعيد رضي الله عنه دې.(۲)

**قوله: ابان بن سعيد:** دا ابوالوليد ابان بن سعيد بن العاص بن اميه بن عبدشمس بن عبدمناف الاموى القرشي رضي الله عنه دې.(۳) دَ هغه مور صفيه يا هندبنت المغيرة ده چه دَ خالدبن وليد ترور وه. (۴) دَ دوى سلسله نسب نبى کريم صلى الله عليه وسلم سره په شپږم پشت کښې ملاويږى.(۵)

دَ هغوئ والد ابواُحيحه سعيد بن العاص دَ جاهليت دَ سردارانو نه وو اودَ ډير شان اوشوکت مالك وو. دَ هغه اته ځامن وو په کومو کښې چه پنځه په اسلام باندې مشرف شوي، حضرت ابان رضي الله عنه نه وړاندې دَ هغه دوه رونړه خالد او عمر اسلام راوړلې وو. (۶)

دَ علامه ابن عبدالبر رحمه الله مطابقِ دوى دَ حديبيه او خيبر دَ جنګ په مينځ کښې ايمان راوړلې دې.(۷) اوابونعيم فرمائي چه دَ غزوه خيبر نه اول هغوى اسلام قبول کړواو ابنِ الاثير جزرى رحمه الله هم دې دوئم قول ته ترجيح ورکړيده. (۸)

**دَ اسلام قبلولوسبب:** دَ هغوى دَ اسلام راوړلو سبب دا جوړشو چه دَ تجارت په غرض دَ شام طرف ته اووتلو، هلته دَ هغه ملاقات يو راهب سره اوشو، دَ راهب نه ئى دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم باره کښې معلومات اوکړل او وئى وئيل چه زه دَ قريشو يو فرد يم او په مونږ کښې يو سړې راپيدا شوې دې چه دَ ځانکمان او خيال دا دې چه هغه الله تعالى مبعوث کړيدې لکه څنګه چه ئى حضرت موسى عليه السلام مبعوث کړې وو. نودې راهب تپوس اوکړو ستاسو دَ دغه سړى نوم څه دې؟ هغه وئيل محمد. راهب وئيل زه دَ هغه اوصاف بيانوم. بيا هغه راهب دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم اوصاف حميده، دَ هغوى عمرمبارك او نسب وغيره ئى بيان کړل. نو حضرت ابان رضي الله عنه په دې باندې صاد اوکړو او وئى وئيل هغه هم دغه شان دې لکه څنګه چه تا بيان

---

۱) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۲٤)-
۲) (حواله بالا (ص۱۲۳)-
۳) (سير أعلام النبلاء (ج۱ص۲۶۱) وتهذيب تاريخ دمشق الکبيرلابن عساكر (ج۲ص۱۲۷)-
٤) (أسدالغابة فى معرفة الصحابة (ج۱ص۱٤۸)-
۵) (حواله بالا-
۶) (الاستيعاب فى أسماء الأصحاب (ج۱ص٤۶)-
۷) (سير أعلام النبلاء (ج۱ص۲۶۰) الاستيعاب فى أسماء الأصحاب (ج۱ص٤۶)-
۸) (أسدالغابة (ج۱ص۱٤۸)-

اوکړو. راهب ونیل ((والله، لیظهرنّ علی العرب، ثم لیظهرنّ علی الأرض)) په الله چه هغه به په عربو غالب راځی بیا به په پوره دنیا غالب راځی،

بیا ئې حضرت ابان رضي الله عنه ته اوونیل چه رجل صالح یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته زما سلام اورسوه. حضرت ابان رضي الله عنه کله مکې مکرمې ته واپس شو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خلقو نه خیرو عافیت معلوم کړواود اول نه د هغه عادت وو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو بدګونی به ئې کوله، هغه ئې پریخودل، دا د حدیبیه نه وړاندې واقعه ده.

بیا چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د حدیبیه طرف ته لاړل او واپس شونو حضرت ابان رضي الله عنه هم د هغه اتباع اوکړه او اسلام ئې قبول کړو. (۱)

کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه ته د حدیبیه په ورځ د قریش مکه طرف ته لیګلې وو نو هم حضرت ابان رضي الله عنه هغه ته پناه ورکړې وه. حضرت ابان رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه په اس سورکړو تردې چه هغه په مکه مکرمه کښې داخل شو اوعثمان رضي الله عنه اوونیل:

**قوله: أسبل وأقبل ولاتخف أحداً بنو سعيد أعزة الحرم:** یعنی بهادری ښایئی او وړاندې تیریږئی او د چا نه مه ویریږئی ځکه چه بنوسعید د حرم د معززینونه دې.(۲) هغه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په بعض سرایا کښې د لښکر امیر هم مقرر کړې وو په هغې کښې یو د نجد طرف ته لیګلې شوې سریه هم شامل ده. (۳)

او بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت علاء بن الحضرمی رضي الله عنه معزول کړو چه د بحرین والي وو حضرت ابان رضي الله عنه ئې په ۹هجری کښې والی مقرر کړو او هغه په دې منصب باندې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وفات پورې وو. د نبی علیه السلام د وفات نه پس هغه مدینې منورې ته واپس راغلو نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه اراده اوکړه چه دې بیا بحرین ته اولیګی نو هغه اوفرمائیل ((لاأعمل لأحد بعد رسول الله صلی الله علیه وسلم)). د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس به زه د چا د پاره هم د عامل فرائض نه پوره کوم. او دا هم روایت دې چه هغه په یمن کښې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د طرف نه والی مقرر کیدل قبول کړې وو. (۴)

د هغه د وفات په وخت کښې مختلف اقوال دی:

ابن اسحاق رحمه الله فرمائی ((قتل أبان وعمرو ابنا سعيد يوم اليرموك)) خود ابن اسحاق د دې قول چا هم مطابقت نه دې کړې. او غزوه یرموک ۱۵هجری د حضرت عمر رضي الله عنه په دورخلافت کښې پیښه شوې وه.(۵)

اودا هم اوونیلې شو چه دې د (مرج الصفر) په ورځ شهید شوې. د مرج الصفر واقعه ۱۴هجری

---

۱) (أسد الغابة (ج۱ص۱۴۹) وتهذيب تاريخ دمشق الكبير (ج۲ص۱۲۸)-
۲) (الاصابة (ج۱ص۱۳) والاستیعاب (ج۱ص۴۶)-
۳) (الاستيعاب (ج۱ص۴۷)-
۴) (سير أعلام النبلاء (ج۱ص۲۶۱) أسد الغابة (ج۱ص۱۴۹)-
۵) (أسدالغابة (ج۱ص۱۵)-

کښې دور خلافت عمرى کښې پيښه شوې وه. (۱)
دریم او صحیح قول د موسی بن عقبه دې د کوم تائيدچه مصعب، زبير او اکثراهل نَسبو هم کړيدې چه حضرت ابان رضی الله عنه خپل رور خالدبن سعيد سره په (جنګ اجنادین) کښې شهيد شوې .(۲) هم دا قول امام ذهبی هم صحیح ګرځولې دې، هغوی ليکی:

((ثم إنه استشهد هو وأخوه يوم أجنادين على الصحيح))(۳)
د صحيح قول مطابق هغه اود هغه رور جنګ اجنادين کښې شهيدان شوی. هغه د نبی کريم ﷺ نه صرف يو روايت نقل کړيدې او هغه دا دې: ((وضع الله عزوجل كل دم في الجاهلية، أوقال: كل دم كان في الجاهلية، فهو موضوع))(۴) يعنی هره هغه وينه چه د جاهليت په زمانه کښې بهيولې شويده، هغه الله تعالى معاف کړيده، يا ئې دا اوفرمائيل چه هره هغه ناحق وينه کومه چه په جاهليت کښې بهيولې شوې وه هغه معاف ده.

**قوله: فقال أبوهريرة: هذا قاتل ابن قوقل:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی دې (يعنی ابان رضی الله عنه) د ابن قوقل قاتل دې.
د حضرت ابوهريره رضی الله عنه د دې قول مقصددادې چه ابان رضی الله عنه په حالت کفرکښې قوقل رضی الله عنه قتل کړې وو په دې وجه هغه ته د غنيمت نه حصه نه دی ملاويدل پکار. اود ابن قوقل نه مراد حضرت نعمان بن مالك بن ثعلبه رضی الله عنه دې. (۵)

---

۱) (حواله بالا-
۲) (أسدالغابة (ج۱ص ۱۵۰) الاستيعاب (ج۱ص۴۷) "د جنګ اجنادين مختصر پيژندګلو" اجنادين د فلسطين په علاقو رمله او بيت حبرون په مينځ کښې د يو مشهور ځائ نوم دې.(معجم البلدان (ج۱ص۱۰۳)- په دې مقام د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د دور خلافت په آخرى ورځو کښې د مسلمانانو او روميانو په مينځ کښې يو خونړې جنګ اوشو.د روميانو د فوځ مشر د هرقل رور تهيودورس وو اود هغه لاندې يو لاکهه رومی فوځ وو. د مسلمانانو لښکر په هغه دريو جدا جدا ټولو باندې مشتمل ووچه فلسطين او اردن سره څواوشا جنګى کاروايانو کښې مصروف وو. د دې دريوارو لښکر مشرى په ترتيب سره حضرت عمرو بن العاص، شرجيل بن حسنه او يزيد بن ابى سفيان رضی الله عنهم کوله. د روميانو او مسلمانانو په مينځ کښې څو سرحدى جهړپونه شوې وو په کومو کښې چه څوځل روميان غالب راغلې وو، او آخر دا دريواړه ډلې د حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه په قيادت کښې راجمع شوې او د دواړو لښکرو په مينځ کښې جمادى الاولى ۱۳هجرى کښې فيصله کن جنګ اوشو. کوم کښې چه د مسلمانانو متحده فوځ د دښمن فوځ ته د اجنادين په مقام ماتې ورکړه او اجنادين د هميشه د پاره د مسلمانانو د اثرلاندې راغلو.(دائره معارف اسلاميه تحت ابى بکر: (ج۱ص۷۵۵ وتحت اجنادين (ج۱ص۱۰۱۲)- په دې جنګ کښې د مسلمانانوهم يو خاص تعداد شهيدان شو، په کوم کښې چه حضرت عبدالله بن زبير بن عبدالمطلب، عکرمه بن ابى جهل او حارث بن هشام رضى الله عنهم غوندې صحابه شامل وو. (معجم البلدان (ج۱ص۱۰۳)-
۳) (سيرأعلام النبلاء (ج۱ص۲۶۱)-
۴) (الاستيعاب (ج۱ص۴۸) و الإصابة (ج۱ص۱۴)-
۵) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۲۳)-

**قوله: حضرت نعمان بن قوقل رضی الله عنه:** دا نعمان بن مالك بن ثعلبه بن اصرام بن فهد بن ثعلبه بن قوقل رضی الله عنه دی. دی د خپل جدامجد طرف ت منسوب کیدوسره د ابن قوقل په نوم یادیږی. (۱)

او بعض حضراتو دا وئیلی چه قوقل د ثعلبه یا مالك لقب دی د چا نوم نه دی. (۲)

دی د بدرین نه دی. (۳)

دی د رسول الله ﷺ نه د حدیث روایت کوی او د ده نه حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه د حدیث روایت کوی. ابوصالح هم د ده نه د حدیث روایت کړیدی. خود ده سماع د حضرت نعمان نه ثابت نه ده، په دی وجه به روایت مرسل وی. (۴)

د مسلم شریف په یو روایت کښی د هغه ذکر راغلی دی، حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی ((أتی النبیَّ صلی الله علیه وسلم النعمانُ بنُ قوقل، فقال: یارسول الله، أرأیت إذا صلیتُ المکتوبة....إلخ)) (۵)

دی په غزوه احد کښی شهیدشوی او قاتل حضرت ابان بن سعید رضی الله عنه وو لکه چه په حدیث باب کښی ذکر دی. او بعض اهل مغازی قاتل صفوان بن امیه گرځولی دی خو دا قول مرجوح دی او دا هم کیدیشی چه دی شهید کونکوکښی دواړه شریك وی. (۶)

**قوله: فقال ابن سعید بن العاص: واعجبا لوبر تدلّی علینا من قدوم ضأن ینعی علیّ قتل رجل مسلم، أکرمه الله علی یدیّ ولم یهنی علی یدیه:** نو حضرت ابان بن سعید رضی الله عنه وائی حیرانیتا ده په دی پیشوگی باندی چه د ضان غر د څوکی نه راکوزشو راغلو، دی په ماباندی د یو داسی سړی متعلق عیب لگوی چاته چه الله تعالی زما په لاس عزت یعنی شهادت سره سرفراز کړو او هغه ئی منع کړو چه هغه به زه په خپل لاس ذلیل کولم.

د حضرت ابان بن سعید رضی الله عنه مطلب د دی قول نه دا دی که ما نعمان بن قوقل رضی الله عنه په خپله زمانه د کفر کښی شهید کړو نو هغه د ده د وجه نه د شهادت په اوچته درجه باندی فائز شو او ورسره په ما باندی د الله تعالی فضل او احسان اوشو چه الله تعالی زه د هغه د لاس نه د مر کولو نه بچ کړم. که هغه زه په هغه وخت کښی قتل کړی ووم نو په آخرت کښی به زه ذلیل او خوار وم. لیکن الله تعالی زه د غه ذلت نه بچ کړم. نو په دی کښی د پیغور وغیره څه خبره ده؟ (۷)

---

۱) (أسدالغابة (ج۵ص۳۲) وفتح الباری (ج۶ص۴۱)-
۲) (الإصابة (ج۳ص۵۶٤)-
۳) (أسد الغابة (ج۵ص۳۲۰)-
٤) (حواله بالا-
۵) (صحیح مسلم (ج۱ص۳۲) کتاب الإیمان باب بیان الإیمان الذی یدخل به الجنة.... رقم (۱۶-۱۷)-
۶) (فتح الباری (ج۶ص٤۱) وأسدالغابة (ج۵ص۳۲۰)-
۷) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۲۵) وانظر لمزید من التفصیل: کشف الباری کتاب المغازی (ص٤۵۲-٤۵٤)

**قوله: قال: فلاأدري أسهم له أم لم يسهم له:** وئی فرمائیل ماته نه ده معلومه چه رسول الله ﷺ هغه ته (د غنیمت نه) حصه ورکړه اوکه نه. علامه ابن التین رحمه الله فرمائی چه د دې قول قائل ابن عینیه یا د هغه نه لاندې د امام بخاری رحمه الله خوك شیخ دې.(۱)

د حدیث باب لاندې یوه مسئله ذکر کولې شی چه په غنیمت کښې جهاد ته د روستو راتلونکی حصه شته که نه؟ د دې تفصیل چونکه مونږ مغازی کښې ذکر کړیدې نو په دې وجه دې هم هلته اوکتلې شی. (۲)

**قوله: قال سفيان: وحدثنيه السعيدي عن جده عن أبي هريرة:** د دې عبارت مقصد دا دې چه حدیث باب د حضرت سفیان ابن عینیه رحمه الله نه په دوو سندونو سره مروی دې یو خو هم هغه سند دې چه په ماقبل کښې تیرشو یعنی ((حدثنا الحمیدی، حدثنا سفیان، حدثنا الزهری قال: أخبرنا عنبسة بن سعید عن أبي هريرة)) او په دوئم سند کښې الزهری او عنبسه بن سعید په ځائې ((السعیدی عن جده))، او دا دوئم طریق امام حمیدی په خپل سند کښې ذکر کړیدې.(۳).

**قوله: قال أبوعبدالله: السعيدي: عمروبن يحيى.....:** د ابو عبدالله نه مراد امام بخاری رحمه الله دې او دلته هغوی د السعیدی نوم او نسب خودلې دې چه د سعیدی نوم عمرو بن یحیی بن سعید بن عمروبن سعید بن العاص دې. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت د حضرت ابان بن سعید رضی الله عنه په دې قول کښې دې. ((اکرمه الله بیدی)) یعنی نعمان بن قوقل رضی الله عنه د حضرت ابان رضی الله عنه د لاسه شهید شو او الله تعالی هغه د شهادت په اوچته مرتبه باندې سربلند کړو. خو حضرت ابان رضی الله عنه د کفر په حالت کښې نه دې وژلې شوې بلکه هغه د غزوه احد نه پس هم ژوندې وو او هغه نه د توبې توفیق اوشو او اسلام ئې قبول کړو او همدغه د ترجمه مقصد هم دې. (۵)

## ۲۹- باب: مَنِ اخْتَارَ الْغَزْوَ عَلَى الصَّوْمِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د ترجمة الباب مقصد دا دې چه یو سړې جهاد له په روژه باندې ترجیح ورکړی دې د دې پاره چه د روژې د وجه د هغه بدن د ضعف او کمزورئی ښکار نشی نو

۱ ( عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۲۵)-
۲ ) (کشف الباری کتاب المغازی (ص٤٤٧)-
۳ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۲۵) وفتح الباری (ج ٦ص٤۱)-
٤ ) (السعیدي اود هغه د نیکه حالات "کتاب الوضوء، باب الاستنجاء بالحجارة" لاندې بیان کړې شوی دی-
۵ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۲۳)-

د هغه دا فعل صحيح دي او په سنت كښې د دې اصل موجود دې.
دونمه خبره دا ده كه د مجاهد روژه نه هم وى نو بيا هم د هغه د پاره د روژه دار او د شپې د قيام كونكو برابر ثواب ليكلې كيږى. ځكه چه نبى ﷺ مجاهد ته د داسې روژه دار سره تشبيه وركړيده چه كوم صائم الدهر وى او په داسې عبادت ګذار سره ئې تشبيه وركړيده چه ستړې كيږى نه. (۱)

[۲۶۷۳] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۲) قَالَ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ لَا يَصُومُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَجْلِ الْغَزْوِ فَلَمَّا قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ أَرَهُ مُفْطِرًا إِلَّا يَوْمَ فِطْرٍ أَوْ أَضْحَى

## تراجم رجال

۱- آدم: دا ابوالحسن آدم بن ابى اياس عبدالرحمن العسقلانى رحمه الله دې. د ده حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې راغلى دى. (۳)

۲- شعبه: دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله د هغه حالات هم د مذكوره باب لاندې راغلى دى. (۴)

۳- ثابت البناني: دا مشهور تابعى بزرګ ابومحمد ثابت بن اسلم بنانى بصرى رحمه الله دې د ده حالات ((كتاب العلم باب القرءة والعرض على المحدث)) په ذيل كښې راغلى دى. (۵)

۴- انس بن مالك: دا مشهورصحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. د ده حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) په ذيل كښې تيرشوى دى. (۶)

قوله: قال كان أبوطلحة لايصوم على عهدالنبى صلى الله عليه وسلم من أجل الغزو: حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائى چه حضرت ابوطلحه رضي الله عنه به د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې په جهاد كښې د شركت په غرض روژې نه ساتلې.

دلته ((أبوطلحة)) نه مراد حضرت زيدبن سهل الانصارى رضي الله عنه دې چه د حضرت انس ناسكه پلار وو. (۷)

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۲۵) وشرح ابن بطال (ج ۵ ص ۴۲)-
۲) (قوله: أنس بن مالک رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى فقط فى هذاالباب. قال العلامة العينى: والحديث من أفراده. عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۲۶) وجامع الأصول (ج ۶ ص ۳۴۵)-
۳) (كشف البارى (ج ۱ ص ۶۷۸)-
۴) (حواله بالا-
۵) (كشف البارى (ج ۳ ص ۱۸۳)-
۶) (كشف البارى (ج ۲ ص ۴)-
۷) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۲۶)-

او په حدیث باب کښې د هغوی عمل دا اوخودلې شو چه هغه به د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې روژو له په جهاد باندې ترجیح ورکوله، د دې د پاره چه د کمزورئی ښکارنښې او روژې به ئې نه ساتلې.
لیکن د روژو نه ساتلو چه کومه نفی شویده هغه علی الاطلاق نه ده چه بالکل روژې به ئې نه ساتلې بلکه دا په اکثرو اوقاتو محمول ده، د دې وجه دا ده چه همدغه روایت اسماعیلی د ابوالولید او عاصم بن علی عن شعبه په طریق سره نقل کړیدې په یو کښې ((لایکاد یصوم)) او په بل کښې ((کان قلما یصوم)) نو معلومه شوه چه نفی الصوم علی الاطلاق نه ده بلکه نفی اکثر الاوقات ده. (۱)

**قوله: فلما قبض النبی صلی الله علیه وسلم لم أره مفطراً إلا یوم فطر أو أضحی:**
حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه نبی ﷺ د دنیا نه رخصت شو نو ما هغه بغیرد روژو نه نه دې لیدلې مګردا چه د وروکی اختر او لوئی اختر په ورځ.
یعنی د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس حضرت ابوطلحه رضی الله عنه به همیشه په روژه سره وو مګر د وروکی اختر او لوئی اختر په ورځ به ئې روژه نه وه. ځکه چه په دې ورځوکښې د روژو ساتلو نه منع راغلې نو په دې وجه به هغه په دې ورځوکښې روژه نه وو او په حدیث کښې ذکر شوې ((یوم اضحی)) نه مراد همدغه ورځې دی کوموکښې چه روژه ساتل منع دی د دې د پاره چه أیام تشریق ته لفظ ضحی شامل شی او څه اشکال پیش نه شی. (۲)
پورتنې حدیث کښې دې طرف ته اشاره شویده چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه به د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس په غزواتو کښې شرکت نه کولو، او د حضور ﷺ په عهدمبارک کښې هغه نفلی روژې ځکه پریخې وې چه په میدان جهاد کښې چرته کمزوری ښکاره نشی. لیکن د حضور ﷺ د وفات نه پس هم هغه په غزوات کښې شرکت کړیدې لکه حاکم رحمه الله (۳) او ابن سعد (۴) وغیره ((حماد بن سلمة عن ثابت عن أنس)) په طریق نقل کړی دی:
((أن أبا طلحة قرأ هذه الآیة ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾، فقال: استنفرنا الله وأمرنا الله، واستنفرنا شیوخا وشبانا، جهزونی، فقال بنوه: یرحمك الله، إنك قد غزوت علی عهد النبی صلی الله علیه وسلم وأبی بکر وعمر؛ ونحن نغزو عنك الآن فغزا البحر، فمات، فطلبوا جزیرة یدفنونه فیها، فلم یقدروا علیه إلا بعد سبعة أیام وما تغیر))
یعنی حضرت ابوطلحه رضی الله عنه دا آیت تلاوت کړو ﴿انفروا خفافا وثقالا﴾ نو هغه اوفرمائیل چه الله تعالی مونږ ته د جنګ د وتلو د پاره حکم راکړې دې اوکه مونږ بوډاګان یو که ځوانان د وتلو حکم دې. نو زما د پاره د سفر سامان تیار کړئی، د هغه ځامنو اووئیل الله تعالی دې په

---

۱ ) (فتح الباری (ج۶ص۴۲)-
۲ ) (فتح الباری (ج۶ص۴۲) و(عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۶)-
۳ ) (المستدرک للحاکم (ج۳ص۲۵۳)-
۴ ) (الطبقات الکبری (ج۳ص۵۰۷)-

تاسو باندې رحم اوکړی. په تحقیق سره تاسو د نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې په غزواتوکښې شرکت کړېدې ( په دې وجه ته تکلیف مه اوچته وه) مونږ به ستاد طرف نه په غزواتوکښې شرکت کوو (خو هغه اونه منل) په سمندری جنګ کښې شریك شو، هلته هغه وفات شو نو د سفر ملګرو یوه جزیره لټوله چه په هغې کښې هغه خښ کړی لیکن د اوو ورځو پورې هغوی په خپل مقصد کښې کامیاب نشو (د دې نه پس ئې هغه خښ کړو) اود هغه مړې جوسه بالکل خرابه شوې نه وو.

**دحضرت ابوطلحه د مذکوره عمل وجه:** علامه مهلب فرمائی چه نبی کریم ﷺ مجاهد ته ((الصائم القائم)) سره تشبیه ورکړې ده ((کما مرفی أوائل الجهاد)) په دې وجه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه جهاد په روژه مقدم کړو. خو د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس کله چه اسلام ښه خور شو د هغه جرړې مضبوطې شوې او هغه اوکتل چه اوس د هغه خاص ضرورت پاتې نشو نوغوښتل ئې چه د روژو هم هغه سره ذخیره وی او د قیامت په ورځ جنت کښې ((باب الریان)) نه داخل شی.(۱)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې(۲) لکه چه ((کان أبوطلحة لایصوم علی عهد النبی صلی الله علیه وسلم من أجل الغزو)) نه معلومیږی.

## ۳۰- بَاب: الشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ

**د ترجمة الباب مقصد:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله د دې ترجمة الباب نه مقصد دا دې چه د مقتول في سبیل الله نه علاوه هم نور ډیر شهیدان دی د کوم ذکر چه به امام بخاری رحمه الله په دې حدیث باب کښې کوی.(۳)

[۲۶۷۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۴) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشُّهَدَاءُ خَمْسَةٌ الْمَطْعُونُ وَالْمَبْطُونُ وَالْغَرِقُ وَصَاحِبُ الْهَدْمِ وَالشَّهِيدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ [ر:۶۲۴]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن یوسف: دا عبدالله بن یوسف تنیسی دمشقی رحمه الله دې. د ده حالات ((بدء الوحی)) د دوئم حدیث په ذیل کښې راغلی دی. (۵)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۴۲)-
۲) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۶)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۲۶)-
۴) (قوله عن أبی هریرة رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی کتاب الأذان با ب فضل التجهیز إلی الظهر-
۵) (کشف الباری (ج۱ص۲۸۹)-

۲- مـالك: دا مالك بن انس بن ابی عامر الاصبحی المدنی رحمه الله دي. دَ ده حالات هم دَ مذکوره حدیث لاندې راغلی دی. (۱)

۳- سمي: دا ابوعبدالله سمي مولی ابوبکربن عبدالرحمن رحمه الله دي. (۲)

۴- ابوصالح: دا ابو صالح ذکوان زیات رحمه الله دي. دَ ده حالات ((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) په ذیل کښې راغلی دی. (۳)

۵- ابوهریره رضي الله عنه: دا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مشهورصحابی حضرت عبدالرحمن بن صخر رضي الله عنه دي. دَ ده حالات ((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) لاندې راغلی. (۴)

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: الشهداء خمسة: المطعون، والمبطون، والغريق، وصاحب الهدم، والشهيد في سبيل الله:** دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی چه شهیدان پنځه دی: یو هغه سړې چه دَ طاعون په وباکښې هلاك شي، دوئم چه دَ خیټې دَ بیمارئی نه مړشي، دریم چه څوك ډوب شي مړشي، څلورم چه دَ دیوال راغورزیدو سره مړ شي او پنځم شهید في سبیل الله.

**دَ شهداؤ په تعدادکښې اختلاف:** دلته په حدیث باب کښې ((الشهداء خمسة)) راغلي دي. او په موطاکښې دَ حضرت جابر بن عتیك رضي الله عنه په روایت کښې ((الشهداء سبعة سوى القتل))(۵) او په ترمذی کښې دَ حضرت فضاله بن عبید روایت دې هغه فرمائی ((سمعت عمربن الخطاب رضي الله عنه يقول: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: الشهداء اربعة....)) (۶) او دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه په روایت کښې دی ((الشهداء ثلاثة)) ذکر دي. (۷)

دَ دې احادیثونه علاوه نور هم ډیر صحیح احادیث مبارك دی (۸) په کوم کښې چه دَ مقتول فِي سبیل الله نه علاوه مختلف کسان او اشخاص شهیدان ګرځولې دی. علامه زرقانی رحمه الله دَ هغوی تعداد اووه ویشت (۲۷) (۹)

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۲۹۰) و کشف الباری (ج۲ص۸۰)-

۲) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الأذان باب الستهام فی الأذان-

۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۸)-

٤) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۹)-

۵) (المؤطا للإم مالک (ص۲۱۵) کتاب الجنائز باب النهی عن البکاء علی المیت رقم (۳۶) وأیضاً أخرجه أبوداود فی سننه کتاب الجنائز باب فضل من مات فی الطاعون رقم (۳۱۱۱) والنسائی فی الصغری کتاب الجنائز باب النهی عن البکاء علی المیت رقم (۱۸٤۷)-

۶) (جامع الترمذی أبواب فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل الشهداء عندالله رقم (۱۶٤٤)-

۷) (مجمع الزوائد (ج۵ص۲۹۱) وکنزالعمال (ج٤ص۵۹۳) رقم (۱۱۷۳٤)-

۸) (انظر التفصیل تلک الأحادیث: عمدة القاری (ج۱٤ص۱۲۶-۱۲۷) والأوجز (ج٤ص۲۶۷-۲۶۹)-

۹) (شرح الزرقانی علی المؤطأ (ج۲ص۷۳) کتاب الجنائز باب النهی عن البکاء....-

علامه عینی رحمه الله خلویښت (۳۰) (۱) علامه سیوطی رحمه الله په خپل کتاب (أبواب السعادة فی أسباب الشهادة) کښې دیرش (۳۰)(۲) او شیخ الحدیث (مولانا زکریا رحمه الله شپیته (۶۰) ذکر کړی دی (۳) او حافظ ابن حجر رحمه الله شل (۲۰) ذکر کړی دی. (۴)

**د روایاتوپه مینځ کښې تطبیق:** اوس سوال دا پیدا کیږی چه د دې مختلفو روایاتو په مینځ کښې په بعضو کښې تعداد هم صراحتاً ذکر دې، د تطبیق به څه صورت وی؟

علامه کرمانی رحمه الله د دې سوال جواب دا ورکړیدې چه تخصیص بالعدد د دې نه د زیاتو په نفی دلالت نه کوی. (۵)

حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د مختلفو اعدادو ذکر علی وجه التحدید والحصر نه دې بلکه دا د مختلفو احوالو او سوالونو په بنا باندې دې. یعنی په بعض حالات مخصوصه کښې نبی کریم ﷺ د سائل احوال په خیال کښې ساتلو سره جواب ورکړې او هغه دغه روایت کړې.

یا حضور ﷺ ته اول د دریو علم ورکړیشوې وو بیا د علم د زیاتوالی سره سره د شهیدانو تعداد هم زیات شو. (۶)

**د شهیدتعریف او حدیث باب:** اوس دلته دونم سوال دا پیداکیږی چه شهید خو د فقهاؤ په اصطلاح کښې هغه دې چه چرته په یوجنګ کښې قتل کړیشی او په هغه باندې نښې هم وی، یا هغه اهل حرب یا اهل البغی یا ډاکوانو قتل کړې وی یا مسلمانانو هغه په ظلم سره وژلې وی اودا تعریف مبطون، مطعون وغیره باندې نه صادق کیږی نوداڅنګه شهیدان شو؟

د دې جواب دا دې چه قتیل فی سبیل الله نه علاوه چه د کومو حضراتو باره کښې په احادیثوکښې واردشوی دی چه هغوی شهیدان دی نود هغوی شهادت د اجر په اعتبار سره دې یعنی دې حضراتو ته به هم د حقیقی شهید په شان برابر اجر ورکولې شی. (۷) علماؤ حضراتو لیکلی دی چه د شهید درې قسمونه دی:

① شهید فی الدنیاوالآخرة هغه دې چه د الله تعالی د کلمې د اوچتوالی د پاره د جهاد د پاره لاړ شی او شهید شی.

② شهید فی الدنیافقط، او هغه دا دې چه سرې میدان جنګ کښې خو قتل کړې شی خو هغه د اعلاء کلمة الله دپاره نه وی تلې د نامې او ځان خودنې د پاره تلې وی اوهلته قتل شی یادا چه شاکړې تښتیدو اومړشو اویا د غنیمت په مال کښې ئې خیانت کولو او مړ کړیشو.

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱۴ ص ۱۲۳)-
۲) (أوجز المسالک (۴ ص ۲۵۷)-
۳) (أوجز المسالک (۴ ص ۲۶۹)-
۴) (فتح الباری (ج ۶ ص ۴۳)-
۵) (شرح الکرمانی (ج ۵ ۶ ص ۴۲)-
۶) (عمدة القاری (ج ۱۴ ص ۱۲۷) وفتح الباری (ج ۶ ص ۴۳)-
۷) (شرح الکرمانی (ج ۵ ص ۴۲) وعمدة القاری (ج ۴ ص ۱۲۷)-

③ شهيدفي الآخرة چه يوسړې د ديوال راپريوتلو سره مړشي يا اوسوزي يا د خيټې د بيمارئي ښكارشي اومړشي وغيره وغيره، چه كوم صورتونه په حديث باب كښې بيان كړيشوي دي.

په دې دريم قسم به په دنياكښې د شهيد احكام نه جاري كيږي يعني د حقيقي شهيد برخلاف په هغه ته كفن هم وركولې شي او غسل هم. ليكن په آخرت كښې به هغه سره د شهيد معامله كولې شي او هغه ته به د شهيد په شان اجر وركولې شي. (۱)

اودا د الله تبارك وتعالى په امت محمديه على صاحبها الصلوة والسلام باندې خاص فضل او كرم دې چه د قتيل في سبيل الله نه علاوه كوم كسان د شهادت د درجې حامل ګرځولې دي په هغې كښې هغه تكليفونه اوپه دغه تكليفونو باندې صبر په خيال كښې ساتلې دې اود دې په وجه ئې د هغوى ګناهونه معاف كړل اود هغوى په اجراو ثواب كښې ئې زياتوالى اوكړو. (۲)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ابن بطال رحمه الله په ترجمة الباب باندې اعتراض كولو سره فرمائي چه د حديث باب نه دا ترجمه د سرنه هډو مستنبط كيږي نه، ځكه چه ترجمه د اوو(۷) ده او په حديث كښې سوى القتل شهداء څلوردي. دا د دې خبرې دليل دې چه امام بخاري رحمه الله ته د دې خبرې هډو موقع ملاؤ نشوه چه هغه د دې خپل كتاب تهذيب او تنقيح كړې وې. (۳)

د دې اعتراض جواب وركولو سره علامه ابن المنير اسكندراني فرمائي چه د ابن بطال رحمه الله قول په ظاهره د دې خبرې دلالت كوي چه امام بخاري رحمه الله د دې ترجمة الباب لاندې حضرت جابر بن عتيك رضي الله عنه داخلول غوښتل ليكن قضا هغه ته مهلت ورنه كړو خود ابن بطال دا وينا د نظر نه خالي نه ده.

اوداخبره ده چه امام بخاري رحمه الله په دې خبره تنبيه وركول غوښتل چه شهادت هم په قتل كښې منحصر نه دې بلكه د شهادت اسباب نورهم دي. نوپه دې اسبابو كښې په احاديثوكښې په عدد باندې اختلاف دې چه په بعض كښې پنځه دي بعض اووه، نو چه كوم حديث په دې شرائطو باندې پوره كيدو هغه خو ئې په باب كښې ذكر كړو او په ترجمه كښې د اووه عدد ذكر كړو او په دې خبره ئې تنبيه اوكړه چه په احاديثو كښې مذكوره اعداد على معنى التحديد نه دي. (۴)

او علامه كرماني دا جواب وركړيدې چه دلته د يو راوي نه په حديث باب كښې عدد بيانولو كښې هيره شوې ده چه اصل عدد خو هم د اووه ووليكن د نسيان په وجه ئې پنځه ذكر كړل. (۵)

---

۱) (عمدة القاري (ج ۱۴ص ۱۲۷) شرح الكرماني (ج۵ص ۴۲)-

۲) (عمدة القاري (ج ۱۴ص ۱۲۸)-

۳) (شرح ابن بطال) ج۵ص ۴۳)-

۴) (المتواري (ج ۱۵۴) ورجحه العيني انظر العمدة (ج ۱۴ص ۱۲۸)-

۵) (شرح الكرماني (ج ۱۲ص ۱۲۵)-

حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمه الله دا احتمال بعيد گرځولي دی.(١) خود علامه کرمانى رحمه الله دَ دي جواب تائيد دَ صحيح مسلمْ او مسنداحمد دَ روايت نه کيږی چه په دي رواياتوکښي دَ نورو څه خصلتونو او عادتونوذکر هم شته. نو په صحيح مسلم (٢) کښي هم دَ ابوهريره رضی الله عنه په روايت کښي ((ومن مات فى سبيل الله فهو شهيد)) اضافه وارد شويده. او دَ مسنداحمد په روايت کښي دَ دي الفاظو هم اضافه شويده ((والخارمن دابته فى سبيل الله شهيد، والمجنوب فى سبيل الله شهيد)) (٣) يعنى دَ الله تعالى په لار کښي دَ خپلي سورلئى نه غورزيدونکي شهيد دي اودَ الله تعالى په لار کښي ذات الجنب بيمارئى سره مړکيدونکي شهيد دي.

حافظ صاحب دَ دي مذکوره بالا اشکال جواب دا ورکړي دي چه دا ترجمه موطا (۴) دَ يو روايت نه اخذ شويده چه دَ حضرت جابر بن عتيك رضی الله عنه نه مروى دي. او په دي کښي شهداء سوى القتل فى سبيل الله هم اووه قسمه بيان کړيشوى دى. (۵)

او شيخ الحديث مولانا محمدزکريا کاندهلوى رحمه الله دا فرمائيلى دى چه زما په نزد خبره دا ده چه لفظ ((سبع)) کله مطلقًا ذکر کړيشى نودَ دي نه مراد کثرت وى، نودَ ترجمة الباب مطلب به اوس داشي چه((قتل فى سبيل الله)) نه علاوه هم دَشهادتُ اسباب ډير دى اودَ ((سبع)) لفظ به په خپله حقيقى معنى پاتي نشي بلکه په معنى مجازى (کثرت) به محمول کيږی.(۶)

[٢٦٧٥] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٧) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الطَّاعُونُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ [٥٤٠٠]

---

١) (فتح البارى (ج٦ص٤٣) وعمدة القارى (ج١٤ص١٢٨)-
٢) (الصحيح لمسلم كتاب الإمارة باب بيان الشهداء رم (٤٩٤١)-
٣) (مسندالإمام أحمد(ج٢ص٤٤١)-
٤) (روى الإمام مالک مسند بسنده أن أخبر جابر بن عتيک رضى الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم.... قال: وما تعدون الشهيد؟ قالوا: القتل فى سبيل الله، فقال: رسول الله صلى الله عليه وسلم: الشهداء سبعة سوى القتل فى سبيل الله المطعون، شهيد، والغرق شهيد، وصاحب ذات الجنب شهيد، والمبطون شهيد، والحرق شهيد، والذى يموت تحت الهدم شهيد والمرأة نموت يجمع شهيدة. انظر المؤطأ للإمام مالک بن أنس، كتاب الجنائز باب النهى عن البكاء على الميت (ص٢١٥-٢١٦) رقم (٣٦)-
٥) (فتح البارى (ج٦ص٤٣)-
٦) (الأبواب والتراجم للشيخ الكاندهلوى (ج١ص١٩٥)-
٧) (قولها: عن أنس بن مالک رضى الله عنه : الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج٢ص٨٥٣) كتاب الطب باب ... مسلم كتاب الإمارة باب بيان الشهداء رقم (٤٩٤٤)-

# تراجم رجال

۱- بشر بن محمد: دا ابومحمد بشر بن محمد السختياني المروزي رحمه الله دې. دَ ده حالات ((بدء الوحي)) دَ پنځم حديث په ذيل کښې راغلى دى. (۱)

۲- عبدالله: دا ابـ عبدالرحمن عبدالله بن المبارك بن واضح الحنظلي المروزي رحمه الله دې. دَ ده حالات هم دَ مذکوره باب لاندې تيرشوى. (۲)

۳- عاصم: دا ابوعبدالرحمن عاصم بن سليمان التميمي الاحول رحمه الله دې. (۳)

۴- حفصه بنت سيرين: دا ام الهذيل حفصه بنت سيرين الانصاريه رحمها الله ده. (۴)

۵- انس بن مالك: دا دَ رسول الله ﷺ صحابي حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه)) لاندې تيرشويدې. (۵)

**قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: الطاعون شهادة لكل مسلم:**
حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه دَ رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دې طاعون د هر مسلمان د پاره شهادت دې.
دَ حديث پاك مطلب دا دې چه کوم مسلمان دَ طاعون دَ وجه مړشو هغه به دَ شهادت اوچتې مرتبې ته رسى اودَ هغه مرګ ته به دَ شهادت مرګ وئيلې شي.
طاعون يوه مشهوره بيمارى ده کومه چه په وبائى شکل کښې خورېږى او په لاکهونو خلق هلاکوى. (۶)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې معنى دې چه دلته دَ طاعون ذکر دې او په ترجمه کښې دَ اوو ذکر دې او په دې اووکښې يو طاعون هم دې. (۷)

---

۱) (كشف البارى (ج۱ص۴۶۵)-
۲) (حواله بالا (ص۴۶۲)-
۳) دَ ده دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذي يغسل به شعر الإنسان-
٤) (دَ دې دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب التيمن في الوضوء والغسل-
۵) (كشف البارى(ج۲ص٤)-
۶) انظر التفصيل في كشف البارى كتاب الطب (ص۴۰). قال جماعة الأطباء منهم أبوعلي سينا: الطاعون مادة سمية تحدث ورما قتالا يحدث في المواضع الرخوة والمغابن من البدن وأغلب ماتكون تحت الإبط، أو خلف الأذن أوعندالأرنبة قال:وسببه دم ردى مائل إلى العفونة والفساد. يستحيل إلى جوهر سمي يفسد العفووبغير مايليه ويؤدي إلى القلب كيفية رديئة، فيحدث القي والخفقان.... قاله الحافظ في الفتح (ج١٤ص١٨٠)
۷) (عمدة القارى (١٤ص١٢٨)-

## ٣١- بَاب: قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ

فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ إِلَى قَوْلِهِ غَفُورًا رَحِيمًا [النساء:٩٥-٩٦]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه عينى او شيخ الحديث صحاب ﷫ فرمائى چه امام بخارى ﷫ دلته په ترجمة الباب كښې دَ پورته ذكر شوى آيت دَ نزول سبب بيانول غواړى. (١)

[٢٦٧٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٢) يَقُولُ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ دَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا فَجَاءَ بِكَتِفٍ فَكَتَبَهَا وَشَكَا ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ ضَرَارَتَهُ فَنَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ [٤٣١٧، ٤٣١٨، ٤٧٠٣]

## تراجم رجال

١- <u>ابوالوليد:</u> دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى ﷫ دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار)) لاندې راغلى دى. (٣)

٢- <u>شعبه:</u> دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتكى بصرى ﷫ دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) په ذيل كښې تيرشو. (٤)

٣- <u>ابواسحاق:</u> دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبيد سبيعى كوفى ﷫ دي. دَ ده حالات هم ((كتاب الإيمان باب الصلاة من الأيمان)) لاندې تيرشوى دى. (٥)

٤- <u>البراء:</u> دا مشهور صحابى حضرت براء بن عازب ﷠ دي. دَ ده حالات هم دَ مذكوره

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ص١٢٩)-

٢) (قوله: البراء رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج٢ص٦٦٠) كتاب التفسير باب ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين﴾ رقم (٤٥٩٣-٤٥٩٤) و(ج٢ص٧٤٦) كتاب فضائل القرآن باب كاتب النبى صلى الله عليه وسلم رقم (٤٩٩٠) ومسلم كتاب الإمارة باب سقوط فرض الجهاد عن المعدورين رقم (٤٩١١) والترمذى أبواب الجهاد باب ماجاء فى أهل العدر فى القعود رقم (١٦٧٠) وأبواب التفسير باب ومن سورة النساء رقم (٣٠٣١) والنسائى كتاب الجهاد باب فضل المجاهدين على القاعدين-

٣) (كشف البارى (ج٢ص٣٨)-

٤) (كشف البارى (ج١ص٢٧٨)-

٥) (كشف البارى (ج٢ص٣٨٠)-

باب لاندې تیرشوی دی.(۱)

**قوله: يقول: لما نزلت:﴿لايستوي القاعدون من المؤمنين﴾ دعا رسول الله صلى الله عليه وسلم زيداً:** ابو اسحاق السبیعی رحمه الله وائی چه ما د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه دا اوریدلی چه کله ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين﴾ نازل شو نوحضور صلی الله علیه وسلم حضرت زید راوغوښتو.

دلته د زید نه حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه مراد دې چه د حضور صلی الله علیه وسلم د وحی کاتب وو.(۲)

**قوله: فجاء بكتف فكتبها:** حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه د اوږې یو هډوکې راوړو اودا آیت ئې اولیکلو.

په هغه زمانه کښې د کاغذ کمې وو د دې د پاره به خلقو د خپل ضرورت لیك د ځناورو په لویولویو هډوکو لیکل کول.

کتف ـ بفتح الکاف وکسر التاء ـ د اوږې هغه هډوکې کوم چه پلن او خور وی که د انسان وی او که د ځناور.(۳)

**قوله: وشكا ابن ام مكتوم ضرارته، فنزلت:﴿لايستوي القاعدون من المؤمنين غير أولي الضرر﴾:** او ابن ام مکتوم رضی الله عنه د خپل نابیناتوب ګیله اوکړه نو ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين غير أولي الضرر﴾ نازل شو. د حضرت ابن ام مکتوم رضی الله عنه نوم عمرو بن قیس دې، نابینا صحابی وولکه څنګه چه په وړاندې حدیث کښې راځی چه کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا مذکوره آیت حضرت زید رضی الله عنه ته املاء کوَلو نو دې په موقع باندې راورسیدلو او عرض ئې اوکړو که چرې زما طاقت وې نو خامخابه جهاد کښې شریکدم نو الله تعالی دا استثناء نازل کړه ﴿غير أولي الضرر﴾.

[۲۶۷۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ الزُّهْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ قَالَ رَأَيْتُ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ جَالِسًا فِي الْمَسْجِدِ فَأَقْبَلْتُ حَتَّى جَلَسْتُ إِلَى جَنْبِهِ فَأَخْبَرَنَا أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ(۴) أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْلَى عَلَيْهِ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ

---

۱) (حواله بالا (ص۳۷۵)-

۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۲۹)-

۳) (حواله بالا-

٤) (قوله: أن زيدبن ثابت رضی الله عنه: الحديث أخرجه البخاری أيضًا (ج۲ص۶۶۰) كتاب التفسير ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين﴾ رقم (٤۵۹۲) وأبوداؤد كتاب الجهاد باب الرخصة فی القعود من العذر رقم (۲۵۰۷) والترمذی أبواب التفسير باب ومن سورة النساء رقم (۳۰۳۳) والنسائی كتاب الجهاد باب فضل المجاهدين على القاعدين رقم (۳۱۰۱)-

وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ فَجَاءَهُ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَهُوَ يُمِلُّهَا عَلَيَّ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْ أَسْتَطِيعُ الْجِهَادَ لَجَاهَدْتُ وَكَانَ رَجُلًا أَعْمَى فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفَخِذُهُ عَلَى فَخِذِي فَثَقُلَتْ عَلَيَّ حَتَّى خِفْتُ أَنْ تَرُضَّ فَخِذِي ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ [۴۳۱۶]

## تراجم رجال

۱- **عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى بن عمرو بن الاويس اويسى رحمة الله عليه دي. (۱)

۲- **ابراهيم بن سعد بن الزهري:** دا ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن الزهري القرشى المدنى رحمة الله عليه دي. دَ دوى تذكره مختصراً ((كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الاعمال)) لاندي(۲) او تفصيلى تذكره ((كتاب العلم باب ماذكر فى ذهاب موسى ...)) لاندې تيره شويده. (۳)

۳- **صالح بن كيسان:** دا ابومحمد يا ابوالحارث صالح بن كيسان مدنى رحمة الله عليه دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال)) لاندې تيرشوى دى.(۴)

۴- **ابن شهاب:** دا ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله ابن شهاب زهرى رحمة الله عليه دي. دَ ده حالات ((بدء الوحى)) دَ دريم حديث په ذيل كښې تيرشوى. (۵)

۵- **سهل بن سعد الساعدي:** دا مشهور صحابى دَ رسول الله ﷺ حضرت سهل بن سعد بن مالك ابوالعباس الساعدى رضي الله عنه دي. (۶)

۶- **مروان بن الحكم:** دا مشهور اموى خليفه ابوعبدالملك مروان بن الحكم الاموى دي.(۷)

۷- **زيد بن ثابت:** دا مشهور صحابى رسول ﷺ او كاتب وحى حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه دي.(۸)

**قوله: أنه قال: رأيت مروان بن الحكم جالسا فى المسجد، فأقبلت حتى**

---

۱) (دَ دوى دَ حالاتو دَپاره اوګورئ كتاب العلم باب الحرص على الحديث-
۲) (كشف البارى (ج۲ص۱۲۰)-
۳) (كشف البارى (ج۳ص۳۳۳)-
۴) (كشف البارى (ج۲ص۱۲۱)-
۵) (كشف البارى (ج۱ص۳۲۶)-
۶) (دَ دوى حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه-
۷) (دَ دوى حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب البُصاق والمخاط ونحوه فى الثوب-
۸) (دَ دوى د حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب مايذكر فى الفخذ-

جلست إلى جنبه، فأخبرنا أن زيد بن ثابت أخبره: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أملى علي ﴿لايستوي القاعدون من المؤمنين والمجاهدون في سبيل الله﴾: دَ حضرت سهل بن سعد الساعدی رضی الله عنه نه مروی دې هغوی فرمائی چه ما مروان بن حکم جمات کښې ناست اوليدو، زه ورورانديږ شوم او د هغه په اړخ کښې کناستم نو هغه مونږ ته اوخودل چه حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه هغه ته خودلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته دا آيت املا کړو ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين والمجاهدون فى سبيل الله﴾

دلته په سند کښې يوه لطيفه دا ده چه حضرت سهل رضی الله عنه صحابى دې او مروان تابعى، او صحابى دلته دَ تابعى نه دَ حديث روايت کوى نو دا ((رواية الصحابى من التابعى)) دې.(۱)

او دوئمه لطيفه دا ده چه ابن شهاب شيخ دې او صالح بن کيسان شاګرد او شاګرد دَ شيخ نه په عمر کښې زيات دې، نو دا ((رواية الأكابر عن الأصاغر)) دې.(۲)

**قوله:** قال: فجاءه ابن أم مكتوم وهو يملها علي، فقال: يارسول الله، لو استطعت الجهاد لجاهدت: حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه فرمائی په دغه وخت کښې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته د ذکرشوی آيت املا کوله، هغوی له ابن ام مکتوم رضی الله عنه راغلو او وئی وئيل، يارسول الله! که چرې ما جهاد کولې شو نو خامخا به مى کړې وې.

((يملها)) په اصل کښې ((يمليها)) وو، ظاهرهمدغه دی چه دَ دې دوئمه ياء په لام سره بدله کړېشويده بيا دواړه لامونه مدغم کړېشو. (۳)

**قوله:** وكان رجلا أعمى، فأنزل الله تعالى على رسوله صلى الله عليه وسلم وفخذه على فخذي، فثقلت علي حتى خفت أن ترض فخذي، ثم سري عنه، فأنزل الله عزوجل ﴿غير أولي الضرر﴾: او ابن ام مکتوم نابينا سړې وو، نوالله تعالى خپل رسول صلی الله علیه وسلم ته وحى راوليګله، په دې حال کښې چه دَ حضور پنډئى زما په پنډئى باندې پرته وه، نو دَ حضور پنډئى په ماباندې درنه شوه، تردې چه زما دا ويره پيدا شوه چه زما پنډئى ټکړې ټکړې نشى، بيا دَ وحى آثار دَ هغوى نه زائل شو نو الله تعالى عزوجل دا وحى نازله کړه. ﴿غير أولي الضرر﴾

دَ حديث باب نه معلومه شوه چه اول خو په دې مذکوره آيت کښې څه قسم استثناء نه وه، هم دوه ډلې وې، يوه دَ مجاهدينو او دوئمه دَ قاعدين عن الجهاد، خو دَ ابن ام مکتوم په ګيله باندې دَ الله تعالى دَ طرف نه استثناء نازل کړېشوه چه دَ دې تفريق نه هغه خلق مستثنى

---

۱) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۳۰)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۸ص۱۸۶)-
۳) (شرح ابن بطال (ج۵ص٤٤)-

دى چه معذوره وى. علامه مهلب رحمه الله فرمائى: ((فيه دليل على أن من حبسه العذر عن الجهاد وغيره من أعمال البر مع نيته فيه فله أجر المجاهد والعامل، لأن نص الآية على المفاضلة بين المجاهد والقاعد، ثم استثنى من المفضولين أولى الضرر، وإذا استثناهم من المفضولين فقد ألحقهم بالفاضلين)) (١)

يعنى حديث باب د دې خبرې دليل دې چه كه يو سړې د شرعى عذر په وجه د جهاد يا بل نيك اعمالوپوره كولونه پاتې شي نو ده ته به د مجاهد اود خير عمل كونكي برابر ثواب وركولې شى.ځكه چه په مذكوره آيت كښې تصريح ده چه مجاهد ته په قاعد باندې فضيلت او ترجيح حاصله ده، بيا د مفضولينو نه د اولى الضرر استثناء اوكړيشوه، نو چه كله هغوى د مفضولينو نه مستثنى او جدا اوګرځولې شو نو هغوى په فاضلينو كښې شامل شو.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح او ښكاره دې، د تشريح محتاج نه دې. (٢) د آيت د نزول سبب بيانول وو، د حضرت ابن ام مكتوم رضى الله عنه د قصې نه هغه بيان كړيشو.

**حل كلمات مشكله:** ((ترض)) دا د ,,رض،، نه مشتق دې د څه معنى چه د ذره ذره كيدو ده. (٣)

((سرى)) د راء په تشديد او تخفيف سره، دا دواړه قسمه لوستلې شى د دې معنى د زائل كيدو او اخوا كيدو ده. (۴)

## ۳۲- بَاب: الصَّبْرِ عِنْدَ الْقِتَالِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د كفارو سره د قتال او جهاد په وخت كښې د صبر فضيلت بيانوى. (۵)

[۲۶۷۸] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى (٦) كَتَبَ فَقَرَأْتُهُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا [ر: ۲۶۶۳]

### تراجم رجال

۱- عبدالله بن محمد: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله جُعفى بخارى مسند رحمه الله

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٣٠)-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٣٠)-
٣) (مختار الصحاح مادة ر،ض،ض-
٤) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٣٠) ومختار الصحاح مادة س،ر،ى، د احاديث باب د نورې تشريح د پاره اوګورئ كشف البارى كتاب التفسير (ص ١٦٠) -
٥) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٣٠)-
٦) (قوله: أن عبدالله بن أبى اوفى رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه آنفا-

دي. دَ ده حالات ((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) لاندې تیرشوی دی.(۱)

۲-معاویه بن عمرو: دا معاویه بن عمروبن مهلب الازدی الکوفی رحمه الله دې. (۲)

۳-ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهیم بن محمدبن الحارث الفزاری رحمه الله دې. (۳)

۴-موسی بن عقبه: داموسی بن عقبه اسدی مدنی رحمه الله دې. (۴)

۵-سالم ابوالنضر: دا ابوالنضر سالم بن ابی امیه مولی عمربن عبیدالله قرشی مدنی رحمه الله دې.(۵)

۶-عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن ابی اوفی علقمه الاسلمی رضی الله عنه دې. (۶)

**قوله: أن عبدالله بن أبي أوفى كتب فقرأته: إن رسول الله ﷺ قال: إذا لقيتموهم فاصبروا:** حضرت سالم ابوالنضر فرمائی چه عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه خط اولیکلو نوما هغه اولوستلو(په هغې کښې وو چه) رسول الله ﷺ فرمائیلی چه کله ستاسو دښمن سره مقابله وی نو کلك اوسیږئ. دَ ((فاصبروا)) دوه مطلبه کیدیشی:

① کله چه دَ قتال اوجهاد اراده اوکړئ نودَ هغې په شروع کولو کښې صبر کوئ چه دَ نه روستوکیدو عزم مصمم اوکړئ او دَ استقامت څرګندونه اوکړئ.

② دَ جنګ شروع کولو نه پس کله چه میدان دَ جنګ ښه ګرم شی نو کلك اوسیږئ او مه تښتئ. (۷)

**صبردَ الله تعالی دَ برکت دَ حصول ذریعه ده:** علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه صبر دَ ټولوکارونو دَ خیر سبب او ذریعه ده. الله تعالی په قرآن کریم کښې دا حقیقت په ډیرو ځایونوکښې بیان کړیدې او خپل عزتمند حبیب ﷺ ته ئې هم دَ دې خبرې حکم ورکړیدې چه کله دښمن سره مقابله وی نو صبر مه پریږدئ، دَ دې دَ پاره چه دَ الله تعالی برکتونه حاصل شی او خلق دَ سستئ او نارستئ عادت نشی. ځکه چه دا دواړه صفتونه په دنیاکښې دَ حرمان او تاوان سبب دی اودَ صبر اختیارول دَ دنیا او آخرت دَ مطلوب امورو دَ حصول ضمانت دې.(۸)

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۷)-
۲) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الأذان باب إقبال الإمام علی الناس عند تسویة الصفوف-
۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الجمعة باب القائلة بعدالجمعة-
۴) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء-
۵) ( دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین-
۶) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الزکاة، باب الصلاة الإمام، ودعائه لصاحب الصدقة.....-
۷) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۳۰) وشرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۲۷)-
۸) (شرح ابن بطال (ج۵ص۴۵)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت د رسول الله ﷺ په دې قول کښې دې:

((فاصبروا)) چه کله کافرانو سره مقابله وی نو صبر او استقامت اختيار کړئ. (۱)

## ۳۳-باب: التَّحْرِيضِ عَلَى الْقِتَالِ

**وَقَوْلِهِ تَعَالَى حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ** [الأنفال:٦٥]

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دا ښائي چه خلقو ته د جهاد ترغيب ورکول پکار دی، راوچتول ئې پکار دی او د دې دپاره خلق تيارول پکار دی. (۲)

**د آيت مبارک د ذکر کولو وجه:** د مذکوره آيت په ذريعه امام بخاری رحمه الله لکه څنګه چه د هغه عادت دې په ترجمة الباب باندې استشهاد پيش کړيدې چه دا تحريص او ترغيب على القتال د قرآن کريم نه هم ثابت دی.

امام شعبی رحمه الله نه روايت دې چه کله دامذکوره آيت نازل شوچه اې نبی! مسلمانانو ته د جهاد او قتال ترغيب ورکړه نو نبی کريم ﷺ به مجاهدين د جهاد د پاره او د دښمن په مقابله کښې د بهادرئ او استقامت کولو د پاره راوچتول. په غزوه بدرکښې چه کله د مکې مشرکانو خپل لښکر اوسامانونو سره د نبی کريم ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم د مقابلې د پاره راغلل نو نبی کريم ﷺ صحابه کراموته ترغيب ورکولو سره ارشاد اوفرمائيلو: ((قوموا إلى جنة عرضها السموات والأرض)) (۳)

[۲٦٧٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا (۴) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْخَنْدَقِ فَإِذَا الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ فِي غَدَاةٍ بَارِدَةٍ فَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ عَبِيدٌ يَعْمَلُونَ ذَلِكَ لَهُمْ فَلَمَّا رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ النَّصَبِ وَالْجُوعِ قَالَ اللَّهُمَّ إِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الْآخِرَةِ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۰)-

۲) (عمدة القاری (۱٤ص ۱۳۰)-

۳) (حواله بالا-

٤) (قوله: سمعت أنسا رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخاری أيضاً (ج۱ص۳۹۸) كتاب الجهاد باب حفر الخندق رقم (۲۸۲۵) (ج۱ص٤۱۵) باب البيعة فى الحرب على أن لايفروا رقم (۲۹٦۱) و(ج۱ص۵۳۵) كتاب مناقب الأنصار باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم: أصلح الأنصار والمهاجرة رقم (۳۸۹۵-۳۸۹٦) و(ج۱ص۵۸۸) كتاب المغازى باب غزوة الخندق وهى الأحزاب رقم ٤۰۹۹-٤۱۰۰) و(ج۲ص۹۳۹) كتاب الرقاق باب الصحة والفراغ ولاعيش إلا عيش الآخرة رقم (٦٤۱۳) و (ج۲ص۱۰٦۹) كتاب الأحكام باب كيف يبايع الإمام الناس؟ (۷۲۰۱) ومسلم كتاب الجهاد باب غزوة الأحزاب وهى الخندق رقم (٤٦۷۳-٤٦۷٤) والترمذى كتاب المناقب باب مناقب جابر بن عبدالله رضى الله عنه رقم (۳۸۵۷)-

فقالوا مجيبين له: نحن الذين بايعوا محمدا على الجهاد ما بقينا أبدا
[٢٦٨٠، ٢٨٠١، ٣٥٨٤، ٣٨٧٣، ٣٨٧٤، ٦٠٥٠، ٦٧٧٥]

## تراجم رجال

١- عبدالله بن محمد: دا ابوجعفرعبدالله بن محمدبن عبدالله جُعفي بخاري مسندي رحمه الله دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيرشوي. (١)

٢- معاويه بن عمرو: دا معاويه بن عمرو بن مهلب الازدي الكوفي رحمه الله دي. (٢)

٣- ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهيم بن محمدبن الحارث الفزاري رحمه الله دي. (٣)

٤- حميد: داابوعبيدحميد بن ابى حميدالطويل الخزاعي البصري رحمه الله دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولايشعر))لاندې تيرشوي دي.(٤)

٥- انس بن مالك: دا دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم مشهور صحابي حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې تيرشوي دي. (٥)

قوله: يقول: خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى الخندق: حضرت حميد الطويل رحمه الله فرمائي چه ما حضرت انس رضي الله عنه په دې وينا كولو سره چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ خندق طرف ته اووتلو واوريدو. په حديث كښې بيان كړيشوې واقعه دَ غزوه احزاب (خندق) ده. په دې غزوه كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه مشوره قبوله كړه او صحابه كرامو ته ئې دَ مدينې نه ګير چاپيره خندق كنستلو حكم وركړې وو چه دَ مدينې منورې حفاظت اوكړيشي. امام طبرى او امام سهيلى رحمه الله فرمائي دَ ټولونه اول دَ جنګ دپاره خندق كنستونكې منوجهر بن ايرج بن افريدون دې چه فارسى النسل وو اودا دَ موسى عليه السلام دَ زمانې واقعه ده.(٦) .

قوله: فإذا المهاجرون والأنصار يحفرون في غداة باردة، فلم يكن لهم عبيد يعملون ذلك لهم: نوحضور صلى الله عليه وسلم اوكتل چه صحابه كرام دَ سختې يخنئي په سحر باندې خندق كنى، ځكه چه هغوى سره داسې غلامان نه ووچه دَ هغوى دَ پاره ئې كاركولو.

---

١) (كشف البارى (ج١ص٦٥٧)-
٢) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الأذان باب الإمام على الناس عند تسوية الصفوف-
٣) (دَ دوى دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الجمعة باب القائلة بعد الجمعة-
٤) (كشف البارى(ج٢ص ٥٧١)-
٥) (كشف البارى (ج٢ص ٤)-
٦) (عمدةالقارى (ج١٤ص١٣١) دَ مذكوره غزوه دَ تفصيل دَ پاره اوګورئ كشف البارى كتاب المغازى (ص٢٧٥)-

کلمه "إذا" دلته مفاجاتیه ده. **فلما رأى مابهم من النصب والجوع، قال:**

**اللهم إن العيش عيش الآخرة فاغفر الأنصار والمهاجرة**

**فقالوا مجيبين له:**

**نحن الذين بايعوا محمدا على الجهاد ما بقينا أبدا**

کله چه حضور دَ دوی مشقت او ولږه اوکتله نو وئې فرمائیل اې الله! اصل ژوند خو دَ آخرت ژوندون دې ته دَ انصارو او مهاجرینو مغفرت اوکړې.
صحابه کرامو به دَ دې جواب کښې وئیل:
مونږ هغه خلق یو چه مونږ دَ محمد ﷺ نه بیعت کړیدې چه ترکومې مونږ باقی او ژوندی یو همیشه به جهاد کوو.
**داپورته ذکر شوی اشعار په رجزیه اندازکښې دَ لوستلوحکمت:** علامه انور شاه کشمیر رحمه الله فرمائی چه صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین به دَ خندق کنستلو په وخت کښې دا پورته ذکر شوی شعر ((نحن الذین.....)) به دَ رجز په انداز کښې لوستلو، دَ دې وجه دا وه چه په مونږ کله هم یو سړې یو عمل کوی نو په خله ځان سره ګونګارې کوی، دَ دې دَپاره چه سترې والې او بیزاری شروع نشی، ځکه چه انسان کله څه دَ مشقت والا کار کوی نو په دې وخت کښې ګونګارې کوی، دَ ده دا ګونګارې دَ هغه کار مشقت غیر محسوس جوړوی. (۱)
**فائده:** دَ حدیث باب نه دا فائده ولاړیږی چه دَ خلقو پټ صلاحیتونه او جنګی جذبات راښکاره کولودَپاره اشعار او رجز وغیره استعمالول پکار دی. (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حدیث مناسبت ((اللهم إن العيش عيش الآخرة)) کښې دې چه دَ دې په ذریعه صحابه چه په کوم کارکښې مشغول وو (یعنی حفر خندق) په هغې ئې نور هم راوچت کړی ځکه چه هغه هم دَ جهاد یوه حصه ده. (۳)

## ۳۴-بَاب: حَفْرِ الْخَنْدَقِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ علامه عینی رحمه الله وینا ده چه امام بخاری رحمه الله دَ دې ترجمة الباب لاندې دا بیانوی چه صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ مدینې نه ګیرچاپیره خندق کنستې وو دَ دې دَ پاره چه دَ دې حفاظت او دفاع اوکړیشی. (۴)
نو ښکاره خبره ده چه دا دَ اهل فارس طریقه وه او حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه دَ دې مشوره ورکړې وه، نو دَدې دَ پاره چه کله ضرورت پیښ شی نو خندق کنستلې شی اودَ نورو قومونو

---

۱) (فیض الباری (ج۳ص۴۲۷)-
۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۴۶)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۳۱)-
۴) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۳۲)-

دَ جنګ طريقې نه فائده حاصلولو کښې هيڅ بديت نشته.

[٢٦٨٠] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ (١) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ جَعَلَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ الْخَنْدَقَ حَوْلَ الْمَدِينَةِ وَيَنْقُلُونَ التُّرَابَ عَلَى مُتُونِهِمْ وَيَقُولُونَ:

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا عَلَى الْإِسْلَامِ مَا بَقِينَا أَبَدَا

وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجِيبُهُمْ وَيَقُولُ اللَّهُمَّ إِنَّهُ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةِ فَبَارِكْ فِي الْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ [ر:٢٦٧٩]

## تراجم رجال

١- ابومعمر: دا عبدالله بن عمرو بن ابى الحجاج منقرى بصرى رحمه الله دې او دَ مقعد په لقب باندې مشهور دې. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب)) لاندې تيرشوى دى.(٢)

٢- عبدالوارث: دا عبدالوارث بن سعيدبن ذكوان تميمى عنبرى بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات هم په ((كتاب العلم)) كښې دَ مذكوره باب لاندې تيرشو. (٣)

٣- عبدالعزيز: دا عبدالعزيز بن صهيب بنانى بصرى رحمه الله دې. دَ ده مختصر حالات ((كتاب الإيمان باب حب الرسول من الإيمان)) لاندې تيرشوى دى. (۴)

۴- أنس: دا دَ رسول الله ﷺ صحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه)) لاندې تيرشوى دى.(۵)

قوله: جعل المهاجرون والأنصار يحفرون الخندق حول المدينة، وينقلون التراب على متونهم: حضرت انس رضي الله عنه نه مروى دى هغوى فرمائى مهاجرينو او انصارو دَ مدينې منورې نه ګير چاپيره خندق كنستلو او په خپلو شاګانوئې خاوره اوړله.

"حول المدينة" نه څه مراد دې؟: دلته دَ باب په روايت كښې ((حول المدينة)) دَ الفاظو نه په ظاهره باندې متبادر داكيږى چه خندق دَ مدينې دَ څلورو وارو طرفونو نه كنستلې وو

---

١) (قوله: عن أنس رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه فى الباب السابق-

٢) (كشف البارى (ج٣ص ٣٥۶)-

٣) (كشف البارى (ج٣ص٣٥٨)-

٤) (كشف البارى (ج٢ص٩)-

٥) (كشف البارى (ج٢ص ٤)-

حالانکه حقیقت دَدې نه برعکس دې. علامه ګنګوهی رحمه الله فرمائي چه ((حول المدینة)) نه دَ دې یوه حصه مراد ده، ځکه چه خندق دَ مدینې منورې نه ګیرچاپیره نه وو تیارکړیشوې بلکه دَ اسلام دَ لښکر نه چاپیره تیار کړیشوې وو. او لښکرد مدینې منورې نه درې میله فاصله باندې وو لیکن دا فاصله کمه ده په دې وجه دَ حدیث راوی قرب په خیال کښې ساتلو سره دا ((حول المدینة)) سره تعبیرکړیدې(۱)

شیخ الحدیث محمدزکریا کاندهلوی رحمه الله دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله دَ ارشاد نوره تشریح کولوسره فرمائي چه دحضرت ګنګوهی رحمه الله قول واضح او ظاهر دې، ځکه چه خندق دَ اسلام دَ لښکر او دَ کفارو دَ لښکر په مینځ کښې تیار کړیشوې وو. صاحب الخمیس دَ خلاصة الوفاء په حواله سره لیکي:

((کان أحد جانبي المدینة عورة، وسائر جوانبها مشتبکة بالبنیان والنخیل، لایتمکن العدو منها، فاختار ذلك الجانب المکشوف للخندق، وجعل معسکرة تحت جبل سلع، والخندق بینه وبین المشرکین))

یعني دمدینې منورې یوه حصه خالي اوکولاؤ وه، دَدې نه علاوه باقي ټولو طرفونوته آبادیانې او دَ کهجورو باغونه وو، دَ هغه ځائ نه دَ دښمن حمله او غلبه حاصلول ممکن نه وو، په دې وجه نبي کریم ﷺ دَ خندق دَ تیاری دَ پاره دَ کولاؤ حصې انتخاب اوکړو او خپل لښکرئې دَ جبل سلع په لمن کښې اودرولو اوخندق دَ هغوی او دَ مشرکانو ترمینځه وو.(۲)

((علی متونهم)) دا دَ متن جمع ده، دَ دې معنی شا ده، اودَ زمکې سخت او اوچتې حصې ته هم متن وائي. (۳)

ویقولون: نحن الذین بایعوا محمداً علی الإسلام ما بقینا أبداً

او هغوی به وئیل هم مونږ یو هغه خلق چا چه دَ محمد ﷺ نه بیعت کړې دې چه ترکومې مونږ ژوندی او باقي یو مدام به په اسلام باندې کلك یو.

دلته دَ باب په روایت کښې ((علی الإسلام)) وارد شوې دې او دَ تیرشوی باب په روایت کښې ((علی الجهاد)) وو. علامه عیني رحمه الله فرمائي چه موزون ((علی الجهاد)) دې او ((علی الإسلام)) سره په شعري وزن کښې خرابي راځي. (۴)

**قوله: والنبي صلی الله علیه وسلم یجیبهم ویقول:**

اللهم إنه لا خیر إلا خیر الآخرة فبارك في الأنصار والمهاجرة

اونبي کریم ﷺ هغوی ته جواب ورکولو سره فرمائیل: اې الله خیګړه خو هم دَ آخرت خیګړه ده، ته په انصارو او مهاجرینو کښې برکت واچوه.

---

۱) (لامع الدراری (ج۷ص۲۲۲)-
۲) (تعلیقات لامع الدراری(ج۷ص۲۲۲)-
۳) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۳۲)-
٤) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۳۲)

**يواشكال اود هغې جواب:** دلته يو وړوکې غوندې اشكال پيدا كيږى چه په سابقه باب كښې خوداوو چه جواب وركونكى خو صحابه كرام وو اودلته دا دى چه نبى كريم ﷺ جواب وركوى؟ نود دې جواب دا دې چه دا اختلاف په اوقاتوباندې محمول دې يعنى كله به شروع صحابه كرامو كوله او نبى كريم ﷺ به جواب وركولو او كله به شروع حضور ﷺ كوله او صحابه كرامو به جواب وركولو.(۱)

[۲۶۸۲-۲۶۸۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ (۲) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ وَيَقُولُ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا

## تراجم رجال

۱- **ابوالوليد:** دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار)) لاندې نقل شوى دى. (۳)

۲- **شعبه:** دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې نقل شوى دى. (۴)

۳- **ابواسحاق:** دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبيد سبيعى كوفى رحمه الله دې. دَ دوى حالات هم ((كتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان)) لاندې راغلى دى. (۵)

۴- **البراء:** دا مشهور صحابى حضرت براء بن عازب رضى الله عنه دې. دَ دوى حالات هم دَ دغه پورتنى مذكوره باب لاندې تيرشوى دى.

**قوله: كان النبى صلى الله عليه وسلم ينقل ويقول: لولاأنت ما اهتدينا:** حضرت براء بن عازب رضى الله عنه نه روايت دى چه نبى كريم ﷺ به خاوره اوړله او وئيل به ئى (يا الله) كه ستا رحمت نه وې نو مونږ به هدايت نه وې بيامونډې.

---

۱) (حواله بالا وشرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۲۸)-

۲) (قوله: سمعت البراء رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج۱ص۳۹۸) كتاب الهجاد باب حفر الخندق رقم (۲۸۳۷) و (ج۱ص۴۲۵) باب الرجز فى الحرب ورفع الصوت فى حفرالخندق رقم (۳۰۳۴) و (ج۲ص۵۸۹) كتاب المغازى باب غزوة الخندق وهى الأحزاب رقم (۱۴۰۴-۱۴۰۶) و(ج۲ص۹۷۹) كتاب القدر باب ﴿وماكنالنهتدى لولاأن هدانالله﴾ رقم (۶۶۲۰) و(ج۲ص۱۰۷۴) كتاب التمنى باب قول الرجل: لولااللهمااهتدينا رقم (۷۲۳۶) ومسلم كتاب الجهاد باب غزوةالأحزاب وهى الخندق رقم (۴۶۷۰)-

۳) (كشف البارى (ج۲ص۳۸)-

۴) (كشف البارى (ج۱ص۶۷۸)-

۵) (كشف البارى (ج۲ص۲۷۰)-

[۲۶۸۲] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ (١) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ يَنْقُلُ التُّرَابَ وَقَدْ وَارَى التُّرَابُ بَيَاضَ بَطْنِهِ وَهُوَ يَقُولُ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا [۲۸۷۰، ۳۸۲۸، ۳۸۸۰، ۶۲۳۶، ۶۸۰۹]

## تراجم رجال

۱- حفص بن عمر: دا حفص بن عمربن حارث رحمه الله دي. (۲) دَ دوی نه علاوه دَ نورو رجالو حوالې اوس په تيرشوی حديث کښې نقل کړيشوی دی.

**قوله:** قال: رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم الأحزاب ينقل التراب، وقد واري التراب بياض بطنه: دَ حضرت براء بن عازب نه مروي دی چه ما رسول الله ﷺ په غزوه احزاب اوکتلو چه هغوی خاوره اوړله تردې چه هغې دَ حضور ﷺ دَ ختې مبارکې سپين والې پټ کړې وو.

علامه مهلب رحمه الله فرمائی دَ حديث نه دا خبره معلومه شوه چه امام المسلمين له دَ مسلمانانو دَ حفاظت دَ پاره که خپل حرمت او وقار هم ختمول وی نو پرواه نه دی کول پکار. دَ دې فائده به دا وی چه عام مسلمانان به هم دَ هغه اقتداء کوی.(۳)

**وهويقول:** لولا أنت ما اهتدينا ولا تصدقنا ولا صلينا

فأنزل السكينة علينا وثبت الأقدام إن لاقينا

إن الأولى قدبغوا علينا إذا أرادوا فتنة أبينا

حضور ﷺ دا اشعار لوستل:

① که دَ الله تعالى رحمت نه وو نو مونږ به هدايت نه وو موندلې او نه به مونږ صدقه ورکوله او نه به مونږ مونځ کولو.

② يا الله په مونږ باندې سکينه نازله کړې او دَ جنګ په وخت کښې مونږ له ثابت قدمی راکړې.

③ دې خلقو په مونږ باندې ظلم اوکړو کله چه دا خلق مونږ په فتنه کښې دَ اچولو اراده کوی نو مونږ به انکار کوو.

دا اشعار دَ حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه دی لکه چه په کتاب المغازی په روايت کښې دَ دې صراحت دې. (۴)

---

۱) (قوله: عن البراء رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه آنفا فى الحديث السابق-

۲) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب التيمن فى الوضوء والغسل-

۳) (شرح ابن بطال (ج۵ص۴۷)-

٤) (انظر صحيح البخارى كتاب المغازى باب غزوة الخندق وهى الأحزاب رقم (٤١٠٦)-

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د دریواړو احادیثو مناسبت او مطابقت واضح دې، په اولنی او دریم کښې د حفرخندق اود هغې د خاورې اوړلو ذکر دې او دوئم حدیث د دریم اختصار دې او په دې کښې هم د خاورې منتقل کولو ذکر دې، چه د خندق د کنستلو لازمی حصه ده.

## ۳۵-بَاب: مَنْ حَبَسَهُ الْعُذْرُ عَنِ الْغَزْوِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله د دې ترجمة الباب لاندې دا ذکر کول غواړی که یو سړې معذوره دې او د هغه نیت صحیح او صادق دې خو هغه د دې عذر په وجه په جهاد کښې شرکت نشی کولې نو دې به نشی ملامت کولې اوده ته به د صادق نیت په وجه د غازی اجر او ثواب ملاویږی. (۱)

**د عذر تعریف:** د بخاری شریف شارحینو د عذر تعریف دا لیکلې دې:

((هوالوصف الطارئ علی المکلف المناسب للتسهیل علیه)) (۲)

یعنی عذر مکلف ته پیښیدونکې هغه صف دې د څه په وجه چه په شرعی احکامو کښې هغه سره د آسانتی معامله کولې شی.

[۲٦۸۳-۲٦۸٤] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ أَنَّ أَنَسًا (۳) حَدَّثَهُمْ قَالَ رَجَعْنَا مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### تراجم رجال

۱- احمد بن یونس: دا احمد بن عبدالله بن یونس تمیمی یربوعی کوفی رحمه الله دې. د ده حالات ((کتاب الإیمان باب من قال: إن الإیمان هو العمل)) لاندې تیرشوی. (۴)

۲- زهیر: دا زهیر بن معاویه بن حُدیج بن زحیل بن زهیر رحمه الله دې. د ده حالات ((کتاب الإیمان باب الصلاة من الإیمان)) په ذیل کښې بیان شوی. (۵)

۳- حمید: داابوعبیده حمیدبن ابی حمید الطویل الخزاعی البصری رحمه الله دې. د دوی حالات هم ((کتاب الإیمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لایشعر)) لاندې تیرشو. (۶)

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۳۳)-

۲) (حواله بالاو شرح الکرمانی (ج۱۲ص ۱۲۹)-

۳) (قوله: أن أنسا حدثهم: الحدیث أخرجه البخاری أیضًا (ج۱ص۳۹۸) کتاب الجهاد باب من حبسه العذر عن الغزو رقم (۲۸۳۹) و (ج۲ص٦۳۷) کتاب المغازی باب بعد باب نزول النبی صلی الله علیه وسلم الحجر رقم (٤٤۲۳) وأبوداؤد کتاب الجهاد باب الرخصة فی القعود من العذر رقم ۲۵۰۸)-

٤) (کشف الباری (ج۲ص۱۵۹)-

۵) (کشف الباری (ج۲ص۳٦۷)-

٦) (کشف الباری (ج۲ص۵۷۱)-

۴- انس: دامشهور صحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. دَ دهٔ حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) په ذيل كښې راغلى دى. (۱)

قوله: قال: رجعنا من غزوة تبوك مع النبى صلى الله عليه وسلم: حضرت انس رضي الله عنه فرمائى چه مونږ د غزوه تبوك نه نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره واپس راغلو. دَ صحيح بخارى په بعضو نسخوكښې دلته دَ سند تحويل دې او په نورو نسخو كښې تحويل دَ سند نشته.(۲)

[۲۶۸۳] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَابْنُ زَيْدٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۳) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزَاةٍ فَقَالَ إِنَّ أَقْوَامًا بِالْمَدِينَةِ خَلْفَنَا مَا سَلَكْنَا شِعْبًا وَلَا وَادِيًا إِلَّا وَهُمْ مَعَنَا فِيهِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ

وَقَالَ مُوسَى حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْأَوَّلُ أَصَحُّ [۳۶۱۱]

## تراجم رجال

۱- سليمان بن حرب: دا ابوايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب من كره أن يعود فى الكفر...)) لاندې تيرشوى دى.(۴)

۲- حماد: دا ابواسماعيل حماد بن زيدبن درهم ازدى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى حالات هم ((كتاب الإيمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنين﴾ په ذيل كښې تيرشوى. (۵)

۳- حميد ۴- انس: دَ دې دواړو حضراتو دَ پاره وړاندينې سند اوګورئى.

قوله: أن النبى صلى الله عليه وسلم كان فى غزاة، فقال: أن أقواما بالمدينة خلفنا ما سلكنا شعبا ولا واديا إلا وهم معنا فيه: حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى عليه السلام په يوغزوه كښې وو نو وئى فرمائيل چه څه خلق زمونږ نه روستو په مدينه منوره كښې پاتې شوهغه داسې دى لكه چه مونږ په كومه دره يا كوم ميدان كښې څو هغوى به خامخا زمونږ سره وى.

دَ ((غزاة)) نه مراد غزوه تبوك ده لكه چه دَ زهير په روايت كښې دى. (۶)

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص ؟)-
۲) (شرح القسطلانى (ج۵ص۶۳) وعمدة القارى (ج۱٤ص۱۳۳)-
۳) (قوله: أنس رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه فى الحديث السابق من الباب-
٤) (كشف البارى (۲ص۱۰۵)-
۵) (حواله بالا (ص۲۱۹)-
۶) (شرح القسطلانى (ج۵ص۶۳)-

((علفنا)) نې په دوه قسمه ضبط کړې دې د لام په سکون یا لام په تشدید او فاء په سکون سره. په اولنی صورت کښې به د دې معنی ((وراءنا)) وی یعنې زمونږ شاته. په دوئم صورت کښې دا د باب تفعیل نه د جمع متکلم ماضی صیغه وی اود دې معنی مونږ روستو پریخی دی، به وی.(۱)

**قوله: إلا وهم معنا فيه:** جملې هم دوه مطلبه دی:

① کوم چه مونږ په ترجمه حدیث کښې اختیارکړیدې چه مونږ خلق د جهاد د پاره چرته هم لاړشو نودا روستو پاتې شوی به خامخا مونږسره په جهاد. کښې شریکیدل که چرې د هغوی څه عذر یا مجبوری منع کونکې نه وې.

② دوی مونږ سره د جهاد په ثواب کښې شریك دی، سره د دې چه دا خلق د عذر د وجه په جهاد کښې خو شریك نه شول خو که مونږ کومې درې یا میدان ته لاړو هغوی ته به ثواب خامخا ملاویږی ځکه چه دې حضراتو هم د جهاد د شرکت نیت لرلو. د دې معنې تائید د اسماعیلی د طریق نه کیږی د کوم په الفاظو کښې چه د نیت صراحت دې.

((إلا وهم معكم فيه بالنية)) دغه شان ابن حبان (۲) ابوعوانه او امام مسلم ﷺ (۳) په روایت کښې ((إلا كانوا معكم)) په ځائ ((إلا شركوكم في الأجر)) دې. دینه هم د دونمې معنې تائید کیږی چه یوځائیوالې او شرکت په اجرکښې مراد دې نه چه یوځائیوالې په جهاد او قتال کښې.(۴)

**قوله: حبسهم العذر:** عذر هغوی بند کړی.

عذرنه مراد دلته مرض اوسفر باندې طاقت نه لرل دی.مسلم شریف (۵) روایت کښې عذر په ځائ ((حبسهم العذر)) راغلې. نو هغه په غالب او اکثر حالاتو باندې محمول دې. دا مطلب نه دې چه عذر صرف هم په مرض او بیمارئی کښې منحصر دې. (۶)

**قوله: وقال موسى: حدثنا حماد عن حميد عن موسى بن أنس عن أبيه قال النبي صلى الله عليه وسلم:**

**د تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام ابوداود (۷)

هم په دې سند سره خپل سنن کښې موصولاً نقل کړیدې او اسماعیلی هم د دې تخریج

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۳) وفتح الباری )ج ۶ص ٤۷)-

۲) (الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج۸ص ۱۱۲) کتاب السیر ذکر تفضل الله علی القاعد المعذور ..... رقم (٤۷۱۱)-

۳) (الصحیح لمسلم کتاب الإمارة باب ثواب من حبسه العذر عن الغزو رقم (٤۹۳۲)-

٤) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۳) وفتح الباری (ج ۶ص ٤۷)-

۵) (الصحیح لمسلم کتاب الإمارة باب ثواب من حبسه العذر عن الغزو رقم (٤۹۳۲)-

۶) (شرح القسطلانی (ج۵ص ۶۳)-

۷) (سنن أبی داود کتاب الجهاد باب الرخصة فی القعود من العذر رقم (۲۵۰۸)-

((أخبرنا أبويعلى حدثنا أبوخيثمة حدثنا عفان حدثنا حماد بن سلمة أخبرنا حميد عن موسى بن أنس عن أبيه))
طريق نه كړيدې.(۱)

**قوله: (قال أبوعبدالله: الأول أصح:** امام بخارى رحمه الله فرمائى ړومبې سند زما په نزد زيات صحيح دې.

**دَ مذكوره تعليق مقصد:** امام بخارى رحمه الله دلته دوه سندونه ذكر كړى دى اوس دا فرمائى اولنې سند زما په نزد ډير صحيح دې په نسبت دَ دوئم،اولنى نه مراد هغه سند دې كوم كښې چه موسى بن انس نشته.

او دَ صحت وجه دا ده لكه څنګه چه تاسو ګورئى چه دَ موسى بن انس كوم روايت دې هغه معنعن دې او ړومبې سند دَ تحديث الفاظوسره دې لكه چه دَ زهير په روايت كښې دې.

په دې معامله كښې اسماعيلى دَ حضرت امام مخالفت اوكړو او وئى فرمائيل حماد دَ حميد دَ احاديثو عالم دې او په دې سلسله كښې هغه ته په نورو ترجيح حاصله ده.

دا هم كيديشى چه حميد دا روايت دوه ځل اوريدلې وى يو ځل دَ حضرت انس رضي الله عنه نه او په دوئم ځل دَ هغه دَ خوئ موسى نه، په دې وجه دلته داسې څه خبره نشته چه اولنى ته په دوئم باندې ترجيح وركړيشى.(۲)

**فائده:** دلته لكه څنګه چه تاسوګورئى امام صاحب حديث باب په دوو طرقوسره نقل كړې دې. اولنئى طريق دَ احمد بن يونس دې او دوئم دَ سليمان بن حرب.

نو امام بخارى رحمه الله دَ زهير روايت دَ حماد بن زيد روايت سره مقرون كړيدې. اودَ امام صاحب غرض دَ دې دوو فائدو طرف ته اشاره كول دى. هغه دا چه دَ زهير په روايت كښې دَ غزوې تصريح ده او دَ حماد په روايت كښې دَ غزوې تصريح نشته.

دوئم دا چه دَ زهير په روايت كښې دَ حضرت انس رضي الله عنه طرف ته دَ تحديث صراحت دې او دَ حماد په روايت كښې عنعنه ده.(۳)

**يوه بله فائده:** دَ حديث باب نه دا معلومه شوه كه يو سړې دَ څه نيك عمل نيت ساتلو باوجود دَ څه شرعى عذر په وجه دَ هغې پوره كولو نه پاتې شى نو بيا به هم ده ته دَ عمل كونكى اجر وركولې شى. لكه چه حضور صلى الله عليه وسلم نه مروى دى كه يو سړې دَ شپې مونځ يعنى تهجد نه پاتې شى او په هغه دَ خوب غلبه شوې وى نو بيا به هم هغه ته دَ تهجد ثواب ملاويږى اودَ هغه خوب به دَ هغه دَ پاره صدقه شميرلې كيږى. (۴)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك ((حبسهم العذر)) كښې دې.(۵)

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱۴ص۱۳۳) وتغليق التعليق (ج۳ص ۴۳۴)-
۲) (فتح البارى (ج۶ص۴۷) وعمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۳)-
۳) (حواله بالا-
۴) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۳) وشرح ابن بطال (ج۵ص۴۸)-
۵) (عمدة القارى(ج ۱۴ص ۱۳۳)-

# ۳٦- باب: فضل الصوم في سبيل الله

دَترجمة الباب مقصد: امام بخاری رحمه الله دَ دې ترجمې لاندې په جهاد کښې دَ روژې ساتلو فضيلت بيانول غواړی. (۱)

يوتعارض اودَهغې جواب: دلته دا يو اشکال پيدا کيږي چه امام بخاری وړاندې باب قائم کړې وو ((باب من اختار الغزو على الصوم)) اوهلته ئی دَ روژې نه ساتلو اوليت بيان کړې وو ځکه چه په روژه سره دَ دښمن مقابله کولو کښې کمزورئی انديښنه پيدا کيږی. اودَ دې ترجمة الباب لاندې مصنف رحمه الله په جهادکښې دَ روژې ساتلو فضيلت بيانوی؟ خودَ دې تعارض جواب واضح دې هغه دا چه وړاندې کوم باب قائم کړې وو هغه دَ هغه سړی په حق کښې دې چاته چه دَ ضعف او کمزورئی خطره وی بيا په هغه صورت کښې روژې نه دی ساتل پکار. خو که يو سړې په جهاد کښې دې او دَ روژې ساتلو طاقت لری او په دې پوهيږی چه زما په روژه ساتلو سره دَ جهاد په مشاغلو کښې څه خلل نه واقع کيږی ، کمزورې کيږی نه، نو بيا خو يقيناً دَ ده دَپاره لوئ اجر دې. ځکه چه په دې کښې اجتماع الفضيلتين ده چه هغه دوه فضيلتونه راجمع کوی، دَ روژې او دَ جهاد فضيلت.(۲)

[۲٦۸۵] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَسُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ أَنَّهُمَا سَمِعَا النُّعْمَانَ بْنَ أَبِي عَيَّاشٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ (۳) الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بَعَّدَ اللَّهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا

## تراجم رجال

۱- اسحاق بن نصر: دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر السعدی المنجدی رحمه الله دې.(۴)

۲- عبدالرزاق: داابوبکر عبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانی يمانی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإيمان باب حسن إسلام المرء)) لاندې تير شوی.(۵)

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ١٤ ص ١٣٣)-

۲ ) (فتح الباری (ج ٦ ص ٤٨) دَ دې مضمون تفصيلی تشريح کتاب الصيام باب الصوم فی السفر لاندې تيره شوې. فليراجع ثمه-

۳ ) (قوله: عن أبی سعيد الخذری رضی الله عنه: الحديث أخرجه مسلم کتاب الصيام باب فضل الصيام فی سبيل الله لمن يطيقه رقم (٢٨١١) والترمذی غفی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل الصوم فی سبيل الله رقم (١٦٢٣) والنسائی فی کتاب الصيام باب ثواب من صام يومًا فی سبيل الله عزوجل.... رقم (٢٢٣٧) وابن ماجه أبواب الصيام باب فی صيام يوم فی سبيل الله رقم ١٧١٧)-

۴ ) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده فی الخلوة-

۵ ) (کشف الباری (ج ۲ ص ۳۲۱)-

۳-ابن جريج: دا عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج رحمه الله دي. (۱)

۴-يحيى بن سعيد: دامشهور تابعى محدث يحيى بن سعيد بن قيس انصارى رحمه الله دي. دَ ده حالات ((کتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا)) لاندې تيرشوی دی.(۲)

۵-سهيل بن ابى صالح: دا ابويزيد سهيل بن ذکوان السمان ابى صالح مولى جويرية بنت الاحمس المدنى رحمه الله دې. دَ ده نور درې رونړه هم محدثين وو. (۳) دې دَ خپل پلار ذکوان ، سعيد بن المسيب، حارث بن مخلد انصارى، ابوالحباب سعيد بن يسار، عبدالله بن دينار، عطاء بن يزيد الليثى، نعمان بن عياش، ابن المنکدر، ابوعبيدصاحب سليمان، عبيدالله بن مقسم، قعقاع بن حکيم، سمى مولى ابى بکر، اعمش او ربيعة الرائي رحمهم الله وغيره نه دَ حديث روايت کوی. دَ ده نه په روايت کونکوکښې ربيعة الرائي اعمش، يحيى بن سعيدالانصارى، موسى بن عقبه، يزيدبن الهاد، امام مالك، زهيربن معاويه، زهيربن محمد، سعيد بن عبدالرحمن الجمحى، وهيب، سليمان بن بلال، عبدالله بن ادريس، دراوردى، علاء بن المسيب، ابوعوانه، يعقوب بن عبدالرحمن اسکندرانى رحمهم الله وغيره شامل دی.(۴)

امام ترمذى رحمه الله فرمائى ((عن سفيان بن عيينه قال: کنا نعد سهل بن أبي صالح ثبتا في الحديث))(۵)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى ((ما أصلح حديثه))(۶)

ابوطالب رحمه الله فرمائى: ((سألت أحمد بن حنبل عن سهيل بن أبي صالح، ومحمد بن عمرو، فقال: قال يحيى بن سعيد: محمد أحبهما إلينا، وما صنع شيئا سهيل أثبت عندهم))(۷)

مادَ امام احمد بن حنبل رحمه الله نه دَ سهيل بن ابى صالح او محمدبن عمرو باره کښې تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائيل چه يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائيلې ووچه په دې دواړو کښې مونږ ته زيات خوښ محمد دې. او يحيى بن سعيد هيڅ هم اونه وئيل. سهيلی دَ هغوی په نزد اثبت دې. احمد بن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى ((سهيل ثقة))(۸)

امام نسائى رحمه الله فرمائى ((ليس به بأس))(۹)

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجيله -
۲) (کشف البارى (ج۲ص۳۲۱)-
۳) (تهذيب الکمال (ج۱۲ص۲۲۳)-
۴) (شيوخ وتلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الکمال (ج۱۲ص۲۲۳-۲۲۵)-
۵) (الجامع للترمذى أبواب الجمعة باب ما جاء فی الصلاة قبل الجمعة وبعدها رقم (۵۲۳)-
۶) (تهذيب الکمال (ج۱۲ص۲۲۶)-
۷) (حواله بالا-
۸) (تهذيب الکمال (ج۱۲ص۲۲۷)-
۹) (سير أعلام النبلاء (ج۵ص۴۵۹)-

ابن سعید رحمه الله فرمائی ((کان ثقة، کثیر الحدیث)) (۱)

ابن حبان رحمه الله هغه په (کتاب الثقات) کښې ذکر کړیدې او فرمائی ((کان یخطئ))(۲)

ابن شاهین رحمه الله هم دَ ده ذکر په خپل کتاب (الثقات) کښې کړې او فرمائی ((من المتقنین إنما توقی فی غلط حدیثه ممن یأخذ عنه)) دې دَ اصحاب ضبط او اتقان نه دې دَ هغه دَ غلطو احادیثونه چه کوم پرهیز کړیشوې دې دَ هغې وجه هغه خلق دی دَ چانه چه دې روایت اخذ کوی.(۳)

یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۴)

علامه ذهبی رحمه الله دَ هغوی تذکره په دې الفاظو کښې شروع کړیده. ((الإمام المحدث الکبیر الصادق.....))(۵)

مزید فرمائی ((سهیل بن أبی صالح فی عداد الحفاظ))(۶)

لکه څنګه چه تاسو اوکتل چه سهیل بن ابی صالح ډیرو محدثینو او نقاد ثقة او معتبر ګرځولې دې خو داسې هم ډیر محدثین دی کومو چه دې ضعیف او غیرمعتبر اوګرځولو او په هغه باندې ئې کلام کړیدې. امام بخاری رحمه الله دَ هغوی باره کښې فرمائی ((کان لسهیل أخ فمات فوجد علیه فنسی کثیرا من الحدیث)) (۷)

دَ سهیل یو رور وو نودَ هغه وفات اوشو، په دې باندې سهیل ته سخته صدمه اورسیده دَ څه په وجه چه هغه ډیر احادیث هیر کړل. ابوحاتم رحمه الله فرمائی ((یکتب حدیثه ولایحتج به))(۸)

یحیی بن معین هم دَ یو ضعیف قول مروی دی. (۹) دغه شان امام عقیلی (۱۰) ابوزرعه (۱۱) اورازدی (۱۲) رحمهم الله وغیره هم په دوی کلام کړیدې. اوس دا دواړه قسمه اقوال دَ تعدیل او جرح په وړاندې کیخودو باندې دا خبره معلومیږی چه دا راوی معتبر دې او په هغه

۱) (طبقات ابن سعد (ج۶ص۲۲۷)-

۲) (تعلیقات تهذیب الکمال (ج۱۲ص۲۲۷)-

۳) (حواله بالا-

٤) (سیرأعلام النبلاء (ج۵ص٤۵۹)-

۵) (حواله بالا (ص٤۵۸)-

۶) (تذکرة الحفاظ (ج۱ص۱۳۷)-

۷) (تعلیقات تهذیب الکمال (ج۱۲ص۲۲۸) وهدی الساری (ص٤۰۸)-

۸) (الجرح والتعدیل (ج٤ یص ۲۳۰) رقم (۶۱۸۲)-

۹) (سیر أعلام النبلاء (ج۵ص٤۵۹)-

۱۰) (الضعفاء للعقیلی (ج۲ص۱۵۵) الجرح والتعدیل (ج٤ص ۲۳۰) رقم (۶۱۸۲)-

۱۱) (تهذیب الکمال (ج۱۲ص۲۲۳۷)-

۱۲) (تعلیقات تهذیب الکمال (ج۱۲ص۲۲۸)-

باندې د ائمه جرح وتعدیل کلام د هغه درجې نه دې د کوم په وجه چه دوی مجروح، متکلم فیه او غیر معتبر اوګرځولې شی. د امام بخاری رحمه الله نه علاوه نور اصحاب خمسه د هغوی اصالة روایات نقل کړی دی چه په دې خبره باندې دال دی چه دا معتبر راوی دې.

امام ابن عدی رحمه الله فرمائی: ((ولسهيل أحاديث كثيرة .... وله نسخ، وروى عنه الأئمة مثل الثوري وشعبة ومالك وغيرهم من الأئمة وحدث سهيل عن جماعة عن أبيه، وهذا يدل على ثقة الرجل، حدث سهيل عن سي، عن أبي صالح، وحدث سهيل عن الأعمش عن أبي صالح .... وهذا يدلك على تمييز الرجل وتمييز بين ماسمع من أبيه، ليس بينه وبين أبيه أحد، وبين ماسمع من سي والأعمش وغيرهما من الأئمة، وسهيل عندي مقبول الأخبار، ثبت، لابأس به ....))(۱)

او د سهیل نه مروی احادیث ډیر دی... د هغه ډیرې نسخې هم دی، امام ثوری، شعبه او مال غوندې ائمه د هغوی نه روایت کوی. او سهیل د یو جماعت نه د خپل والد په واسطه روایت بیان کړیدې او دا فعل دې سړی (یعنی سهیل) په ثقاهت باندې دال دې، او سهیل د عن سی عن أبي صالح په طریق باندې تحدیث کړې او هغوی عن الأعمش عن أبي صالح په طریق هم تحدیث کړیدې او هم دا څیز د دې خبرې طرف ته د هغه لارخودنه کوی چه دا سړې د روایاتو په مینځ کښې د ښه تمییز نه کار اخلی، هغه روایات کوم چه د خپل والد نه روایت کوی مستقل نقل کوی او کوم روایات چه هغه ((سی عن الأعمش)) په طریق یا د نورو ائمو نه نقل کوی هغه هم واضح نقل کوی، سهیل زما په نزد ثبت دې د هغه احادیث مقبول دی او لابأس به دی.

بیا د پوهې خبره دا هم ده چه امام بخاری رحمه الله د هغه نه کوم روایات اخستې دی هغه ټی مقرونا بالغیر اخستې دی او په هغې کښې ده سره یحیی بن سعید انصاریِ هم شامل دې، د دې د پاره په امام صاحب باندې هیڅ اعتراض نه واردیږی چه هغوی د یو متکلم فیه راوی روایت څنګه نقل کړلو؟(۲) امام بخاری رحمه الله د (کتاب الجهاد) نه علاوه په (کتاب الدعوات) کښې هم د هغه نه دوه روایتونه اخستې دی، مقرونا وتبعا للغیر-(۳) د ابن قانع رحمه الله مطابق هغه ۱۳۸ھ کښې انتقال شوې (۴) رحمه الله رحمة واسعة-

۶- نعمان بن ابی عیاش: دا ابوسلمه نعمان بن ابی عیاش زرقی انصاری مدنی رحمه الله دې. د هغوی والد مشهور صحابی حضرت زید بن صامت رضی الله عنه دې (۵)

---

۱) (الکامل لابن عدی (ج۳ص۴۴۹)-
۲) (هدی الساری (ص۴۰۸)-
۳) (حواله بالا وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۳۴)-
۴) (تهذیب التهذیب (ج۴ص۲۶۴)-
۵) (تهذیب الکمال (ج۲۹ص۴۵۴-۴۵۵)-

دَ هغوی والده ام ولد وه.(۱) دې دَ حضرت جابر بن عبدالله، عبدالله بن عمربن خطاب، حضرت ابوسعيد الخدری او حضرت خوله بنت عامر رضی الله عنهم نه دَ حديث روايت کوی. دَ ده نه دَ حديث روايت کونکوکښې يحيى بن سعيدانصاری، سهيل بن ابى صالح، ابوحازم سلمة بن دينار، ابوالاسود، محمد بن عبدالرحمن بن نوفل، محمد عجلان، سمى مولى ابى بكر او عبدالله بن سلمة الماجشون وغيره شامل دی. (۲)

امام ابن معين رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۳)

علامه ذهبی رحمه الله فرمائی ((ثقة، من أبناء كبار الصحابة)) (۴)

ابن حبان رحمه الله هغه په (كتاب الثقات) کښې ذکر کړيدې.(۵)

امام بخاری او امام ابوبكر بن مجويه رحمهما الله فرمائی ((كان سخيا، كبيرا، من أفاضل أبناء أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم، وكان أبوه فارس النبي صلى الله عليه وسلم)) (۶)

دَ امام ابوداود رحمه الله نه علاوه باقی اصحاب اصول سته دَ هغه نه روايت اخستې دی. (۷) رحمه الله ورحمة واسعة.

۷- ابوسعيد الخدري: دامشهور صحابى ابوسعيد سعد بن مالك بن سنان رضی الله عنه دې، دَ دوی حالات ((كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن)) لاندې تيرشوی دی. (۸)

**قوله: قال: سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول: من صام يوما في سبيل الله بعد الله وجهه عن النار سبعين خريفا:** حضرت ابوسعيد رضی الله عنه فرمائی چه ما دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه اوريدلی دی هغوی فرمائيل چه چا دَ الله تعالى په لارکښې يوه ورځ روژه اوساتله، الله تعالى به دَ هغه مخ دَ دوزخ دَ اور نه اويا کاله لرې کړی.

**دَ مباعده نه څه مراد دی؟:** امام نووی رحمه الله په حديث باب کښې تاويل کولو سره فرمائی چه دَ مباعده نه مراددلته معافات دې يعنى دَ دوزخ نه به هغه ته خلاصې اومعافی ورکړې شی.(۹) او علامه عينى رحمه الله فرمائی که حديث شريف دَ هغې په خپله حقيقى معنى باندې محمول

---

۱) (طبقات الكمال (ج۲۹ص۲۷۷)-
۲) (شيوخ او تلامذه دَ تفصيل دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۹ص٤۵۵)-
۳) (تهذيب الكمال (ج۲۹ص٤۵۵)-
٤) (الكاشف للذهبى(ج۲ص۳۲۳)-
۵) (الثقات لابن حبان (ج۵ص٤۷۲)-
۶) (التاريخ الكبير (ج۸ ص۷۷) رقم (۲۲۲۹) وتهذيب الكمال (ج۲۹ص٤۵۶)-
۷) (الكاشف للذهبى(ج۲ص۳۲۳)-
۸) (كشف البارى (ج۲ص۸۲)-
۹) (شرح النووى على مسلم(ج۱ص۳۶٤)-

كړيشى نو بيا هم څه بدى نشته، كه حقيقةً د اوياؤ كالو مسافت مراد واخستې شى او دا اوونيلې شى چه د دې سړې مخ به واقعةً د دوزخ نه اويا كاله لرې كولې شى. (۱)

**دَ دوزخ نه به رژوه دار لرې كولې شى كه دَ هغه مخ:** بيا په حديث شريف كښې دا راغلى دى چه دَ روژه دار مخ به دَ دوزخ نه دَ اوياؤ كالو برابر په مسافت باندې لرې وى، بعض نورو طرق(۲) كښې دَ روژه دار دَ لرې كولو ذكر دې؟ دَ دې ظاهرى تعارض دوه جوابونه دى:

① ((وجه)) نه مراد ذات دې لكه چه په قرآن كريم كښې ارشاد دې ﴿كل شئ هالك إلا وجهه﴾(۳) او دلته په اتفاق سره ((وجه)) نه ذات مراد دې په دې صورت كښې به معنى هم يوه شى.

② ((وجه))نه دَ دې حقيقى معنى مراد ده او مطلب دا دې چه صرف مخ به دَ دوزخ نه لرې كولې شى، خودَ دې مطلب دا هم نه دې چه دَ هغه په بدن پورې به دَ دوزخ اُور لګى بلكه ((وجه)) تخصيص بالذكر دَ وجه نه دا دې چهٔ دَ روژې دَ وجه نه سرى ته تنده لګى او دَ تندې ځائ مخ دې ځكه چه دَ تندې نه خړوبوالې دَ مخ په ذريعه كيږى. (۴) ((خريف)) په اردو كښې موسم خزان ته وائى ليكن مراد دلته كال دې، ځكه چه كال بغيردَ خزان نه نه وى او دا دَ كنايهٔ دَ قبيل نه دې. (۵)

او دَ خريف تخصيص بالذكر په وجه حافظ صاحب دا بيان فرمائى چه په دې موسم كښې دَ ميوو راغونډونه كولې شى او هغه دَ ونونه راكوزولې شى نو په دې وجه دا دَ كال دَ ټولونه بهترين موسم دې. (۶)

**په رواياتوكښې اختلاف او په هغې كښې تطبيق او ترجيح:** په رواياتوكښې دَ دوزخ نه لريوالې او ابعاد په موده كښې اختلاف موندلې شى. په روايت باب كښې دَ اوياؤ كالو ذكر دې او په نسائى شريف(۷)كښې حضرت عقبه بن عامر اوطبرانى كښې حضرت عمروبن عبسه(۸) اوعبدالله بن سفيان رضي الله عنهم (۹) په رواياتوكښې دَ سلو كالو ذكر دې. ابن عدى (الكامل) كښې دَ حضرت انس رضي الله عنه حديث نقل كړيدې په هغې كښې دَ پنځو سوو كالو عدد دې (۱۰)

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۴)-
۲) (سنن النسائى كتاب الصيام باب ثواب من صام يوما فى سبيل الله عزوجل..... رقم (۲۲۴۷، ۲۲۵۱)-
۳) (القصص:۸۸)-
۴) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۴)-
۵) (حواله بالا-
۶) (فتح البارى (ج۶ص۴۸)-
۷) (سنن النسائى كتاب الصيام باب ثواب من صام يوما فى سبيل الله عزوجل وذكر الاختلاف فيه على سفيان الثورى رقم (۱۱۵۶)-
۸) (مجمع الزوائد للثيثمى (ج۳ص ۱۹۴)-
۹) (حواله بالا-
۱۰) (الكامل لابن عدى (ج۲)-

دغه شان طبرانی (المعجم الصغیر) کښې دَ حضرت ابوالدرداء (۱) او حضرت جابر(۲) نه او امام ترمذی دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه یو حدیث روایت کړیدې دَ هغې الفاظ دا دی: ((جعل الله بینه وبین النار خندقا کما بین السماء والأرض)) (۳) ابن عساکر دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړیدې په هغې کښې دَ اووسوو کالوذکر دې(۴) او هم ابن عساکر دَ حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه ((ألف سنة)) الفاظ هم نقل کړی دی. (۵)

اوس لکه څنګه چه تاسو اوکتل چه په دې روایاتوکښې سخت اختلاف موندلې شی او شارحینو دَ دې اختلاف دَ لرې کولودَپاره مختلف قسم جوابونه ارشاد فرمائیلې دی:

① علامه عینی فرمائی اصل دا دې چه دا اوکتلې شی چه دَ چا طریق دَ تولونه زیات صحیح دې نو په هغې کښې اصح روایت دَ اویاؤ کالووالا دې کوم چه امام بخاری په حدیث باب کښې ذکر کړې او دا ځکه چه دا متفق علیه حدیث دې.

② دا جواب هم ورکولې شی چه الله تعالی خپل حبیب صلی الله علیه وسلم ته اول اقل المسافاة علم ورکړو او بیا درجه په درجه په دې علم کښې زیاتوالې اوکړو.

③ دَ دې خبرې هم احتمال دې چه د دې اختلاف بناء دَ روژه دارو په اختلاف باندې مبنی وی، دَ روژې دَ کمال صحت او نقصان په اعتبار سره چه دَ څه کسانو روژه په هر اعتبار سره کامله وی او دَ بعضو ناقصه وی. (۶)

④ امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه دلته په حدیث باب کښې دَ سبعین لفظ دَ تکثیر دَ پاره راغلی دې یعنی عدد که هرڅه وی خو مراد ترې کثرت دې، هم دا حافظ ابن حجر هم راجح ګرځولې دې. (۷)

**تنبیه:** حدیث باب دَ سهیل بن ابی صالح نه نقل کولوکښې دَ تلامذؤ اختلاف دې ځکه چه اکثررواة حدیث باب دَ ((سهیل بن أبی صالح، نعمان بن أبی عیاش عن أبی سعید الخدری)) په طریق سره نقل کړیدې. لکه چه زمونږ په وړاندې حدیث کښې دی، لیکن امام شعبه دا ((سهیل بن أبی صالح عن صفوان بن یزید عن أبی سعید)) په طریق سره نقل کړیدې. لکه چه په نسائی شریف (۸) کښې راغلی دی، دَ دې دَ پاره ممکن دی چه دَ سهیل بن ابی صالح په دې حدیث کښې دوه

---

۱) (مجمع الزوائد للنیثمی (ج۳ص ۱۹٤)-
۲) حواله بالا-
۳) (الجامع للترمذی أبواب الجهاد باب ماجاء فی فضل الصوم فی سبیل الله رقم (۱۶۲٤)-
٤) (عمدة القاری (ج۳ص ۱۳٤)-
۵) (تهذیب دمشق الکبیر لابن عساکر (ج۲ص ٤۵۰)-
۶) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۳۵)-
۷) (فتح الباری (ج۵ص٤۸)-
۸) (سنن النسائی کتاب الصیام باب ثواب من صام یوما فی سبیل الله عزوجل رقم ۲۲٤۹)-

شیخان وی، نعمان بن ابی عیاش او صفوان بن یزید. (۱)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب نه دَ حدیث مناسبت بالکل واضح دې.(۲) په ترجمه کښې دَصوم فی سبیل الله ذکردې اوپه حدیث کښې هم همدغه ذکر دی.

## ۳۷-بَاب: فَضْلِ النَّفَقَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ دې ترجمة الباب لاندې دَ الله تعالی په لارکښې دَ خرچ کولو فضیلت بیانوی. او ((سبیل الله)) نه مراد جهاد دې. لیکن علامه عینی رحمه الله فرمایی چه مناسب همدغه ده چه دا عام اوګرولی شی که هغه جهاد وی که بل څه عبادت څکه چه لفظ ((سبیل الله)) عام دې. (۳)

[۲۶۸۶] حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(۴) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ دَعَاهُ خَزَنَةُ الْجَنَّةِ كُلُّ خَزَنَةِ بَابٍ أَيْ فُلُ هَلُمَّ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ ذَاكَ الَّذِي لَا تَوَى عَلَيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ [۳۰۴۴]

## تراجم رجال

۱- سعد بن حفص: دا ابومحمد سعد بن حفص الطلحی الکوفی رحمه الله دې. (۵)

۲- شیبان: دا ابومعاویه شیبان بن عبدالرحمن النحوی رحمه الله دې.

۳- یحیی: دا ابوالنضر یحیی بن ابی کثیر الطائی الیمانی رحمه الله دې. (۶)

۴- ابوسلمه: دا دَحضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خوئ، ابوسلمه عبدالله رحمه الله دې. دَ ده حالات ((کتاب الإیمان باب صوم رمضان احتسابا من الإیمان)) لاندې راغلی دی.(۷)

۵- ابوهریره رضی الله عنه: داجلیل القدرحافظ وفقیه ومکثرصحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې، دَ دوی حالات هم((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) په ذیل کښې بیان کړیشوی دی. (۸)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص ۴۸) وعمدة القاری (ج ۱۴ص ۱۳۴)-
۲) (عمدةالقاری (ج ۱۴ص ۱۳۴)-
۳) (عمدةالقاری (ج ۱۴ص ۱۳۵)-
۴) (قوله: ابوهریرة رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی کتاب الصوم باب الریان للصائمین-
۵) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوری کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین....-
۶) (دَ شیبان او یحیی دَ حالاتودَ پاره اوګوری کتاب العلم باب کتابة العلم-
۷) (کشف الباری (ج ۲ص ۳۲۳)-
۸) (کشف الباری (ج ۱ص ۶۵۹)-

**قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: من أنفق زوجين في سبيل الله دعاه خزنة الجنة، كل خزنة باب: أي فل، هلمّ:** حضرت ابوهریره رضي الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه روایت کوي چه هغوی فرمائی کوم سړي چه جوړه څیزونه دَ الله تعالی په لارکښې خرچ کوی هغه به دَ جنت دَ هرې دروازې دربان راغواړي چه اې فلانکی راشه.

دَ ((زوج)) اطلاق په یو هم کیږی او په دوو هم، خو دلته په متعین توګه باندې هم یو مراد دې.(۱)

او دلته ئې دا خودلې دی که یوسړې هر قسم دوه څیزونه یا دَ دوو مختلفو قسمونو دوه مختلف څیزونه دَ الله تعالی په لارکښې خرچ کوی دَ جنت دَ هرې دروازې دربان به هغه راغواړي چه راشه.

علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَ انفاق زوجین نه مراد دا دې که چرې هغه سره دَیو قسم نه یو څیز دې او هغې سره دوئم هم ملاؤکړی او هغه جوړه کړی، مثلاً که هغه سره یو درهم دې او یو ئې ورسره بل ملاؤکړو اوخرچ ئې کړل، دغه شان یوه وسله ده او جوړه ئې جوړه کړی او خرچ ئې کړی. (۲)

((كل خزنة باب)) کښې قلب شویدې دا په اصل کښې ((خزنة كل باب)) دې.(۳)

**دَ "ای فل" تحقیق نحوی:** ((أی فل)) کښې ((أی)) حرف نداء دې او((فل)) په اصل کښې ((فلان)) دې بغیر دَ ترخیم دینه الف او نون حذف کړیشویدې. دَ منادی کیدلو په صورت کښې به دا ((یافل)) لوستلې شی. (۴)

او علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه ((فل)) ((فلان)) نه مرخم دې لکه چه ((حارث)) نه ((یاحارِ)) دې. (۵)

خو علامه عینی رحمه الله په دې باندې رد کولو سره فرمائی چه دا مرخم نه دې بلکه یو بل لغت دې کوم کښې چه فلان ته دَ آواز په وخت فل وائی ګنی که دَ ترخیم قاعده په دې کښې جاری شوې وې نو دا به فُلاً وو، والأمربعكس ذلك. (۶)

**قوله: قال أبوبكر: يارسول الله، ذلك الذي لاتوى عليه:** حضرت ابوبکر رضي الله عنه اووئیل یا رسول الله! کوم ته چه څه خساره او ضیاع نشته.

مطلب دا چه هغه ته خو به دَ هیڅ قسم خسارې او هلاکت اندیښنه نه وی څوک چه به دَ هرې

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۳۹)-
۲) (أعلام الحدیث (ج۲ص۱۳۷۳)-
۳) (فتح الباری (ج۶ص۴۹)-
٤) (عمدة القاری (ج١٤ص١٣٥)-
۵) (أعلام الحدیث (ج۲ص۱۳۷۲)-
۶) (عمدة القاری (١٤ص١٣٥)-

دروازې نه راغوښتې شي که په يوه داخل نشي نو په بله به داخل شي. (۱)

**توى يتوى توىً** معنى دَ هلاك او ضائع كيدلو ده اودَ دې باب ضرب دې. نو كه چرې مال ضائع شي نو وئيلې شي ((توى المال)) (۲)

**قوله:** فقال النبي صلى الله عليه وسلم: أني لأرجو أن تكون منهم: نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل زما اميد دې چه هم ته به دَ هغوى نه ئې (څوك چه به دَ جنت دَ هرې دروازې نه راغوښتې شي)

په دې كښې دَ ابوبكر صديق رضی الله عنه دَ فضيلت ذكر دې او دَ دې تفصيل به (كتاب المناقب) كښې راشي.

**دَ رواياتو په مينځ كښې تعارض اودَ هغې حل:** دا حديث په (كتاب الصوم) كښې هم تيرشو، هلته دا دى چه دَ هر عمل خاوند به دَ هغې دَ خپلې خپلې دروازې نه راغوښتلې شي، اصحاب الصلاة به دَ صلاة والا دروازې نه، اصحاب الجهاد دَ جهاد دَ دروازې نه، اصحاب الصوم دَ صوم دَ دروازې (باب الريان) نه اواصحاب النفقات به دَصدقې والا دروازې نه راغوښتلې شي (۳) خود باب په روايت كښې دا راغلى دى چه انفاق في سبيل الله كونكى به د جنت د هرې دروازے نه رابللې شي نو په دواړو روايتونو كښې ښكاره تعارض دې.

علامه سندهى رحمه الله د دې تعارض دَ پاره درې حله بيان كړى دى:

① دَ باب روايت وهم دې، دَ يوراوى نه سهوه شويده او دَ دې قسم رواياتوكښې هم دغه ظاهر ده.

② انفاق في سبيل الله كونكې خو به جنت كښې داخليږى دَ ((باب الصدقة)) نه څكه چه دې هم دَ دې دَ اهل نه دى، كمافي رواية كتاب الصوم خو دَ دې سره به دَ هغه دَ اعزاز او تكريم دَ پاره دَ جنت دَ هرې دروازې دربان هم هغه رابلى او دَ هغه خواهش به همدغه وى چه دا سرې دې دَ هغه په دروازه جنت كښې ورداخل شي كمافي رواية الباب-

③ دواړه احاديث په دوو مختلف وختونوكښې نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلى دى. اول حضور ﷺ دَ(كتاب الصوم) حديث بيان كړو ليكن دَ هغې نه پس حضور ﷺ ته دَ وحى په ذريعه دَ دونم حديث په سلسله كښې اوخودلې شو نو هغوى عليه السلام هغه هم بيان كړه، په دې وجه اوس څه تعارض پاتې نشو. (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث مطابقت ترجمة الباب سره واضح دې او دَ

---

۱ ) (أعلام الحديث (ج ۲ ص ۱۳۷۲)-
۲ ) ( أعلام الحديث (ج ۲ ص ۱۳۷۲)-
۳ ) (صحيح البخارى (ج ۱ ص ۲۵٤) كتاب الصوم باب الريان للصائمين رقم (۱۸۹۷)-
٤ ) (صحيح البخارى بحاشية السندى (ج ۲ ص ۱٤٤) دارالمعرفة، بيروت-

بیانولو محتاج نه دي (۱) د انفاق فی سبیل الله ترجمه ده او حدیث باب کښې د دې فضیلت بیان شویدې.

[۲۶۸۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ (۲) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ إِنَّمَا أَخْشَى عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِي مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ بَرَكَاتِ الْأَرْضِ ثُمَّ ذَكَرَ زَهْرَةَ الدُّنْيَا فَبَدَأَ بِإِحْدَاهُمَا وَثَنَّى بِالْأُخْرَى فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَوَيَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ فَسَكَتَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا يُوحَى إِلَيْهِ وَسَكَتَ النَّاسُ كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِهِمْ الطَّيْرَ ثُمَّ إِنَّهُ مَسَحَ عَنْ وَجْهِهِ الرُّحَضَاءَ فَقَالَ أَيْنَ السَّائِلُ آنِفًا أَوَخَيْرٌ هُوَ ثَلَاثًا إِنَّ الْخَيْرَ لَا يَأْتِي إِلَّا بِالْخَيْرِ وَإِنَّهُ كُلَّمَا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ مَا يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ إِلَّا آكِلَةَ الْخَضِرِ كُلَّمَا أَكَلَتْ حَتَّى إِذَا امْتَلَأَتْ خَاصِرَتَاهَا اسْتَقْبَلَتْ الشَّمْسَ فَثَلَطَتْ وَبَالَتْ ثُمَّ رَتَعَتْ وَإِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ وَنِعْمَ صَاحِبُ الْمُسْلِمِ لِمَنْ أَخَذَهُ بِحَقِّهِ فَجَعَلَهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَنْ لَمْ يَأْخُذْهُ بِحَقِّهِ فَهُوَ كَالْآكِلِ الَّذِي لَا يَشْبَعُ وَيَكُونُ عَلَيْهِ شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ [ر:۸۷۹]

## تراجم رجال

۱- محمد بن سنان: دا ابوبکر محمد بن سنان باهلی بصری عوقی رحمه الله دې. د ده حالات «کتاب العلم باب من سئل علما وهو مشتغل فی....» لاندې تیرشوی دی. (۳)

۲- فلیح: دا فلیح بن سلیمان بن ابی المغیره رحمه الله دې.

۳- هلال: دا هلال بن علی بن اسامه قرشی مدنی رحمه الله دې. د دواړو حالات هم د «کتاب العلم» په مذکوره باب کښې بالترتیب تیرشوی دی. (۴)

۴- عطاء بن یسار: دا ابومحمد عطاء بن یسار هلالی مدنی رحمه الله دې. د ده حالات «کتاب الایمان باب کفران العشیر وکفر دون کفر» لاندې بیان کړیشوی دی. (۵)

۵- ابوسعید الخدری رضی الله عنه: دا مشهور صحابی حضرت ابوسعید سعد بن مالك بن سنان خدری رضی الله عنه دې. د ده حالات «کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن» لاندې تیرشوی دی.

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۳۵)-

۲ ) قوله: عن أبی سعید الخدری رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی کتاب الجمعة باب استقبال الناس الإمام إذا خطب-

۳ ) (کشف الباری (ج۳ص۵۳)-

٤ ) (کشف الباری (ج۲ص ۲۰٤)-

۵ ) (کشف الباری (ج۲ص ۲۰٤)-

تنبيه: دَ حديث مكمل تشريح ((كتاب الزكاة باب الصدقة على اليتامى)) لاندې تيره شويده.
دَ حديث د ترجمة الباب سره مطابقت: دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت دَ حديث په دې جمله كښې دې. ((فجعله فى سبيل الله)) (۱)

## ۳۸- بَاب: فَضْلِ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا أَوْ خَلَفَهُ بِخَيْرٍ

دَ ترجمة الباب مقصد: دلته دَ ترجمة الباب امام بخارى رحمه الله دوه اجزاء ذكر كړى دى (۱) من جهز غازيا (۲) خلفه بخير-

دَ اول جز وضاحت دا دې چه يو سړې بل سړى ته دَ جهاد سامان وركوى، دَ وسلې انتظام كوى، دَ لارې توښه وغيره وركوى.

او دَ دويم جز وضاحت دا دې چه دَ مجاهد شاته دَ هغه دَ كور دَ خلقو دَ خيريت معلومات كوى، دَ هغوى خبر وغيره اخلى، دَ هغوى دَ ضرورتونو انتظام كوى. نو دې دواړو سړو ته هم دَ مجاهد او مقاتل فى سبيل الله غوندې ثواب ملاوېږى. هم دغه دَ ترجمې مقصد دې چه امام بخارى رحمه الله دَ دې دواړو فضيلت بيانوى. (۲)

[۲۶۸۸] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِي بُسْرُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۳) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِخَيْرٍ فَقَدْ غَزَا

## تراجم رجال

۱- ابومعمر: دا عبدالله بن عمر بن ابى الحجاج منقرى رحمه الله دې، دَ "مقعد" په لقب باندې مشهور دې، دَ ده حالات ((كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب)) په ذيل كښې راغلى دى. (۴)

۲- عبدالوارث: دا عبدالوارث بن سعيدبن ذكوان تميمى عنبرى رحمه الله دې. دَ ده حالات هم په مذكوره باب كښې بيان شوى دى. (۵)

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۶) وفتح البارى (ج ۶ص ۴۹)-
۲) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۳۶)-
۳) (قوله: زيد بن خالد رضى الله عنه: الحديث أخرجه مسلم كتاب الإمارة باب فضل إعانة الغازى فى سبيل الله بمركوب وغيره، وخلافته فى أهله بخير رقم (۴۹۰۲) وأبوداؤد كتاب الجهاد باب مايجزى من الغزو رقم (۲۵۰۹) والترمذى فضائل الجهاد باب ما جاء فيمن جهز غازيًا رقم (۱۶۲۸-۱۶۳۱) والنسائى كتاب الجهاد باب فضل من جهز غازيًا رقم (۳۱۸۲-۳۱۸۳) وابن ماجه أبواب الجهاد باب من جهز غازيًا رقم (۲۷۵۹)
۴) (كشف البارى (ج ۳ص ۳۵۶)-
۵) (كشف البارى (ج ۳ص ۳۵۸)-

٣- حسين: دا حسين بن ذكوان المعلم بصرى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې تيرشوى دى.(١)

٤- يحيى: دا ابوالنضر يحيى بن ابى كثير الطائى اليمامى رحمه الله دي. (٢)

٥- ابوسلمه: دا ابوسلمه عبدالله بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دي. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب صوم رمضان إيمانا واحتسابا من الإيمان)) لاندې نقل كړېشوى دى.(٣)

٦- بسربن سعيد: دابسربن سعيد المدنى مولى ابن الحضرمى رحمه الله دي. (٤)

٧- زيدبن خالد: دا مشهور صحابى حضرت زيدبن خالدجهنى رضي الله عنه دي. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب الغضب في الموعظة والتعليم إذا رأى مايكره)) لاندې تيرشوى.(٥)

**قوله:** أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: من جهز غازيا في سبيل الله فقد غزا، ومن خلف غازيا في سبيل الله فقد غزا: حضرت زيدبن خالد جهنى رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي چه كوم سړي مجاهد فى سبيل الله ته دَ جهاد سامان وركړى نو داسې ده لكه چه ده پخپله جهاد اوكړو او څوك چه دَ مجاهدفى سبيل الله شاته دَ هغه دَ كور ښه خيال اوساتى نو لكه چه هغه پخپله جهاد اوكړو.

**دَ تجهيز نه څه مراد دي؟**: دَ تجهيز معنى چاته دَ سفر اسباب او سامان وركولو ده.كه زيات وى اوكه كم، تر دې چه چاته تار او ستن وركول هم په دې كښې داخل دى. طبرانى (٦) دَ حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت نقل كړيدې،

((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: مامن أهل بيت لايغزو منهم غاز أو يجهز غازيا بسلك أو إبرة أو ما يعدلها من الورق أو يخلفه في أهل بخير إلا أصابهم الله بقارعة قبل يوم القيامة)) (٧)

كه دَ يوې كورنئى نه يو كس هم غزوه كښې شركت اونكړى يا دَ يوغازى دَ ستنې تار يا دَ دې برابر چاندئى سره تيارى اونكړى يا دَ هغه دَ بال بچ تپوس پوښتنه اونكړى نو دَ قيامت نه وړاندې وړاندې به الله تعالى هغه په څه مصيبت كښې اخته كړى.

**يواشكال اودَ هغې جواب**: ليكن دلته يو اشكال پيدا كيږى او هغه دا چه امام بن ماجه رحمه الله دَ

---

١ ) ( كشف البارى (ج٢ص ٤)-
٢ ) (دَ دوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب العلم باب كتابة العلم-
٣ ) ( كشف البارى (ج٣ص٣٢٣)-
٤ ) (دَ دوى حالات كتاب الصلوة باب الخوخة والممر فى المسجد لاندې تيرشوى-
٥ ) ( كشف، البارى (ج٣ص ٥٤٤)-
٦ ) (مجمع الزوائد (ج٥ص ٢٨٤) وقال العينى (ج ١٤ص١٣٧) وإسناده ضعيف-
٧ ) (عمدة القارى ( ١٤ص١٣٧)-

حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه نه يو روايت نقل كړيدې د هغې الفاظ دا دى ((سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من جهز غازيا حتى يستقل كان له مثل أجره حتى يموت أو يرجع)) (۱) ماد رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى كه چا يو غازى ته د سفر مكمل سامان او اسباب وركړل نود هغه دپاره به هم د دغه غازى په شان ثواب وى تر دې چه هغه غازى به يا شهيدشى يا به واپس راشى.

په حديث شريف كښې د ((يستقل)) الفاظ دى او د استقلال معنى خو پوره تيارى كول دى، د دې د پاره دا ونيل چه صرف ستن او تار وركول هم تجهيز دې صحيح نه دى.

علامه عينى رحمه الله د دې دوه جوابونه ارشاد فرمائيلى:

① حديث واثله بن الاسقع ضعيف دې په دې وجه د احتجاج قابل نه دې.

② اوكه د دې صحت اومنلې شى نو بيا هم د هغه سرې په حق كښې وعيد دې چه د سره د هيڅ قسمه سامان د مجاهد سره امداد اونكړى په دې وجه هيڅ تعارض نشته. (۲)

**قوله: فقد غزا:** په تحقيق سره هغه هم جهاد اوكړو.

ابوحاتم ابن حبان رحمه الله فرمائى چه مطلب دا دې چه ده ته به هم د غازى اجر وركولې شى، سره د دې چه هغه په جهاد كښې شركت نه دې كړې.(۳) بيا د يو بل طريق نه بسرين سعيد رحمه الله نه دا روايت نقل كړې: ((... كتب له مثل أجره، غير أنه لاينقص من أجره شئ...))(۴)

علامه كشميرى صاحب رحمه الله فرمائى چه يوكارخو يا يو سرې پوره كوى يا د هغې د پوره كولو د پاره د يوپوره ډلې ضرورت وى، اوس كه هغه كار د يو ډلې په كار كولوسره پوره كيږى نو په هغې كښې به هر يو كس ته د فاعل اجر حاصل وى كه هغه په دې كار كښې پخپله شريك وى يا په څه طريقه ئى هم په دې كښې معاونت كړى لكه جهادچه دې. دا يو داسې امر دې د څه دپاره چه د مجاهدينو د جماعت هم ضرورت دې چه اوجنګيږى، دغه شان د هغوى دپاره د داسې سړو هم ضرورت وى چه د دې مجاهدينو معاونت اوكړى او د هغوى شاته د هغوى په غيرموجودګئ كښې د هغوى د كور مال حال خبرواخلى او د هغوى د پالنې خيال اوساتى. په دې وجه معاونت كونكې اود مجاهدينو شاته د هغوى د كور مال حال خبراخستونكې هم د الله تعالى په لاركښې د جهاد كونكى په شان دې.

خلاصه دا شوه چه چا په جنګ كښې پخپله حصه واخستله او چا چه په څه طريقه سره هم د هغه مجاهد معاونت اوكړو دا ټول په جهاد كښې مشترك دى، دا صحيح ده چه د اخلاص، سخاوت نفس، مال د خرچ كولو او ځان قربانى كولو په وجه به د هغه په اجركښې كمى زياتى اعتباركښې به اختلاف وى.(۵)

---

۱) (أخرجه امام ماجه أبواب الجهادباب من جهز غازيا رقم (۱۸۵۸)-

۲) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۷) وقد وردت أحاديث كثيرة فى تجهيز الغازى وخلفه بخير. فمن أراد الاطلاع عليهافلينظر عمدة القارى (ج ۱۴ص ۱۳۷)-

۳) (الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان(ج۸ص ۷۱)-

۴) (حواله سابقه (ج۸ص ۷۲) كتاب السير ذكر البيان بأن المجهز إنما يأخذكحسنات الغازى... رقم (۴۶۱۴)

۵) (فيض البارى (ج۳ص ۴۲۷)-

**فائده** امام طبری رحمه الله فرمائی: ((وفیه من الفقه أن کل من أعان مؤمنًا علی عمل بر فللمُعین علیه أجر مثل العامل، وإذا أخبر الرسول أن من جهز غزیا فقد غاز، فکذلك من فطّر صائمًا أو قوّاه علی صومه، وکذلك من أعان حاجاً (۱) أو معتمرا بما یتقوّی به علی حجه أو عمرته حتی یأتی ذلك علی تمامه فله مثل أجره)) (۲)

یعنی دَ مذکوره حدیث نه دا فائده مستنبط شوه چه یو سړی دَ یو مؤمن په نیک کار کښې امداد اوکړې نو هغه معاون او ناصر ته به هم دَ هغې په شان اجر حاصل وی، او چه کله نبی کریم ﷺ دَ دې خبرې خبر ورکړوکه چا مجاهد له دَ جهاد سامان ورکړو نو لکه چه هغه پخپله هم جهاد اوکړ و، دغه شان که چا په یو روژه دار باندې روژې ماتې اوکړو یا دَ روژې په سلسله کښې ئې هغه له تقویت ورکړو، دغه شان چا چه دَ یو حاجی معتمر په څه داسې څیز سره امداد اوکړو چه هغه دَ حج یا عمرې سر ته رسولو دَ پاره په هغې قادر شو نو دې امداد کونکی ته به دَ جهاد، روژې، حج او یا عمرې برابر اجر ورکولې شی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. ((من جهز غازیا)) دَ ترجمة الباب دَ اول جزء مطابق او (ومن خلف غازیا) دَ دې دَ دوئم جز مطابق دې. (۳)

[۲۶۸۹] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ (۴) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَدْخُلُ بَيْتًا بِالْمَدِينَةِ غَيْرَ بَيْتِ أُمِّ سُلَيْمٍ إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِ فَقِيلَ لَهُ فَقَالَ إِنِّي أَرْحَمُهَا قُتِلَ أَخُوهَا مَعِي

## تراجم رجال

۱- **موسی بن اسماعیل:** دا ابوسلمه موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((بدء الوحی)) دَ څلورم حدیث په ذیل کښې تیر شوی دی. (۵)

۲- **همام:** دا همام بن یحیی الشیبانی رحمه الله دې. (۶)

۳- **اسحاق بن عبدالله:** دا اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه انصاری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب من قعد حیث ینتهی به المجلس، ومن رأی فرجة الحلقة فجلس فیها)) لاندې تیرشوی دی. (۷)

---

۱) (إشارة إلی ماورواه الرافعی، انظر تلخیص الجبیر (ج ٤ ص ۱۰۱)-
۲) (شرح ابن بطال (ج۵ ص ۵۱)-
۳) (عمدة القاری (ج ١٤ ص ١٣٦)-
٤) (قوله: أن أنس رضی الله عنه: الحدیث أخرجه مسلم کتاب فضائل الصحابة باب من فضائل أم سُلیم رضی الله عنها.....رقم (٦٣١٩)-
۵) (کشف الباری (ج ۱ ص ٤٣٣)-
٦) (دَدوی دَحالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب ترک النبی صلی الله علیه وسلم والناس الأعرابی
۷) (کشف الباری (ج ۳)-

۴- انس: دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دی. دَ ده حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه)) په ذیل کښې راغلی.(۱)

**قوله: أن النبي صلى الله عليه وسلم لم يكن يدخل بيتا بالمدينة غير بيت أم سليم إلا على أزواجه:** حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چه نبی علیه السلام په مدینه منوره کښې به دَ حضرت ام سلیم رضی الله عنها دَ کورنه علاوه او دَ خپلو بیبیانو دَ کور نه علاوه به یو کورکښې هم نه داخلیدلو.

مطلب دا دې چه که حضور صلی الله علیه وسلم به دَ خپلو ازواج مطهرات دَ کورونو نه علاوه دَ چا کور ته تلو، نو هغه هم صرف دَ ام سلیم رضی الله عنها کره دَ بل چا کورته به نه تلو.

**دخول نه مراد څه دی؟:** ابن التین او امام حمیدی رحمه الله فرمائی دَ دخول نه مراد علی الدوام دخول دې یعنی اکثر به دَ حضرت ام سلیم رضی الله عنها کره تلو، ګنی نو مخکښې دا خبره راغلې ده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دَ ام حرام رضی الله عنها کره هم تشریف اوړلو. (۲)

**دَکثرت دخول علت او وجه:** ابن التین رحمه الله فرمائی چه دَ دې کثرت دخول وجه یا خو دا ده چه شهید دَ هغې سکه رور وو یا دا چه دَ ام حرام رضی الله عنها په نسبت هغوی ته زیات غم رسیدلې وو.(۳)

لیکن حافظ صاحب فرمائی دَ دې تاویل هډو ضرورت نشته چه ام سلیم رضی الله عنها ته دَ ام حرام رضی الله عنها په مقابله کښې دَ رور دَ شهادت غم زیات وو ځکه چه دا دواړه په یو کور کښې اوسیدلې او په دې کښې هیڅ منع نشته چه دوه خوئیندې په یوکور کښې اوسیږی او کور هم لوئ وی. دَ دخول نسبت کله د ام سلیم رضی الله عنها طرف ته وکړیشو او کله دَ ام حرام رضی الله عنها طرف ته. (۴)

**حضرت ام سلیم رضی الله عنها:** حضرت ام سلیم – بضم السین وفتح اللام – دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه مور ده اودَ هغې په نومونوکښې مختلف اقوال دی. سهلی، رمیلی، رمیثی، ملیکه، غمیضاء او رمضاء دَ هغې نومونه شمیرلې شوی دی. (۵)

**((فقیل له)):** نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته اووئیلې شو.

حافظ رحمه الله فرمائی ((لم أقف علی اسم القائل)) (۶) ماته دَ هغه قائل نوم معلوم نشو. او مطلب دا دې چه حضور صلی الله علیه وسلم به ام سلیم کره ولې په کثرت سره تشریف اوړی؟(۷)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص ٤)-
۲) (عمدة القاری (ج ١٤ ص١٣٨) وفتح الباری (ج۶ص ٥١)-
۳) (حواله بالا-
٤) (فتح الباری (ج۶ص ٥١)-
۵) (عمدة القاری (ج ٤ ۱ص١٣٨) دَهغې دَ نورو حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب العلم باب الحیاء فی العلم
۶) (فتح الملهم (ج۶ص ٥١)-
۷) (شرح القسطلانی(ج۵ص ۶۶)-

**قوله: فقال: إني أرحمها قتل أخوها معي:** نو حضور ﷺ اوفرمائيل زه په هغې باندې ترس خورم چه د هغې رور زما سره قتل شويدې.
دا دَ سائل دَ سوال جواب اوام سليم رضي الله عنها كره په كثرت سره دَ تللوعلت دې چه زه ام سليم رضي الله عنها كره په دې وجه په كثرت سره خم چه دَ هغې رور ماسره قتل شويدې او زه په هغې ترس خورم او د هغې دَ غم كمولو كوشش كوم.
**يواشكال اودَ هغې جواب:** علامه كرماني رحمه الله دلته يو اشكال پيش كړيدې چه يو پردئى ښځې كره دَ تللو دَ پاره چه دَ هغې رور قتل شوې څنګه سبب او علت جوړيدې شى؟
دَدې اشكال جواب وركولو سره علامه كرماني رحمه الله اوفرمائيل چه د حضور ﷺ په حق كښې دا پردئى ښځه نه وه بلكه دَ هغوى رضاعى يا نسبى ترور وه، په دې وجه به حضور ﷺ هغې كره په كثرت سره تشريف اوړلو. (۱)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى مناسب همدغه ده چه په حديث كښې داذكر شوې علت راجع اوګرځولې شى چه زه په دې ترس خورم. (۲)
او پاتې شوه پردئى ښځې كره دَ تلو خبره نو ((باب الدعاء بالجهاد والشهادة.....))
په ذيل كښې تيره شويده. چه دا دَ حضور ﷺ خصوصيت ووچه دَ هغوى دَ پاره خلوة بالاجنبيه جائز وو.(۳)
او ((أخ)) نه مراد حرام بن ملحان رضي الله عنه دې، او دې په بئر معونه كښې شهيد شوې وو.(۴)
**يوسوال اودَ هغې جواب:** اوس دلته يو سوال دا پيداكيږى چه حرام بن ملحان رضي الله عنه خو په بئر معونه كښې شهيد شوې وواو بئر معونه كښې حضور ﷺ پخپله شريك نه وو نو بيا حضور ﷺ دا څنګه اوفرمائيل ((قتل أخوها معي؟))
دَ دې جواب دا دې چه ما كومه سريه دَ بئر معونه طرف ته ليګلې وه په هغې كښې هغه شريك وو او هم په دغه دوران كښې شهيد شو نو ((معي: أي مع عسكري أوعلى أمري وفي طاعتي))
په معنى كښې دى ((كما قال الحافظ ابن حجر، والعيني، والكرماني رحمة الله عليهم)) (۵)
**دَ علامه قرطبى رحمه الله يو تسامح:** دلته علامه قرطبى رحمه الله نه يو تسامح شويدې، هغوى فرمائى ((قتل أخوها معه في بعض حروبه، وأظنه يوم أحد)) يعنى دَ حضرت ام سليم رضي الله عنها رور حضرت حرام بن ملحان رضي الله عنه او رسول الله ﷺ سره په يو جنګ كښې قتل شوې دې او زما خيال دا دې چه دا غزوه "غزوه احد" وو. حافظ ابن حجر رحمه الله په دې ردكولو سره فرمائى ((ولم يصب في ظنه))

---

۱ ) (شرح الكرماني (ج۱۲ص۱۳۳)-
۲ ) (فتح الباري (ج۶ص۵۱)-
۳ ) (شرح للقسطلاني (ج۵ص۶۶) وانظر أيضاً باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء..... من هذاالكتاب
٤ ) (عمدة القاري (ج ١٤ص١٣٨)-
۵ ) (فتح الباري (ج۶ص۵۱) وعمدة القاري (ج ١٤ص١٣٨) وشرح الكرماني (ج١٢ص١٣٣)-

يعني د قرطبي رحمه الله دا گمان صحيح نه دي. (١)
دهغه دشهادت واقعه به ان شاء الله (كتاب المغازي) كښې دغزوه بئرمعونه لاندې راځي.(٢)
**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ابن المنير اسكندراني رحمه الله فرمائي :
چه د حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې قول كښې دې. ((أوخلفه في أهله)) هغه داسې چه د مجاهد د كور د خيال ساتلو فضيلت دلته عام دې، كه د هغه په ژوند كښې وی يا كه د هغه د شهادت نه پس وی، نو نبی كريم ﷺ به د ام سليم رضي الله عنها زيارت او خيال ساتنه د هغې د زړه د تسلئي دپاره كوله او د دې تسلئي علت حضور ﷺ په دې الفاظو كښې بيان كړو چه د هغې رور ماسره قتل شويدې. د حضور ﷺ په دې فعل كښې د مجاهد د شهادت نه پس د هغه د كور او بال بچ خيال ساتل دی او دا د حضور ﷺ د حسن اخلاق نه دی. (٣)
خو علامه عيني رحمه الله د علامه اسكندراني دا قول "قيل" سره تعبير كړيدې او فرمائي ((لايخلوهذا، من بعض التكلف، ولكن له وجه أقرب من هذا...)) (٤)
او هغه چه څه اقرب ګرځولی دی د هغې خلاصه دا ده چه يو غازی ته د جهاد اسباب وركول او د هغه نه پس د هغه د كور بال بچ خيال ساتل د غازی غايت اكرام دې او نبی ﷺ د دې ترغيب هم وركړې.
نو د ام سليم رضي الله عنها د رور په شهادت د هغې د تسلئي د پاره په كثرت سره هغې كره تلل د دې خبرې طرف ته اشاره كوی چه كله د غازی د مړی او د كور د خلقو اكرام ښه او د اجر خبره ده نو د ژوندی غازی د كور بال بچ اكرام په طريقه اولی ډيره ښه او د اجر خبره ده.(٥)
**د علامه ګنګوهي رحمه الله يو لطيفه توجيه:** علامه ګنګوهي رحمه الله حديث شريف ترجمة الباب سره منطبق كولو د پاره بالكل يو ځان له توجيه ذكر كړيده.
هغه فرمائي چه ممكن دې چه د حضرت ام سليم رضي الله عنها د رور په غير موجودګئی چه هغه جهاد له تلې وی او د هغه د كور د خلقو خبر اخستل ئی كولو، او په دې وجه امام بخاری دا روايت دلته ذكر كړې وی. (٦)

## ٣٩-باب: التَّحَنُّطِ عِنْدَ الْقِتَالِ

**د "تحنط" معنى:** تحنط د باب تفعيل نه مصدر دې د دې معنى د حنوط كولو ده، او حنوط د يو مركب خوشبو نوم دې چه د مړی د پاره استعمالولې شی. (٧)

---

١ ) (فتح الباري (ج٦ص٥١)-
٢ ) (كشف البارى كتاب المغازى (ص٢٦٥)-
٣ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٣٨)-
٤ ) ( عمدة القارى (ج١٤ص١٣٨)-
٥ ) ( عمدة القارى (ج١٤ص١٣٨)-
٦ ) (لامع الدرارى (ج٧ص٢٢٢)-
٧ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٣٨)-

بیا ازهری رحمه الله فرمائی ((يدخل فيه الكافور وذريرة القصب والصندل والأحمر والأبيض)) په دې کښې :
کافور خوشبودار پوډر او سره او سپین صندل هم داخل دی. (۱)
اودبعض نوروحضراتو وینا ده حنوط مړو سره خاص دی د ژوندو د استعمال خوشبو ته حنوط نشی وئیلې. (۲)
**د ترجمة الباب مقصد** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی چه سړې د جنګ میدان ته خی نو حنوط وغیره دې استعمالوی نو خی دې.(۳)
**د حنوط په استعمال کښې حکمتونه:** علامه ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه سړې کله د جنګ د میدان طرف ته رخ اوکړی نو خوشبووغیره دې استعمال کړی ځکه چه کیدیشی الله تعالی هغه د شهادت په اوچته مرتبه باندې سرفراز کړی نو هغه به خوشبو سره خښنولې شی او چه کله د هغه د الله جل جلاله سره ملاقات وې نو دې به پاك صفا او خوشبودار وی. (۴)
اوعلامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی د سلف صالحینو عادت او طریقه دا وه چه کله به هغوی د جنګ تیاری کوله نو حنوط به ئې هم استعمالول د دې ویرې چه د قتل کیدو نه پس د هغه بدن متغیر نشی ځکه چه د جنګ وخت وی او په جنګونوکښې اکثر خښولو کښې تاخیر هم کیږی.
په پخوانې زمانه کښې به اهل مصر د خپلو مړو په بدنونوباندې دوایانې مږلې دې د پاره چه د هغوی بدنونه خراب نشی..... بیا دا داروګان نه ملاویدل او د حنوط استعمال په خلقو کښې باقی پاتې شو.(۵)
اوبله دا هم چه دا دخوشحالئی موقع ده اود خوشحالئی په موقعوباندې خوشبو استعمالولې شی نودې د پاره دجنګ په موقع خوشبو استعمالول پکار دی.
په دې کښې یو حکمت دا هم دې که سړې په بدن باندې تیل وغیره اولګوی اولازشی نو سستی به نه وی سړې تازه وی، که کافر ئې اونیسی هم نو د هغه نیول به په آسانئی سره مضبوط نه وی.

[۲۶۹۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ قَالَ وَذَكَرَ يَوْمَ الْيَمَامَةِ قَالَ أَتَى أَنَسٌ (۶) ثَابِتَ بْنَ قَيْسٍ وَقَدْ حَسَرَ عَنْ فَخِذَيْهِ وَهُوَ يَتَحَنَّطُ فَقَالَ يَا عَمِّ مَا يَحْبِسُكَ أَنْ لَا تَجِيءَ قَالَ الْآنَ يَا ابْنَ أَخِي وَجَعَلَ يَتَحَنَّطُ يَعْنِي مِنَ الْحَنُوطِ ثُمَّ جَاءَ فَجَلَسَ فَذَكَرَ فِي الْحَدِيثِ انْكِشَافًا مِنَ النَّاسِ فَقَالَ هَكَذَا

---

۱) (شرح القسطلانی (ج۲ص۳۸۹)-
۲) (حواله بالا-
۳) ( عمدة القاری (ج۱۴ص۱۳۸) والفتح (ج۶ص۵۱)-
۴) (لامع الدراری )ج۷ص ۲۲۴)-
۵) (فیض الباری(ج۳ص ۴۲۹)-
۶) (قوله: أنس: الحديث انفرد به البخاری انظر تحفة الأشراف (ج۱ص۱۲۲)-

عَنْ وُجُوهِنَا حَتّى نُضَارِبَ الْقَوْمَ مَا هٰكَذَا كُنَّا نَفْعَلُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا عَوَّدْتُمْ أَقْرَانَكُمْ رَوَاهُ حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن عبدالوهاب: دا ابومحمد عبدالله بن عبدالوهاب حجبى بصرى رحمه الله دي.(۱)

۲- خالد بن حارث: دا ابوعثمان خالد بن حارث بن سليم بصرى رحمه الله دي. (۲)

۳- ابن عون: دا عبدالله بن عون بن ارطبان مزنى بصرى رحمه الله دي. دَ دوى حالات ((كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: رب مبلغ أوعى من سامع)) لاندې تيرشوى. (۳)

۴- موسى بن انس: دا حضرت انس رضي الله عنه خوئ. دَبصرې قاضى موسى بن انس رحمه الله دي.(۴)

۵- انس: دا دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم خادم حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې تيرشوى دى. (۵)

۶- ثابت بن قيس: دا خطيب الانصار حضرت ثابت بن قيس بن شماس بن مالك بن امرئ القيس المدنى رضي الله عنه دي، ابومحمد او ابوعبدالرحمن دَ ده كنيت دي.(۶)
دَ هغوى دَ موربى بى نوم هندالطائيه ده. (۷) او عبدالله بن رواحه او عمره بنت رواحه رضي الله عنهما دَ هغه دَ مورشريك خور او رور دى. (۸)
دي دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه دَ حديث روايت كوى.اودَ هغه نه دَ هغه ځامن محمد، قيس، اسماعيل، حضرت انس بن مالك او ابن ابى ليلىٰ رحمهم الله وغيره دَ حديث روايت كوى. (۹)

**فضائل او مناقب:** دَ هغوى بې شميره فضائل اومناقب دى. هغوى په ((خطيب الرسول صلى الله عليه وسلم)) سره يادولې شى لكه څنګه چه حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه ته ((شاعر الرسول صلى الله عليه وسلم)) وئيلې شى.(۱۰)

---

۱) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب-
۲) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الصلاة باب فضل استقبال القبلة-
۳) (كشف البارى (ج۳ص۲۲٤)-
٤) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب المكاتب باب المكاتب ونجومه وفى كل سنة نجم....-
۵) (كشف البارى (ج۲ص٤)-
۶) (تهذيب الكمال (ج٤ص۳۶۸) والثقات لابن حبان (ج۳ص٤۳)-
۷) (سير أعلام النبلاء (ج۱ص۳۰۹)-
۸) (حواله بالا-
۹) (دَ شيوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج٤ص۳۶۹)-
۱۰) (أسد الغابة (ج۱ص٤۵۱)-

امام زهری ﷫ (۱) نه روایت دي چه د بنو تمیم یو وفد د رسول ا لله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو: دَ هغوی خطیب اودریدو او دَ خپل قوم بعض ځیزونه ئی دَ فخر په انداز کښې پیش کړل نو حضور ﷺ حضرت ثابت بن قیس ﷜ ته اوفرمائیل ((قم فأجب خطیبهم)) دی اودریدو او ډیر په بلاغت او فصاحت ئی دَ الله تعالی حمد او ثنا بیان کړه، په دې سره رسول الله ﷺ او نور مسلمانان ډیر خوشحاله شو.

دې سره دَ غزوه احد اودَ دې نه پس په ټولو غزواتو کښې شریك شوې وو. (۲)

حافظ ابن حجر ﷫ ته په دې کښې وهم شوې چه اول خو حافظ صاحب په (تهذیب التهذیب) کښې دااوفرمائیل ((شهد بدرا والمشاهد کلها)) (۳) لیکن په (اصابه) کښې ئې دَ دې تردید اوکړو. لیکی ((لم یذکره أصحاب المغازی فی البدریین، وقالوا: أول مشاهده أحد، وشهد مابعدها)) (۴) اوراجح دا دی چه دا بدری صحابی نه دې. (۵) نبی کریم ﷺ هغه ته دَ جنت زیرې ورکړې وو. د حضرت انس ﷜ نه روایت دې:

((قال کان ثابت بن قیس بن شماس خطیب الأنصار، فلما نزلت هذه الآیة: ﴿یأیها الذین آمنوا لاترفعوا أصواتکم فوق صوت النبی﴾ قال: أنا الذی کنت أرفع صوتی فوق صوت رسول الله صلی الله علیه وسلم، فأنا من أهل النار، فذُکِر ذلك لرسول الله صلی الله علیه وسلم، فقال: بل هو من أهل الجنة)) (۶)

حضرت انس ﷜ فرمائی چه حضرت ثابت بن قیس بن شماس دَ انصارو خطیب وو کله چه دا آیت مبارك نازل شو ﴿یأیها الذین آمنوا لاترفعوا أصواتکم فوق صوت النبی﴾ نو وئی وئیل چه هم زه هغه یم چه خپل آواز دَ نبی کریم ﷺ په آواز باندې اوچتوم، نو هم زه دَ دوزخیانونه یم، د دې خبرې ذکر خلقورسول الله ﷺ ته اوکړوهغوی اوفرمائیل هغه دَ اهل جنت نه دې.

دغه شان یو ځل نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو:

((نعم الرجل أبوبکر، نعم الرجل عمر، نعم الرجل أبوعبیدة بن الجراح، نعم الرجل أسید بن حضیر، نعم الرجل ثابت بن قیس بن شماس، نعم الرجل معاذ بن جبل، نعم الرجل معاذ بن عمرو بن الجموح))

بهترین سړې ابوبکر دې، بهترین سړې عمر دې، بهترین سړې ابوعبیده بن جراح دې، بهترین سړې اسید بن حضیردې، بهترین سړې ثابت بن قیس بن شماس دې، بهترین سړې

---

۱ ) السیرة النبویة لابن هشام (ج۲ص۵٦۲) وسیر أعلام النبلاء (ج۱ص۳۱۲) والطبقات الکبیری (ج۱ص۲۹٤)

۲ ) (أسد الغابة (ج۱ص٤۵۱) والإستیعاب (ج۱ص۱۲۵)-

۳ ) (تهذیب التهذیب (ج۲ص۱۲)-

٤ ) (الإصابة (ج۱ص۱۹۵)-

۵ ) (تهذیب الکمال (ج٤ص۳۷۱)-

٦ ) (رواه البخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الاسلام رقم (۳٦۱۳) وکتاب التفسیر باب ﴿یأیها الذین آمنوا لا ترفعوا أصواتکم فوق صوت النبی﴾ رقم(٤۸٤٦) ورواه مسلم کتاب الإیمان باب مخافة المؤمن أن یحبط عمله رقم (۳۱٤-۳۱۷)-

معاذبن جبل دی، بهترین سړی معاذ بن عمرو بن جموح دی. (رضی الله عنهم أجمعين)
يوځل نبی کريم ﷺ هغوی ته اوفرمائيل:

((ياثابت، أما ترضى أن تعيش حميداً، وتقتل شهيداً، وتدخل الجنة)) (۱)

په دې کښې حضور ﷺ حضرت ثابت رضي الله عنه ته د دريو څيزونو زيرې ورکړو: ① د هغه ژوندبه ښه تيريږی ② هغه به د شهادت په اوچته مرتبه سرفراز کيږی ③ او په جنت کښې به داخليږی، او هم داسې اوشو کوم چه نبی کريم ﷺ فرمائيلې وو، راوی وائی ((فعاش حميداً، وقتل شهيداً يوم مسيلمة الكذاب)) (۲)

**شهادت:** حضرت ثابت بن قيس د حضور اکرم ﷺ د پيشنګوئې مطابق شهادت اوموندلو، جنګ يمامه کوم چه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په زمانه کښې د مسيلمه کذاب خلاف شوې وو په هغې کښې دوی د انصارو امير وو او هم په دې جنګ کښې هغه ښه په بهادرئی سره د جنګيدلو نه پس شهيد شو (۳) او هم دا واقعه په حديث باب کښې ذکر کړېشويده.

**يوه عجيبه واقعه:** امام حاکم په مستدرك(۴) کښې، امام طبرانی په معجم الکبير (۵) کښې، علامه ابن عبدالبر الاستيعاب (۶) اوعلامه الاثيرالجزری په اسدالغابه(۷) کښې د هغوی سره متعلق يوه عجيبه واقعه ذکر کړيده.

په جنګ يمامه کښې د مسيلمه کذاب او بنو حنفيه خلاف چه کوم لښکر حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ترتيب کړې وو په هغې کښې حضرت ثابت هم شامل وو. کله چه د دواړو لښکروخپل مينځ کښې مقابله اوشوه نو په دې کښې مسلمانان روستو شو،اوداسې درې ځل اوشو. چه کله حضرت ثابت او حضرت سالم مولی ابوحذيفه رضي الله عنهما دا صورت حال اوکتلو نو د هغوی نه برداشت نه شوه او وئی فرمائيل ((ماهکذا کنا نقاتل مع رسول الله صلى الله عليه وسلم)) او هغه حضراتو په زمکه کښې يوه کنده اوکنستله او په هغې کښې ئې خپل ځان قيد کړو او جنګيدل تردې چه دواړه شهيدان شول.

د حضرت ثابت د شهادت نه پس حضرت بلال رضي الله عنه (۸) هغه په خوب کښې اوليدو چه فرمائيلې. زه هغه بله ورځ شهيدشوې وم نو د مسلمانانو يو سړې زما خواکې تيريدو او هغه

---

۱) (رواه الحاکم فی مستدرکه وصحيحه الذهبی (ج۳ص ۱۳٤) وإسناده قوی، لکنه مرسل کما قاله الحافظ فی الفتح (ج۶ص ۶۲۱)-
۲) (المستدرک للحاکم (ج۳ص ۲۳٤)-
۳) (أسدالغابة (ج۱ص ٤۵۱)والإستيعاب (ج۱ص۱۲۵) والمستدرک (ج۳ص۲۳۳)-
٤) (المستدرک للحاکم (ج۳ص ۲۳٤)-
۵) (المنجم الکبير للطبرانی (ج۲ص ۷۰) رقم (۱۳۲۰)-
۶) (الإستيعاب (ج۱ص۱۲۵)-
۷) (أسدالغابة (ج۱ص ٤۵۲)-
۸) (وأفادالواقدی أن رائه المنام هو بلال المؤذن. فتح الباری (ج۶ص ۵۲)-

زما زغره راويستله او لاړو، هغه د لښكر په آخره كښې دې او د هغه سرې اس په رسئ ترلې څرن كوى، هغه د زغرې د پاسه د پټولودپاره څه كانړى اچولى دى او په هغه كانړو نى كجاوه ايخودې ده. بيائې هم په خوب كښې حضرت بلال ﷺ ته اوفرمائيل چه د لښكر امير حضرت خالدبن وليد ﷺ له لاړشه او هغه ته اووايه چه زما زغره راپيداكړى.

بيائې اوفرمائيل چه كله مدينې منورې ته تاسو واپس شئې نود رسول الله ﷺ خليفه حضرت ابوبكر صديق ﷺ له لاړشه او هغه ته اوښايه چه د فلانكى په ما باندې دومره قرض دې او په فلانكى باندې زما دومره پيسې دى او زما فلانكې غلام آزاد دې(١) بيائې اوفرمائيل چه ته دا د دروغو خوب مه ګڼړه چه بيا زما دا ټولې خبرې ضائع شى.

حضرت بلال ﷺ زر راپاسيدو او خالدبن وليد ﷺ ته ئى خوب بيان كړو، هغه چه د زغرې باره كښې كوم ځائ خودلې وو هم هلته پرته وه او صورت حال بالكل هم هغه وو كوم چه حضرت ثابت ﷺ په خوب كښې ذكر كړې وو. بيا چه كله مدينې ته واپس شو نو د حضرت ابوبكر صديق ﷺ متعلق د امورو ذكر ئى اوكړو نو حضرت ابوبكر ﷺ د وفات نه پس د هغه وصيت نافذكړو.

او دا د هغه خصوصيت دې، راوى فرمائى ((فلانعلم أحداً بعد ما مات أنفذ وصيته غير ثابت بن قيس بن شماس رضى الله عنه)) (٢)

د حره په جنګ كښې د هغه درې ځامن شهيدان شوې وو. (٣)

د امام بخارى نه علاوه امام ابوداود او امام نسائى ﷺ (اليوم والليلة) كښې د هغه نه احاديث اخستې دى.(۴)

او په بخارى شريف كښې د هغه صرف يو روايت دې. (۵)

**قوله: قال: وذكريوم اليمامة:** فرمائى چه د يمامه د جنګ د ورځې ذكر ئى اوكړو.

د بخارى شريف په اكثرو نسخوكښې د واو سره ((وذكر)) او واوحاليه دې او د حموى په نسخه كښې بغير د واو ((ذكر)) دې. (۶)

**قوله: يمامه:** يمامه د يمن يو ښاردې چه د طائف نه د دوو مرحلو په فاصله واقع دې. په دې مقام د تاريخ اسلام مشهور جنګ (حرب اليمامه) شوې وو. دا د ربيع الاول دولسم هجرى واقعه ده. يو طرف ته مسلمانان ووچه د نبي كريم ﷺ د ختم نبوت د حفاظت كولو د پاره راغلى وو او بل طرف ته مسيلمه كذاب او د بنو حنفيه خلق ووچه د مسيلمه كذاب د

---

١ ) (قال الحافظ: وسمى الواقدى فى كتاب الردة من وجه آخرمن أوصى بعنقه وهم: سعد وسالم. حواله بالا-
٢ ) (وانظر أيضاً لهذه القصة مجمع الزوائد )ج٩ص٣٢٢) والإصابة (ج١ص١٩۵)-
٣ ) (سيرأعلام النبلاء (ج١ص٣١٣)-
٤ ) (تهذيب الكمال (ج٤ص٣٧١)-
٥ ) (خلاصة الخزرجى(ص۵٧)-
۶ ) (عمدةالقارى (ج١٤ص١٣٩)وفتح البارى (ج۶ص۵١)-

دروغو په نبوت نې ايمان راوړې وو. حضرت ابوبكر رضي الله عنه د هغوى د سربنكته كولو د پاره د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه په مشرئى كښې يو لښكر اوليګلو. د يمامه په مقام باندې د دې دواړو لښكرو مقابله اوشوه. د سخت جنګ نه پس د حضرت وحشى بن حرب رضي الله عنه او ابو دجانة سماك بن حرب رضي الله عنه په لاسونو مسيلمه كذاب دوزخ ته اورسيدو او د هغه ۲۱ زره سړى قتل كړېشو او د مسلمانانو د طرف نه تقريباً پنځه سوه كسان شهيدان شو. (۱) په كوموكښې چه اويا انصارى صحابه كرام رضوان الله عليهم اجمعين وو. (۲)

**قوله**: قال: أتى أنس ثابت بن قيس، وقد حسر عن فخذيه: حضرت موسى بن انس رحمه الله فرمائى چه حضرت انس رضي الله عنه حضرت ثابت رضي الله عنه كره راغلو او په دې وخت كښې هغه خپلې دواړه پنډئى كولاؤكړې وې.

انس فاعل كيدو په وجه مرفوع او ثابت مفعوليت په وجه منصوب دې. (۳)

او ((وقد حسر...)) جمله حاليه ده، واو د حال دپاره دې. (۴) او د حسر معنى كشف ده اودا د باب ضرب نه دې. (۵)

**ران ستر دې كه نه؟**: د حديث په جمله كښې ((وقد حسر عن فخذيه)) نه په ظاهره دا معلوميږى چه فخذ ستر نه دې ګنى كه فخذ ستر كښې داخل وې نو حضرت ثابت رضي الله عنه به د هغې نه كپړه نه اخواكوله.

ظاهريه او امام بخارى رحمه الله چه د فخذ ستر كيدلو قائل نه دې هغه د حديث باب سره په خپل مذهب باندې استدلال كريدې. (۶)

اوس كه د حضرت ثابت رضي الله عنه مسلك همدغه وى چه د ظاهريه دې يعنى فخذ (پنډئى) ستر كښې داخل نه دى نود حديث باب د توجيه هډو ضرورت نشته (۷)

اوكه د هغه مذهب هغه نه وى چه د ظاهريه دې نو علامه ګنګوهى رحمه الله د حديث باب توجيه دا فرمائيلې ((وقد علم ذلك بإخباره، لأنه رآه حاسرا فخذيه)) يعنى حضرت انس رضي الله عنه ته د هغه د پنډئى د كولاويدلو علم د هغه د خودلونه پس حاصل شو، نه چه هغه په ستر كولاويدلو سره اوليده.(۸)

مولانا حسين على رحمه الله د حضرت ګنګوهى رحمه الله نه د حديث باب توجيه دا نقل كړيده چه

---

۱) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٣٩) وانظر أيضًا البداية والنهاية (ج ٦ص ٣٢٣-٣٢٧)-
۲) (عمدة القارى (ج ١٤ضص ١٤١)-
۳) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٣٩)-
۴) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا-
۶) (فتح البارى (ج ۶ص ۵۲) ولامع الدرارى (ج ۷ص ٢٢٤)-
۷) (تعليقات لامع الدرارى (ج ۷ص ٢٢٤)-
۸) (لامع الدرارى (ج ۷ص ٢٢٤)-

حضرت انس رضي الله عنه د ثابت بن قيس په خدمت کښې حاضر شو او په دروازه کښې اودريدو وئې وئيل ((ياعم، مايحبسك أن لاتجيء؟)) بيا حضرت ثابت رضي الله عنه دروازې له راغلو او حضرت انس رضي الله عنه سره ئې څه وخت ناسته اوکړه او بيا دَ جهاد دَ پاره لاړل. (۱)

مطلب دا شو چه حضرت انس دننه داخل شوې نه وو بلکه هم په دروازه کښې ئې په ولاړه خبرې اوکړې. اوس دا لازم نه راځی چه حضرت انس رضي الله عنه دَ حضرت ثابت رضي الله عنه کولاؤشوې پندنۍ ليدلې وې.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه په دې کښې دَ فخذ دَ عورت او ستر نه کيدو څه دليل نشته، ځکه چه دَ صحابی فعل په مختلف فيه مسئله کښې حجت نه دې. (۲)

**قوله: وهو يتحنط، فقال: ياعم، مايحبسك أن لاتجيء؟:** دې وخت کښې هغه په حنوط لګولو کښې مشغول وو نو حضرت انس رضي الله عنه اووئيل اې تره تاځه څيز رابندوی چه ته نه راځې؟

((هويتحنط)) جمله هم حاليه ده او ثابت بن قيس رضي الله عنه دَحضرت انس رضي الله عنه نه مشر وودغه شان دَهغوی تعلق دَ قبيله خزرج سره وو، په دې وجه حضرت انس رضي الله عنه هغه دَ تره سره مخاطب کړو. (۳)

علامه ابن الاثير مبارك الجزری رحمه الله دَ ((وهويتحنط)) په تشريح کښې فرمائی ((أی يستعمل الحنوط فی ثيابه عند خروجه إلى القتال كأنه أراد بذلك الاستعداد للموت، وتوطين النفس عليه بالصبر على القتال)) (۴) يعنی هغه دَ جنګ دَ پاره راوتلوکښې په خپلو کپړو حنوط(خوشبو) لګوله. لکه چه دَ هغه مقصد دَ دې نه دَ مرګ تياری اودَ جنګ په وخت کښې نفس په صبر باندې ثابت قدم ساتل وو.

**دَ"ان لاتجيء" دَ اعراب تحقيق:** په دې کښې دوه اعراب دی يو نصب، دوئم رفع.

دَ نصب په صورت کښې((ألا))مشدددې او((لا)) زائده دې،دَ دې دَ پاره ((تجيء)) به منصوبوی.

دَ رفع په صورت کښې ((ألا)) کښې ((لام)) مخففه دې په دې وجه به مرفوع وی (۵)

**قوله: قال: الآن يا ابن أخي، وجعل يتحنط. يعني من الحنوط:** حضرت ثابت رضي الله عنه اوفرمائيل وراره! اوس دراوځم او بيا په حنوط لګولوکښې مشغول شو.((يعني من الحنوط)) الفاظ تفسيريه دی چه په حديث کښې کوم ((يتحنط)) واردشويدې هغه دَ حنوط نه مشتق دې.

---

۱) (تقرير الجنجوهی على الصحيحين (ص۷۱)-

۲) (فيض الباری(ج۳ص۴۲۹) وانظر أيضًا التعليقات على فيض الباری المسمى البدر الساری-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۵۱) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱۳۹)-

٤) (النهاية فی غريب الحديث والأثر(ج۱ص ٤۵۰)-

۵) (شرح الكرمانی (ج۱۲ص۱۲٤) وعمدة القاری(ج۱٤ص۱۳۹)-

اودَ دې تفسير وجه دا ده چه چاته دا وهم اونشي چه دا دَ ((حنطة)) نه مشتق دې. (۱)
علامه کرمانی ﷫ دَ دې تفسيری جملې وجه دا بيانوی چه څوك په دې لفظ كښې تصحيف كولو سره دَ حناطى سره مشتق اونه ګرځوی. (۲) دَ كوم معنى چه دَ غنمو خرڅولو ده. (۳)
بيا حضرت ثابت ﷛ راغلو او كيناستو نو حضرت انس ﷛ په خبروكښې دَ خلقو دَ تښتيدو ذکر اوکړو. يعنى حضرت ثابت بن قيس ﷛ حضرت انس ﷛ له راغلو اوكيناستو نو حضرت انس ﷛ دَ هغه خلقو دَ خپل ځائ پريخودو ذکر اوکړو او دا چه په مسلمانانو كښې دَ شكست آثار پيدا كيږی. (۴)

**قوله:** **فقال: هكذا عن وجوهنا حتى نضارب القوم:** نو حضرت ثابت ﷛ اوفرمائيل چه زمونږ دَ مخې نه اخوا شه چه مونږ په دښمن باندې حمله اوکړيشو.

**((هكذا عن وجوهنا))** معنى ده ((افسحوالى)) يعنى ماته لار راكړه او زما دَ مخې نه اخواشه. (۵)
علامه کرمانی اوعلامه عينى ﷫ دا جمله دَحضرت انس ﷛ قول ګرځولې دې او معنى ئې دا بيان كړيده چه زمونږ او دَ دښمن خلق يو بل سره يوځائ شو او مونږ دښمن بغيردَ څه منع كونكې نه دَ وژلو قابل شو. (۶)

**قوله:** **ماهكذا كنا نفعل مع رسول الله صلى الله عليه وسلم:** مونږ چه به كله دَ رسول الله ﷺ سره وو نو داسې به مو نه كول
مقصد دا چه كله به مونږ رسول الله ﷺ سره په غزواتوكښې وو نو اولنى صف به خپل ځائ نه پريخودلو بلكه په خپل ځائ به كلك ولاړوو او دوئم صف به دَ هغوى امداد كولو. (۷)

**((بئسما عودتم أقرانكم)):** تاسو خپل حريف ته خراب عادت اچولې دې.

دَ اكثروپه روايت كښې هم داسې دى خو دَمستملى په روايت كښې**((عودكم أقرانكم))** راغلې دې.
په اول صورت كښې**((أقرانكم))** به منصوب وى اودَمستملى دَروايت مطابق به مرفوع وى.(۸)

**((أقران))** دَ**((قرن))** جمع ده او**((قرن–بكسر القاف وسكون الراء))** – معنى مقابل يا بهادرئى كښې بې مثاله دې. او **بفتح القاف وسكون الراء** چه وى نو معنى يوشان عمر دې.(۹)

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۵۲)-
۲) (شرح الكرمانى (ج۱۲ص ۱۳۴)-
۳) (القاموس الوحيد(ص۳۸۳)مادة حنطا-
۴) (شرح الكرمانى (ج۱۲ص ۱۳۴) وشرح القسطلانى (ج۵ص۶۷)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۵۲)-
۶) (شرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۳۴) وعمدة القارى (ج۱۴ص ۱۴۰-
۷) (شرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۳۴)-
۸) (فتح البارى (ج۶ص۵۲) وعمدة القارى(ج۱۴ص۱۴۰) شرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۳۴)-
۹) (حواله بالا ومختار الصحاح (ص۵۳۲) مادة قرب-

او د حضرت ثابت رضی الله عنه مقصد د دې قول نه د شکست خوړونکو توبیخ کول دی چه تاسو خپل مقابل ته خراب عادت ورکړو تاسو اوتښتیدئې د څه په وجه چه دښمن په تاسو دلچسپي اخلي. (۱) یا ستاسو ملګرو تاسو ته د روستو کیدو خراب عادت درکړو چه ستاسو د پاره نقصانی او د دښمن د پاره فائده مند دې.

**فقه الحدیث:** د حدیث باب نه یو څو فائدې مستنبط کیږي.

① په دې کښې د دې خبرې دلیل دې چه د الله تعالی د پاره خپل ځان په هلاکت کښې اچول صحیح او جائز دی. او په دې معامله کښې سختوالې هم کولې شی او که په رخصت باندې قادر وی نو په دې باندې عمل نه کول هم صحیح دی. (۲)

② مړی د پاره خوشبولګول سنت دی ځکه چه د مرګ نه پس به د مړی واسطه د فرښتوسره وی. (۳)

③ په حدیث باب کښې د جنګ نه تښتیدونکو د پاره سخت توبیخ بیان کړې شویدې. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت ((وهویتحنط)) او ((وجعل یتحنط یعنی من الحنوط)) کښې دې. (۵)

**قوله:** رواه حماد عن ثابت عن أنس: حماد دا حدیث ((عن ثابت عن أنس)) په طریق سره روایت کړیدې.

**د مذکوره تعلیق تخریج:** امام بخاری رحمه الله چه دا کوم تعلیق ذکر کړیدې دا ابن سعد (۶)، طرانی (۷)، حاکم (۸)، او برقانی رحمهم الله په خپل مستخرج کښې موصولاً ذکر کړیدې. (۹)

**د مذکوره تعلیق مقصد:** حافظ صاحب فرمائي چه امام بخاری رحمه الله د دې تعلیق په ذریعه د اصل حدیث طرف ته اشاره کړیده خو سره د حماد د روایت چه د موسی بن انس روایت نه اتم اواکمل دې خو هغوی د موسی بن انس مختصر حدیث ذکرکړو او د اصل حدیث طرف ته ئې تعلیقاً اشاره اوکړه. (۱۰)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۵۲) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱٤۰)-.

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۵۲)-.

۳) (حواله بالا (ص۵۳)-.

٤) (حواله بالا-.

۵) (عمدة القاری (ج۱٤ ص۱۳۹)-.

۶) (کذاقاله الحافظ فی افتح (ج۶ص۵۱) ولکن لم أجده مع تتبعی الشدید عند ابن سعد-.

۷) (المعجم الکبیر للطبرانی (ج۲ص۶۵) رقم (۱۳۰۷)-.

۸) (المستدرک للحاکم (ج۳ص۲۳۵) کتاب معرفة الصحابة ذکر مناقب ثابت بن قیس.....-.

۹) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۳۹) وفتح الباری (۶ص۵۲) وتغلیق التعلیق (ج۳ص٤۳۶)-.

۱۰) (فتح الباری (ج۶ص۵۲)-.

## ۴۰- بَاب: فَضْلِ الطَّلِيعَةِ

دَ طليعة مطلب: "طليعة" دَ لښکر هغه حصې ته وائي چه دَ انتظاماتو او دَ حال احوال دَ تحقيق دَ پاره دَ لښکر نه وړاندې ليګلې شي، دا اسم جنس دې او دا حصه مختصر هم کيدېشي او لويه هم، په يو سړی باندې هم مشتمل کيدېشي او په دوو هم. (۱)

دَ ترجمة الباب مقصد: امام بخاری رحمه الله دلته دَ طليعة فضيلت بيانوی چه دَ دې عمل ډير فضيلت دې نو که چاته دا ذمه وارى ورکړېشي نو هغه له شاته کيدل نه دى پکار. (۲)

[۲۶۹] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَأْتِينِي بِخَبَرِ الْقَوْمِ يَوْمَ الْأَحْزَابِ قَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا ثُمَّ قَالَ مَنْ يَأْتِينِي بِخَبَرِ الْقَوْمِ قَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَحَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ [۲۶۹۲، ۲۸۳۵، ۳۸۸۷، ۶۸۳۳]

## تراجم رجال

۱- ابونعيم: دا مشهور محدث ابونعيم الفضل بن دَ کين کوفی رحمه الله دې. دَ ده حالات «کتاب الإيمان باب فضل من استبرأ لدينه» لاندې تيرشوی. (۴)

۲- سفيان: دا امام حديث، تبع تابعی ابوعبدالله سفيان بن سعيد الثوری رحمه الله دې دَ ده حالات «کتاب الإيمان باب علامة المنافق» لاندې راغلی دی. (۵)

۳- محمد بن منکدر: دا محمد بن منکدر بن عبدالله المدنی رحمه الله دې. (۶)

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۵۲) وعمدة القارى (۱۴ص۱۴۱) والنهاية فى غريب الحديث (ج۳ص۱۳۳)-

۲) (وعمدة القارى (۱۴ص۱۴۱)-

۳) (قوله: عن جابر رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا (ج۱ص۳۹۹) كتاب الجهاد والسير باب هل يبعث الطليعة وحده؟ رقم (۲۸۴۷) و(ج۱ص۴۲۰) باب السير وحده رقم (۲۹۹۷) و(ج۱ص۵۲۷) كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم باب مناقب الزبير بن العوام رضى الله عنه رقم (۳۷۱۹) و(ج۲ص۵۹۰) كتاب المغازى باب غزوة الخندق وهى الأحزاب رقم (۴۱۱۳) و(ج۲ص۱۰۷۸) كتاب أخبار الآحاد باب بعث النبى صلى الله عليه وسلم رقم (۷۲۶۱) ومسلم كتاب فضائل الصحابة باب نمن فضائل طلحة والزبير رضى الله عنهما رقم ۶۲۴۲) والترمذى كتاب المناقب باب ماجاء فى مناقب الزبير بن العوام رضى الله عنه باب قوله صلى الله عليه وسلم كالذى قبل مع قصة فيه رقم (۳۷۴۵) وابن ماجه كتاب السنة باب فصل الزبير رضى الله عنه رقم (۱۲۲)-

۴) (كشف البارى (ج۲ص۶۶۹)-

۵) (حواله بالا (ص۲۷۸)-

۶) دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله عليه وسلم وضوءه على المغمى عليه-

۴- جابر: دا مشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله ﷛ دې. (۱)

**قوله**: قال: قال النبي صلى الله عليه وسلم: من يأتيني بخبر القوم؟ يوم الأحزاب: حضرت جابر ﷛ فرمائی چه نبی کریم ﷺ دَ غزوه احزاب په ورځ اوفرمائيل چه ماله به د قوم خبر څوك راوړى؟

دَ قوم نه مراد دلته دَ بنوقريظه يهوديان دى اودَ يوم الاحزاب نه جنګ خندق مراد دې. په دې جنګ کښې دَ قريشو نه علاوه نور قبائل هم مسلمانانو سره دَ جنګ دَ پاره راغلى وو او دَ مدينې يهوديانو دا معاهده ماته کړې وه کومه چه دَ هغوى اودَ نبى ﷺ په مينځ کښې شوې وه او دَ قريشو سره دَ مسلمانانو خلاف يوځائ شوى وو. (۲)

**قوله**: قال الزبير: أنا، ثم قال: من يأتيني بخبر القوم؟ قال الزبير: أنا: حضرت زبير بن عوام ﷛ اوفرمائيل چه زه، بيا نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه د قوم خبر به ماله څوك راوړى؟نو حضرت زبير ﷛ اووئيل زه.

**نبي کريم ﷺ څو ځل ترغيب ورکړو؟**: دَ حديث باب نه معلوميږى چه دَ نبى ﷺ او صحابه کرامو رضوان الله اجمعين په مينځ کښې سوال او جواب دوه ځل اوشو او دواړه ځل حضرت زبير ﷛ خپل نوم پيش کړو. خوامام نسائی ﷫ يوروايت نقل کړيدې. فرمائى چه:

((قال وهب بن كيسان: أشهد لسمعت جابر بن عبد الله ﷛ يقول: لما اشتد الأمر يوم بني قريظه، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من يأتينا بخبرهم؟ فلم يذهب أحد، فذهب الزبير، فجاء بخبرهم، ثم اشتد الأمر أيضًا، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: من يأتينا بخبرهم؟ فلم يذهب أحد، فذهب الزبير، ثم اشتد الأمر أيضًا، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: من يأتينا بخبرهم؟ فلم يذهب أحد، فذهب الزبير، فجاء بخبرهم، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أن لكل نبي حواريا، وإن الزبير حواري))- (۳)

حضرت وهب بن كيسان ﷫ فرمائى چه زه ګواهى ورکوم چه ما دَ حضرت جابر بن عبدالله ﷛ نه داسې اوريدلى چه دَ بنوقريظه په جنګ کښې کله معامله سخته شوه نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل موږ له به دَ هغوى خبر څوك راوړى؟ خو څوك هم لاړنه شو، نو حضرت زبير لاړو، دَ هغوى خبرئې راوړلو، بيا معامله نوره سخته شوه نو نبى کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو موږ له به دَ هغوى خبرڅوك راوړى؟ خوڅوك هم لاړنه شو هم حضرت زبير لاړو، بيا معامله په دريم ځل شدت اختيارکړو نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل موږ له به دَ هغوى خبرڅوك راوړى؟ نو هيڅ څوك لاړنشو هم حضرت زبيرلاړودَهغوى خبرئې راوړو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل تحقيق دَ هر نبى يو حوارى وى او زما حوارى زبير ﷛ دې.

---

۱) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب باب من لم يرالوضوء إلامن الخرجين.....-

۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۴۱)-

۳) (سنن النسائی الکبير (ج۵ص ۲۶۴) کتاب السير باب ذهاب الطليعة وحده، رقم (ج۳ص۸۸۴۳)-

نو په دې روايت کښې دا ذکر شو چه دا سوال جواب درې ځل شويدې او د بخاری شريف په روايت کښې اختصاردې. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی ((وفيه أن الزبير توجه إليهم ثلاث مرات)) (۱)

**ترغيب ئې په يوځائ ورکړو که مختلفو ځايونو کښې؟:** دغه شان د حديث باب نه دا هم معلوميږی چه د حضور او صحابه کرامو رضی الله عنهم د ترغيب ورکولو عمل هم په يومقام باندې شويدې، چه هغوی صلی الله عليه وسلم په يومقام باندې تشريف فرماوو او د صحابو نه ئې تپوس کولو چه ((من يأتينی بخبر القوم؟))

ليکن دا صحيح نه دی بلکه په دريو ځايونوکښې داسې شويدی چه نبی عليه السلام په دريو مختلفو مقاماتوکښې تپوس کړيدې او دريواړه ځل حضرت زبير رضی الله عنه وروړاندې شويدې او خپل ځان ئې پيش کړيدې. نو هم د سنن نسائی هغه روايت کوم چه مونږ اوس ذکر کړوبه دې دلالت کوی. (۲)

**د بنوقريظه دخبر راوړلودپاره کوم صحابی تلې وو؟:** علامه سراج الدين بن الملقن رحمه الله په ((التوضيح)) کښې د خپل استاذ حافظ فتح الدين يعمری رحمه الله نه دلته يو اشکال نقل کړيدې چه په اهل مغازی کښې خودا مشهوره ده چه د خبر راوړلو د پاره کوم سړې ليګلې شوې وو هغه حضرت حذيفه بن اليمان رضی الله عنه وو او دلته د بخاری په روايت کښې ذکر دی د حضرت زبير رضی الله عنه ؟

① په دواړو روايتونوکښې د تطبيق د پاره دا خبره کولې شی چه دا واقعه د يو وخت وی او بله واقعه د بل وخت وی په دې وجه هيڅ تعارض نشته.

② حافظ ابن حجرعسقلانی رحمه الله دا جواب ارشاد فرمائيلې دې چه په اصل کښې دا جدا جدا واقعات دی، حضرت زبير رضی الله عنه هم نبی عليه السلام ليګلې وو او حضرت حذيفه بن يمان رضی الله عنه هم. ليکن حضرت زبير رضی الله عنه خو ئې د دې خبرې د تحقيق د پاره روان کړې وو چه آيا بنوقريظه نقض عهد کړې دې که نه؟ او قريشو سره هغوی سازباز کړيدې اوکه نه؟ او هغوی د مسلمانانو سره د جنګ کولو د پاره تياردی که نه؟ نو دا کارحضرت زبير رضی الله عنه ته سپارلې شوې وو.

ترکومې چه د حضرت حذيفه رضی الله عنه د واقعې تعلق دې نو د هغه قصه داسې ده چه کله د کفارو ګيره په غزوه خندق کښې په مسلمانانو راتنګه کړيشوه او مختلف قومونه په هغوی راپريوتل. بيا روستو په دې قومونوکښې بې اتفاقی راغله او هريو قوم د بل قوم نه ويريدلو او الله تعالی په هغوی باندې سخته سيلئ راوستله اوحالات خراب شو نو هغه وخت حضور صلی الله عليه وسلم حضرت حذيفه رضی الله عنه اوليګلو چه د مشرکانو حالت معلوم کړه راشه.

په صحيح مسلم کښې د حضرت حذيفه رضی الله عنه قصه ذکر ده هغه فرمائی، سخته سيلئ او يخنی وه او د شپې وخت وو، نبی کريم صلی الله عليه وسلم مونږ صحابه کرامو ته اوفرمائيل ((ألا رجل يأتينی

---

۱) (شرح القسطلانی (ج۵ص۶۷)-

۲) (لامع الدراری (ج۷ص۲۲۷)-

بخبر القوم، جعله الله معى يوم القيامة؟)) داحضور ﷺ درې ځل اوفرمائيل خو چا هم جواب ورنكړو نو رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل ((قم ياحذيفه، فأتنا بخبر القوم)) ورسره هغوى ﷺ فرمائيلى وو چه څوك به وژنې نه. دې وائى چه دومره سخته يخنى وه چه تګ ډير ګران ووخو چه كله د حضور ﷺ په حكم باندې زه لاړم نو داسې معلوميدله لكه چه زه په ګرم حمام كښې يم او د يخنئ څه نوم او نښه باقى نه وه. دې نه پس زه هغه مذكوره مقام ته اورسيدلم نو اومې كتل چه ابوسفيان ﷺ خپله ملا ګرموى، ما خيال راغلو چه ډيره ښه موقع ده چه دې خو ختم كړم ليكن د حضور ﷺ خبره رايادہ شوه چه څوك اونه وژنې نو ما هغه پريخودو. كله چه زه د هغه ځائ نه واپس راغلم او هغه كار چه ماته سپارلې شوې وو پوره شو نو دومره يخنى مى اوشوه چه د هغې انتها نه وه. نو حضور ﷺ خپل څادر په ما باندې واچولو او زه اوده شوم بيا چه كله د سحر د مانځه وخت شو نو حضور ﷺ او وفرمائيل ((قم يانومان)) اې ډير خوب كوتكيه پاسه. (١)

نو چه كله دا دواړه جدا جدا واقعات دى نو د تعارض هډو څه سوال نه پيداكيږى. (٢)

**د نبى كريم ﷺ ترغيب اود نوروصحابه كرامو سكوت:** دلته يو سوال دا پيدا كيږى چه كله نبى ﷺ ((من يأتينى بخبر القوم؟)) اوفرمائيل نود حضرت زبير ﷺ نه علاوه نورو صحابه كرامو ولې لبيك اونه وئيل او چپ پاتې شو سره د دې چه هغوى خو د حضور ﷺ د پاره ځان هم قربانى كولو؟

حضرت ګنګوهى ﷺ د دې سوال مختلف جوابونه ذكر كړى دى:

① سره د دې چه د طليعه فضيلت په خپل ځائ دې ليكن صحابه كرامو د حضور صحبت نه پريخودلوممكن دى چه د حالاتو د نزاكت د وجه د حضور ﷺ نه جدا كيدل ئې نه وى خوښ كړى.

② دا هم ممكن دى چه د حاضرينو نه هر يو جواب او لبيك وئيل غوښتل خو چه كله هغوى اوكتل چه حضرت زبير ﷺ په جواب كښې ړومبې والې اوكړو نو هغه حضرات چپ شو.

③ بيا دا خبره هم ده چه په دې دريو موقعوكښې ټول صحابه د حضور ﷺ سره حاضر نه وو بلكه څه لږ شان وو نو په دې وجه ممكن دى چه د دې خطاب مخاطب لږ شان خلق وى ټول نه وى. (٣)

**قوله:** فقال النبى صلى الله عليه وسلم: إن لكل نبى حوارياً، وحوارى الزبير:

نو حضور ﷺ اوفرمائيل د هر يو نبى د پاره يو (خاص) حوارى (امدادى) وى او زما حوارى زبير دې.

**د حوارى معنى:** د حوارى معنى خاص امدادى او ناصر ده. د حضرت عيسى ﷺ ملګروته په

---

١ ) (الحديث أخرجه مسلم كتاب الجهاد والسير باب غزوة الأحزاب رقم (٤٦٤)-

٢ ) (فتح البارى (ج٧ص٤٠٧)-

٣ ) (لامع الدرارى ج١ ص ٢٢٨-٢٣٠)-

قرآن کریم کښې ﴿الحواريون﴾(١) سره تعبیر کړېشوی دی. ځکه چه هغوی دَ حضرت عیسی علیه السلام خاص سړی او امدادی ملګری وو. دَ دې اصل ((تحوير)) دې. دَ کوم معنی چه ((تبييض)) ده، يو قوم دا هم دې چه دَ حضرت عیسی علیه السلام دا دوستان یا شاګردان دوبیان ووېه دې وجه هغوی ته ﴿الحواريون﴾ اووئیلې شو. (٢)

علامه ابن منظور افریقی رحمه الله لیکی : ((التحوير التبييض، والحواريون: القصارون لأنهم كانوا قصارين، ثم غلب حتى صار كل ناصر وكل حميم حواريا))(٣)

**حضرت زبیر رضی الله عنه ته دَ حواری وئیلووجه:** علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث باب نه معلومه شوه کوم سړې چه دَ دښمن حال معلومولو دَپاره لاړشی هغه ته ناصر وئیلې کیدیشی، ځکه چه حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت زبیر رضی الله عنه ته حواری وئیلې دې. دَ دې تسمیه مطلب دا دې چه کله حضرت عیسی علیه السلام دا اوفرمائیل ﴿من أنصاري إلى الله قال الحواريون نحن أنصار الله﴾ نو دَ حوارییِنو نه علاوه بل چا لبیك اونه وئیل. دغه شان چه کله نبی علیه السلام دَ صحابه کرامو نه دا معلوم کړل ((من يأتيني بخبرهم؟)) نو دَ حضرت زبیر رضی الله عنه نه علاوه بل چا لبیك اونه وئیل، په دې وجه حضور صلی الله علیه وسلم حضرت زبیر ته دَ حضرت عیسی علیه السلام دَ حوارییِنو سره تشبیه ورکړه او دَ هغوی په نوم ئې یاد کړو. (۴)

نو بیا چه داخبره ثابته او واضحه شوه چه طلیعه ته ناصر وئیلې کیدیشی نودَ دې ثواب هم هغه دې چه دَ مقاتل مدافع دې. (۵)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې. (۶) چه په باب کښې دَ طلیعه ذکر دې او په حدیث کښې هم دَ دې بیان دې.

## ۴۱- بَاب: هَلْ يُبْعَثُ الطَّلِيعَةُ وَحْدَهُ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله داخودلی دی چه دَ طلیعه په توګه یو سړې لیګل هم صحیح دی. لکه چه حضور صلی الله علیه وسلم حضرت زبیر رضی الله عنه لیګلې وو او جواب دَ استفهام محذوف دې یعنی ((يجوز بعثه وحده))(۷)

---

١) (الصف: ١٤)-
٢) (عمدة القاری (ج ١٤ ص ١٤١)-
٣) (لسان العرب (ج ٤ ص ٢١٩-٢٢٠)-
٤) (شرح ابن بطال (ج ٥ ص ٥٣)-
٥) (حواله بالا (٥٤)-
۶) (عمدة القاری (ج ١٤؛ ص ١٤١)-
٧) (عمدة القاری (ج ١٤ ص ١٤٢)-

[۲۶۹۲] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا(۱) قَالَ نَدَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ قَالَ صَدَقَةُ أَظُنُّهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَ النَّاسَ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَ النَّاسَ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَإِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ [ر: ۲۶۹۱]

## تراجم رجال

۱- صدقه: دا ابوالفضل صدقة بن الفضل المروزی رحمه الله دي.(۲)

۲- ابن عُیَینه: دا مشهور محدث سفیان بن عُیَینه بن ابی عمران کوفی رحمه الله دي، دَ ده مختصر حالات ((بدء الوحی)) رومبی حدیث کښې (۳) او تفصیلی حالات ((کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا)) لاندې تیرشوی دی. (۴)

۳- ابن المنکدر: دا محمدبن منکدر بن عبدالله مدنی رحمه الله دي. (۵)

۴- جابربن عبدالله: دا مشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه دي. (۶)

**قوله:** قال: ندب النبی صلی الله علیه وسلم الناس: حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه نبی علیه السلام خلقو ته آواز ورکړو. ندب دَ باب ضرب نه دې دَ دې مصدر ندبا دې اودَ دې معنی څوك راغوښتل او متوجه کول دی.

**قوله:** قال صدقة: أظنه یوم الخندق: صدقه راوی وائی چه زما خیال دې دَ جنګ خندق ورځ وه. یعنی صدقه بن الفضل چه په دې حدیث کښې دَ بخاری رحمه الله شیخ دې هغه فرمائی چه زما خیال دا دې چه دا راغوښتل دَ جنګ خندق په ورځ وو، هغه ته دلته شك کیږی خو دغه روایت امام حمیدی په خپل مسند کښې دَ ابن عُیینه رحمه الله نه روایت کړیدې په دې کښې بغیردَ شك نه یوم الخندق دې. (۷)

**قوله:** فانتدب الزبیر: نو حضرت زبیر رضی الله عنه جواب ورکړو. مطلب دا دې چه کله حضور صلی الله علیه وسلم خلقوته آواز ورکړو او خبردار ئی کړل نودَ هغه آواز جواب صرف حضرت زبیر رضی الله عنه ورکړو.

---

۱) (قوله: جابر بن عبدالله رضی الله عنهما: الحدیث مر تخریجه فی الباب السابق-

۲) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل-

۳) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۸)-

٤) (کشف الباری (ج۳ص۱۰۲)-

۵) دَدوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه-

۶) (دَدوی دَحالاتودَپاره اوګورئ کتاب الضوء باب من لم یر الوضوء إلامن المخرجین من القبل والدبر

۷) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱٤۲) ومصباح اللغات (ص۸۶۳) مادة ندب-

«الندبه الأمر» معنی دَ چا په راغوښتو باندې جواب ورکولو ته وائی. (۱)
دَ حدیث باب نه دا فائده مستنبط شوه چه یوازې سړی له ځان له سفرکول جائز دی او په دې باره کښې چه څه هم وارد شوی دی هغه دَ څه ضرورت یا حاجت دَ نه کیدو په صورت کښې دی.(۲) د دې سلسلې نور تفصیلات به ان شاء الله «باب السیروحده» لاندې راځی.
او په حدیث باب سره متعلق نور بحثونه په تیرو شوو بابونوکښې مونږ ذکر کړی دی.
**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. چه حضور ﷺ حضرت زبیر رضی الله عنه یواځې دَ دښمن جاسوسئی دَ پاره روان کړې وو. د څه نه چه معلومه شوه چه په طلیعه کښې یو سړې لیګل هم جائز دی.

## ۴۲- بَاب: سَفَرِ الِاثْنَيْنِ

**دَ ترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله دلته دا ښائی چه دَ دوو سړو په یوځائ سفر کولو جائز او صحیح دی.(۳) حافظ صاحب فرمائی چه په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ دې حدیث دَ ضعف طرف ته اشاره کوی کوم چه امام ابوداود(۴) ترمذی(۵) او نورو حضراتو (۶) روایت کړیدې. عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده په طریق سره مرفوع منقول دی چه «قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: الراکب شیطان، والراکبان شیطانان، والثلاثة رکب» خو دا روایت دَ امام بخاری رحمه الله په نزد دَ استدلال قابل نه دې. په دې وجه هغه وائی چه که دوه کسان هم سفر کوی نو هیڅ بدییت نشته او په دلیل کښې دَ ترجمة الباب لاندې دَ حضرت مالك بن الحویرث رضی الله عنه روایت نقل کوی. (۷)
پاتې شو هغه دَ سنن حدیث نو حافظ ابن حجر فرمائی چه هغه حدیث شریف هم صحیح الاسناد دې. ابن خزیمه او حاکم رحمه الله (۸) هم دا صحیح ګرځولې دې. او امام حاکم دا دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه هم روایت کړیدې. (۹)

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱٤۲) ومصباح اللغات (ص۸٦۳) مادة ندب-
۲) (فتح الباری (ج۶ص۵۳)-
۳) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱٤۲) وفتح الباری (ج۶ص۵۳)-
٤) (سنن أبی داوٗد کتاب الجهادباب فی الرجل یسافر وحده رقم (۲۶۰۷)-
۵) (سنن الترمذی أبواب الجهاد باب ماجاء فی کراهیة أن یسافر الرجل وحده رقم (۱۶۷٤)-
۶) (رواه الإمام مالک بن أنس أیضاً فی الموٗطأ (ج۲ص۹۷۸)فی الاستئذان باب ماجاء فی الوحدة فی السفر رقم (۳۵)
۷) (فتح الباری (ج۶ص۵۳)-
۸) (المستدرک للحاکم (ج۳ص۱۰۲) کتاب الجهاد باب التشدید فی السفر بدون الثلاثة-
۹) (الحدیث أخرجه الحاکم وصححه (ج۲ص۱۰۲) کتاب الجهاد باب التشدید فی السفر بدون الثلاثة-

په دې وجه دَ دې روايت خو دَ سره ردكولې نشي خو دَ دې متعلق به دا اووئيلى شي چه دا په خاص حالاتو محمول دې. امام طبرى رحمه الله فرمائى چه ((الراكب شيطان والراكبان شيطانان .....)) كښې يوازې يا دَ دوو سړو په يو ځائ دَ سفر كولو كومه نهى او زجر وارد شويدې هغه دَ ادب په توګه دې. ځكه چه يوازې سړې دَ ويرې او ځان له والى ښكار كيږى. په دې وجه دا نهى تحريمى نه ده چه دا سفر به حرام وى. ځكه كه يوازې سړې په ځنګل تيريږى يا داسې كه په ځان له ځائ كښې په يوخالى كور كښې شپه تيروى نو هغه دَ ويرې نه په امن كښې كيدې نشى خاص كر كه دَ هغه زړه كمزورې وى او خيالات ئې خراب وى.

او دَ دې باره كښې دَ ټولونه ښه دا دى چه خلق په دې باره كښې مختلف دى څوك ويريږى او څوك بالكل نه ويريږى نو دا به وئيلى شي چه كومه نهى وارد شويده هغه ((حسماللمادة)) ده او دا نهى دې صورت ته شامل نه ده چه واقعى څه حاجت يا ضرورت پيش شى.(۱)

په دې مسئله كښې نور تفصيل به ان شاء الله ((باب السير وحده)) لاندې راځى.

[۲۶۹۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ (۲) قَالَ انْصَرَفْتُ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَنَا أَنَا وَصَاحِبٍ لِي أَذِّنَا وَأَقِيمَا وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا [ر:۶۰۲]

## تراجم رجال

۱- احمد بن يونس: دا احمدبن عبدالله بن يونس تميمى كوفى رحمه الله دې. ليكن دَ نيكه په نسبت يعنى احمدبن يونس سره مشهور دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب من قال: أن الإيمان هوالعمل)) لاندې تيرشوى دى. (۳)

۲- ابوشهاب: دا ابوشهاب موسى بن نافع الحناط رحمه الله دې. (۴)

۳- خالد الحذاء: دا مشهور محدث ابوالمنازل خالدبن مهران حذاء بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب)) لاندې تيرشوې دى.(۵)

۴- ابوقلابه: دامشهور تابعى عبدالله بن زيدجرمى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر حالات ((كتاب

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۵۳-۵۴) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۴۲)-

۲) قوله: عن مالك بن الحويرث: الحديث مرتخريجه فى كتاب الأذان باب من قال: ليؤذن فى السفر مؤذن واحد

۳) (كشف البارى (ج۲ص۱۵۹)-

۴) (دَ دوى حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الحج باب التمتع والقران...)-

۵) (كشف البارى (ج۳ص۳۶۱)-

الإيمان باب حلاوة الإيمان)) په ذيل کښې راغلی دی. (۱)

**۵- مالك بن حويرث:** دا دَ رسول الله ﷺ صحابی حضرت مالك بن الحويرث ابوسليمان رضی الله عنه دي. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب تحريض النبي صلى الله عليه وسلم وفد عبد القيس على أن يحفظوا الإيمان)) لاندې تيرشو. (۲)

**تنبيه:** دا حديث سره دَ تشريحاتو ((كتاب الأذان)) کښې تيرشو.

**دا حديث دَ ترجمة الباب په ذيل کښې دَ ذکر کولو مقصد:** ابن التين رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته دَ حضرت مالك بن الحويرث رضی الله عنه حديث ذکر کولو سره دا اشاره فرمائی چه دَ دې حديث په بعض طرق کښې دا صراحت موجود دې چه حضور ﷺ هغه ته او دَ هغه ملګری ته دا پورته ذکر شوې ارشاد هغه وخت فرمائيلې وو کوم وخت چه دې حضراتو دَ خپل قوم طرف ته دَ تلو اراده اوکړه نو دَ هغوی رضی الله عنهم دې اجازت سره دَ دوو سړو دَ سفر په جواز باندې په استدلال کولې شی. (۳)

**دَ امام داودی غلط فهمی او دَ هغې وضاحت:** ابن التين رحمه الله فرمائی چه امام داودی دَ ترجمة الباب دَ الفاظونه داګنړلی چه امام بخاری رحمه الله دلته سفر يوم الإثنين (يعنی دَ پيرُ دَ ورځ سفر) بيانوی. بيائې په امام صاحب باندې اعتراض اوکړو چه دلته خو په حديث کښې دَ يوم الإثنين دَ سفر هډو تذکره نشته.

علامه عينی رحمه الله دَ دې اعتراض جواب ورکولو سره فرمائی: ((وهذا ليس بشيء لأنه لم يرد به إلا سفر الرجلين لأنه تقدم ذكر سفر الرجل وحده، ثم أتبعه ببيان سفر الرجلين، ولو نظر متن الحديث لوضح له بخلاف قوله، وسفر يوم الإثنين إنما هو مذكور في الحديث الثلاثة الذين تخلفوا عن تبوك، قال كعب: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يحب أن يسافر يوم الإثنين ويوم الخميس)) (۴)

يعنی دَ هغه دا اعتراض بالکل دَ توجه قابل نه دې ځکه چه دَ امام بخاری مقصد دَ دې نه صرف دَ دوو سړو دَ سفر بيان دې. دَ دې دَ پاره دَ دې نه وړاندې دَ يو سړی دَ سفر بيان اوشو بيائې دَ دې نه پس دَ دوو سړو دَ سفر ذکر اوکړو. که چرې داودی دَ حديث متن ته کتلې وې نو هغه ته به دَ خپل اعتراض خلاف معلوم شوې وو.

پاتې شو سفر دَ يوم الإثنين نو دَ دې دريو صحابه کرامو په حديث کښې ذکر دی کوم چه دَ غزوه تبوك نه پاتې شوی وو. حضرت کعب بن مالك رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به دَ پير او زيارت دَ ورځ سفر خوښولو.

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۲۶)-
۲) (كشف البارى (ج۳ص۵۰۸)-
۳) (فتح البارى (ج۶ص۵۳)-
۴) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۴۲)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث مناسبت ترجمة الباب سره واضح دي (۱) چه حضرت مالك بن حويرث رضي الله عنه او د هغه ملګری ته هغوی ﷺ د سفر کولو اجازت ورکړې وو د څه نه چه د دوو سړو د سفر جواز معلومیږی.

## ۴۳- بَاب: الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی چه د اسونو په تندوکښې به د قیامت پورې خیر او برکت قائم وی. او دلته هغوی د خپل عادت موافق د حدیث الفاظ ترجمة الباب جوړ کړی دی. (۲)

او دې ترجمه لاندې هغوی درې احادیث ذکرکړی دی کومو کښې چه ړومبې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دې.

[۲۶۹۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (۳) قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَيْلُ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ [۳۴۴۴]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن مسلمه: دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبی رحمه الله دې.

۲- مالك: دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس الاصبحی رحمه الله دې. د دې دواړو حالات ((کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن)) لاندې تیرشوی دی. (۴)

۳- نافع: دا ابوسهیل نافع بن مالك بن ابی عامر اصبحی رحمه الله دې. د امام مالك رحمه الله تره دې. د ده حالات ((کتاب الإیمان باب علامة المنافق)) لاندې تیرشو. (۵)

۴- عبدالله بن عمر: دا مشهورصحابی حضرت عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما دې. د ده حالات ((کتاب الإیمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الإسلام علی خمس)) لاندې راغلی دی (۶)

---

۱) (حواله بالا(ص۱۴۳)-

۲) (فتح الباری (ج۶ص ۵۴) وعمدة القاری)ج ۱۴ص۱۴۳) وکشف الباری (ج ۱ص۱۶۸)-

۳) (قوله: عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما: الحدیث أخرجه البخاری أیضاً (ج۱یص ۵۴) کتاب المناقب باب بعد باب سؤال المشرکین أیریهم... رقم (۳۶۴۴) ومسلم کتاب الإمارة باب الخیل فی نواصیها الخیر إلی یوم القیامة، رقم (۴۸۴۵) والنسائی کتاب الخیل باب فتل ناسیة الفرس رقم (۳۶۰۳) وابن ماجه أبواب الجهاد باب ارتباط الخیل فی سبیل الله رقم (۲۷۸۷)-

۴) (کشف الباری (ج۲ص ۸۰)وأیضاً انظر لترجمة مالک بن أنس: کشف الباری (ج۱ص ۲۹۰)-

۵) (کشف الباری (ج ۲ص ۲۷۱)-

۶) (کشف الباری (ج ۱ص۶۳۷)-

**قوله: قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: الخيل في نواصيها الخير إلى يوم القيامة:** حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د اسونو تندو سره د قیامته پورې خیر ترلې دی.

**د خیل نه څه مراد دی؟:** دلته د خیل نه هغه اسونه مراد دی کوم چه د جهاد د پاره اوساتلې شی او په هغې جنګ اوکړیشی. په دلیل هغه حدیث شریف دې کوم چه څلور بابه پس راځی چه ((الخيل لثلاثة)). (۱)

په مسند احمد کښې د حضرت اسماء بنت یزید رضي الله عنها مرفوع حدیث دې:

**((الخيل في نواصيها الخير معقود إلى يوم القيامة، فمن ربطها عُدّة في سبيل الله، وأنفق عليه إحتسابا كان شبعها وجوعها وريها وظمؤها وأرواثها وأبوالها فلاحًا في موازينه يوم القيامة))** (۲)

یعنی د اسونو تندو پورې د قیامته پورې خیر او برکت ترلې دې. چا چه دا د الله تعالی په لار کښې د جهاد د پاره تیارکړې وی او د ثواب نیت لرلو سره په دې باندې خرچه کړې وی نود هغه مړیدل، اوږیکیدل، د هغه خړوبیدل او د هغه ترې پاتې کیدل، د هغه خاشتره او د هغه متیازې به د قیامت په ورځ په تله کښې کامیابی وی.

او خیل ئې ځکه ذکر کړو چه دا د جهاد سامان دې اوتخصیص بالذکر وجه دا ده چه په هغه زمانه کښې د دې نه لوئ د جهاد سامان نه وو ګنی مقصود د خیل تعیین نه دې بلکه د جهاد فضیلت بیانول دی چه په جهاد کښې د امت مسلمه د پاره خیر او برکت دې. (۳)

**د نواصی مطلب اود دې مراد: نواصی د ناصية جمع ده اود دې معنی تندې دې.** خو دلته په حدیث کښې ناصية نه هغه ویښته مراد دی چه د اس په تندی باندې زوړند وی. (۴)

او بعض حضراتو فرمائیلی دی چه ناصیه د اس د ټول ذات نه کنایه ده د عربوخلق وائی **((فلان مبارك الناصية))** او د دې نه پوره انسان یا ذات اخلی. (۵)

ولې حافظ ابن حجر رحمه الله داخبره بعیده ګرځولې ده چه د ناصیه نه پوره ذات مراد واخستلې شی نو د باب په دریم حدیث کښې دا معنی صحیح نه ګرځی. نور فرمائی چه امام مسلم د حضرت جریر رضي الله عنه روایت نقل کړیدې په دې کښې : **((قال: رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يلوي ناصية فرسه بإصبعه ويقول....))** (۶)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۵۵) وعمدة القاری (ج۱٤ص۲۷۳)-
۲) (مسند أحمد (ج۶ص٤۵۵)-
۳) (فیض الباری (ج۳ص٤۳۰)-
٤) (فتح الباری (ج۶ص۵۵) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱٤۳)-
۵) (حواله بالا وشرح الکرمانی (ج۱۲ص ۱۳۶) وابن بطال (ج۵ص۵۷)-
۶) (صحیح مسلم (ج۲ص۱۳۲) کتاب الإمارة باب فضیلة الخیل وأن الخیر معود بنواصیها رقم (٤۸٤۷)-

او پوره حدیث ئې ذکر کړیه دې وجه هم ناصیه مراد ده.
اود دې د تخصیص بالذکر وجه دا ده چه د اس په ذریعه اقدام علی العدو اوکړېشی په خلاف د روستنی حصې ځکه چه په دې کنبې د ادبار اشاره موندلې شي. (۱)
**د الخیرنه څه مراد دی؟** د الخیر نه مراداجر او غنیمت دې لکه چه د وړاندېنی باب په حدیث کنبې پخپله حضور ﷺ اجر او غنیمت خیرګرځولې دې. ((الخیل معقودفی نواصیها الخیرإلی یوم القیامة: الأجروالمغنم)) (۲) او ((الأجروالمغنم)) الفاظ خو یا د خیر سره بدل دی یا د مبتداء محذوف خبر دې. ((أی هوالأجروالمغنم)) (۳)
اود مسلم شریف د روایت نه هم د دې تائید کیږی چه هلته د جریر عن حصین په روایت کنبې دی ((قالوا: بم ذاك یا رسول الله؟ قال: الأجروالمغنم)) (۴)
اوبعض حضراتو فرمانیلی دی دلته د خیر نه مراد مال دې. علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه په حدیث کنبې د دې خبرې خبر ورکړیشویدې چه کوم مال د اسونو په تیزو زغلولو حاصل شی هغه د ټولو نه بهترین او پاك مال دې. ځکه چه عرب مال ته خیر وائی هم دینه د الله تعالی قول دې: ﴿کتب علیکم إذا حضر أحدکم الموت إن ترك خیرا﴾ (۵) أی: مالاً (۶)
علامه ابن عبدالبر رحمه الله په ،والتمهید،، کنبې فرمائی.
په دې حدیث کنبې د اس حاصلولو ترغیب دې او دا اسونه د ټولو ځناورو نه غوره دی ځکه چه د نبی کریم ﷺ نه دا قسم ارشاد د بل یو ځناور د پاره سوا د اس نه نه دې نقل شوې. په دې کنبې د نبی کریم ﷺ د طرف نه د اس تعظیم دې. د دې په حصول باندې ترغیب دې او د دې خبرې تحریض دې چه د الله تعالی په لارکنبې د جهاد د پاره دا تیاره وه او تړلې ساته ځکه چه دا د جهاد په قوی آلاتوکنبې دې. دا اس کوم چه د جهاد د پاره تیارکړېشی هم هغه د کوم په تندی کنبې چه خیر دې. (۷)
د نسائی شریف په روایت کنبې راځی چه نبی کریم ﷺ ته د ښځونه پس د ټولو نه زیات اسونه خوښ وو.(۸)
**تنبیه:** دلته امام بخاری رحمه الله چه کوم حدیث د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ذکر کړیدې په هغې کنبې د معقودلفظ نشته د موطا په روایت کنبې هم داسې دې.(۹) چه په دې کنبې

---

۱ ) (کشف الباری (ج۶ص۵۵-۵۶)-
۲ ) (صحیح البخاری (ج۱ص۳۹۹) کتاب الجهاد باب الجهاد ماض مع البروالفاجر. رقم (۲۸۵۲)-
۳ ) (فتح الباری (ج۶ص۵۵)-
٤ ) (صحیح مسلم (ج۲ص۱۳۶) کتاب الإمارة باب فضیلة الخیل وأن الخیر معقود بنواصیها رقم (٤٨٥٠)-
۵ ) (البقرة:۱۸۰)-
۶ ) (أعلام الحدیث للخطابی(ج۲ص ۳۷٤)-
۷ ) (التمهید(ج ۱٤ص ۹۶)-
۸ ) (سنن النسائی (ج۲ص۱۲۲) کتاب الخیل باب حب الخیل رقم(۳۵۹٤)-
۹ ) (الموطأ للإمام مالک بن أنس کتاب الجهاد باب ماجاء فی الخیل.....رقم (٤٤)-

معقود لفظ نشته، خو اسماعيلى همدغه روايت عبدالله بن نافع عن مالك په طريق سره نقل کړو په دې کښې دا لفظ موجود دې. دغه شان هم بخارى کښې علامات النبوة لاندې دا حديث ((عن عبيدالله أخبرني نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما)) (١) په طريق سره مروى دې. په دې کښې هم د معقود لفظ موجود دې ليکن دا صرف د کشميهني په روايت کښې دې. (٢)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت بالکل واضح دې. (٣) او هغه خير د اسونو تندو سره تړلې دې هم د دې په ترجمه کښې ذکر دې او همدغه د حديث مضمون دې.

د باب دوئم حديث د حضرت عروة بن الجعدر رضي الله عنه دې.

[٢٦٩٥] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنٍ وَابْنِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْجَعْدِ (٤) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ قَالَ سُلَيْمَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ تَابَعَهُ مُسَدَّدٌ عَنْ هُشَيْمٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ [٢٦٩٧، ٢٩٥١]

## تراجم رجال

١- **حفص بن عمر:** دا حفص بن عمر بن حارث رحمه الله دې. (٥)

٢- **شعبه:** دا امير المؤمنين فى الحديث ابوبسطام شعبه بن الحجاج عتکى رحمه الله دې. د دوى مختصر حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې تيرشوى دى. (٦)

٣- **حصين:** داحصين بن عبدالرحمن السلمى رحمه الله دې. (٧)

٤- **ابن ابى السفر:** دا عبدالله بن ابى السفر سعيد ثورى کوفى رحمه الله دې. د ده حالات هم

---

١) (صحيح البخارى كتاب المناقب باب بعد سؤال المشركين أن يريهم... رقم (٣٦٤٤)-
٢) (كشف البارى (ج٦ص٥٤)-
٣) (عمدة القارى (ج١٤ص١٤٣)-
٤) (قوله: عن عروة بن الجعد: الحديث أخرجه البخارى أيضاً (ج١ص٣٩٩) كتاب الجهاد باب الجهاد ماض مع البر والفاجر رقم (٢٨٥٢) و(ج١ص٤٤٠) كتاب فرض الخمس باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: أحلت لكم الغنائم رقم (٣١١٩) و(ج١ص٥١٤) كتاب المناقب باب بعد باب سؤال المشركين أن يريهم... رقم (٣٦٤٣)ومسلم كتاب الإمارة باب فضيلة الخيل.... رقم (٤٨٤٩-٤٨٥٠) والترمذى أبواب الجهاد باب ماجاء فى فضل الخيل رقم (١٦٩٤ والنسائى كتاب الخيل باب فتل ناصية الفرس رقم (٣٦٠٤-٣٦٠٧) وابن ماجه أبواب التجارات باب اتخاذ الماشية رقم (٢٣٠٥) وأبواب الجهاد باب ارتباط الخيل فى سبيل الله رقم (٢٧٨٦)
٥) (د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب التيمن فى الوضوء والغسل-
٦) (كشف البارى (ج١ص٦٧٨)-
٧) (د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلاة باب الأذان بعد ذهاب الوقت-

((کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده)) لاندې تیرشوی دی. (۱)

۵- الشعبی: دا ابوعمروعامر بن شراحیل شعبی کوفی رحمه الله دې. دَ ده حالات هم دَ مذکوره باب لاندې راغلی دی. (۲)

۶- عروه بن الجعد: دا عروة بن ابی الجعد الباري الازدی رضی الله عنه دې. ده ته دَ نبی کریم ﷺ دَ صحبت شرف حاصل دې. دَ کوفې اوسیدونکې دې. (۳)

خودَ علامه شاطبی اوعلامه ابن عبدالبر رحمهما الله خیال دا دې چه دا عروه بن عیاض بن ابی الجعد دې او دَ خپل نیکه طرف ته دَ ده نسبت مشهور دې. (۴)

بارق قبیله دَ ازد یو ښاخ دې او بارقِ دَ حضرت عروة رضی الله عنه دَ جداعلی لقبَ دې او دَهغه نوم سعدبن عدی به حارثه دې او بارق دَ یو غر نوم دې هغې سره نزدې دَ حضرت عروه رضی الله عنه جداعلی اقامت اختیار کړې وو. دَ هغې طرف ته دَ نسبت په وجه هغه په بارق باندې یادیدلو. (۵) هغه دَ نبی کریم ﷺ، حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه نه دَ حدیث روایت کوی.

اودَ هغه نه شبیب بن غرقده، امام شعبی، غیزار بن حریث، ابولبید لُماذه بن زبار جهضمی، قیس بن ابی حازم، ابواسحاق سبیعی، سماك بن حرب، نعیم بن ابی هند او نوروډیر محدثین روایت حدیث کوی. (۶)

حضرت عمر رضی الله عنه هغه دَ کوفې قاضی مقررکړې وو، بیاهم هلته اوسیدلواو هغه سره ئې سلیمان بن ربیعه هم کړې وو، دا واقعه دَ قاضی شریح رحمه الله دَ قاضی مقرر کولونه دَ وړاندې ده. (۷)

دَ شام وغیره په فتوحاتوکښې دې هم شامل وو، بیا هم هلته اوسیدلو، روستو حضرت عثمان رضی الله عنه هغه ته دَ کوفې دَ روانیدلو هدایت اوکړو. (۸) دَ هغوی شمیر په محدثینوکښې په اهل کوفه کښې کیږی. (۹)

دَ اسونوسره دَ هغه ډیره مینه وه، شبیب بن غرقده فرمائی چه هغه سره ما اویا اسونه لیدلې وو چه ټول په ټول دَ جهاد دَ پاره ئې تیار ساتلې وو. (۱۰)

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۶۷۸)-
۲) (کشف الباری (ج۱ص۶۷۹)-
۳) (تهذیب الکمال (ج۲۰ص۵) تهذیب الأسماء واللغات للنووی (ج۱ص۳۳۱)-
٤) (الإصابة (ج۲ص٤٤٦) والإستیعاب (ج۲ص۲۸)-
۵) (طبقات ابن سعد (ج۶ص۳٤) و تهذیب الکمال (ج۲ص۵) وتهذیب الأسماء (ج۱ص۳۳۱)-
۶) (شیوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۲۰ص ۵-۶)-
۷) (تهذیب الکمال (ج۲ص۵) وتهذیب التهذیب (ج۷ص۱۷۸)-
۸) (الإصابة (ج۲ص٤۷۶)-
۹) (الإستیعاب (ج۲ص۲۸)-
۱۰) (طبقات ابن سعد (ج۶ص۳٤) وتهذیب الأسماء للنووی (ج۱ص۳۳۱) وصحیح البخاری (ج۱ص ۵۱٤) تاب المناقب باب بعد باب سؤال المشرکین أن یریهم.... رقم (۳۶٤۳)-

یو خل هغه یو اس واخستلو چه د هغې قیمت لس زره درهم وو(۱) د هغه نه ټول دیارلس احادیث مروی دی چه په هغې کښې یو متفق علیه دې. (۲)

تنبیه د حدیث عروه بن الجعد رضی الله عنه تشریح د تیرشوی حدیث د ابن عمر لاندې تیره شویده.

**قوله: قـال سلیمان: عن شعبة عن عروة بن أبی الجعد:**

**د مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق حافظ ابونعیم رحمه الله (المستخرج) کښې، امام طبرانی (المعجم الکبیر) (۳) او امام نسائی خپل (سنن) کښې (۴) موصولاً نقل کړیدې. (۵)

**د مذکوره تعلیق مقصد:** د دې تعلیق مقصددا دې چه سلیمان بن حرب په دې سند کښې د عروه د پلار نوم کښې اختلاف کړیدې نو حفص بن عمرخود عروه د پلارنوم جعد ګرځوی او سلیمان بن حرب د هغه د پلار نوم أبی الجعد ونیلې دې. (۶)

اسماعیلی رحمه الله فرمائی چه د شعبه نه روایت کونکی اکثر حضرات د هغه د پلار نوم (الجعد) ښائی سوا د سلیمان بن حرب او ابن عدی نه. (۷)

**صحیح کوم دی؟:** علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی

**((قال علی بن المدینی: من قال فیه: عروة بن الجعد فقد أخطأ، وإنما هو عروة بن أبی الجعد قال: وکان غندر یهم فیه، فیقول: عروة بن الجعد))** (۸)

علی بن المدینی رحمه الله فرمائی چاچه هغه ته عروه بن جعد اووئیل هغه غلطی اوکړه، هغه خو عروه بن ابی الجعد دې. فرمائی او غندر ته به د هغه باره کښې وهم کیدلو نو هغه به ده ته عروه بن الجعد وئیل.

اوعلامه ابن عبدالبر (۹)حافظ ابن حجر (۱۰) حافظ جمال الدین المزی (۱۱) امام طبرانی (۱۲) او پخپله امام بخاری (۱۳) رحمهم الله واغیره د صنیع نه هم د دې خبرې تائید کیږی چه درست او صحیح **((عروة بن أبی الجعد))** دې نه چه **((عروة بن الجعد))**.

---

۱) (أسدالغابة (٤ص۲۶)-
۲) (تهذیب الأسماء للنووی (ج۱ص۳۳۱)-
۳) (المعجم الکبیر (۱۷ص۱۵۵) رقم (۳۹۷)-
٤) (سنن النسائی کتاب الخیل باب فتل ناصیة الفرس رقم (۳۶۰۵ و ۳۶۰۷)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص ٥٤)-
۶) (حواله بالا عمدة القاری (١٤ص ١٤٤)-
۷) (فتح الباری (ج۶ص ٥٤)-
۸) (الإستیعاب(ج۲ص ۲۸) وتعلیقات تهذیب الکمال)ج۲۰ص۶)-
۹) (الإستیعاب (ج۲ص۲۸)-.
۱۰) (فتح الباری (ج۲ص۵۵)-.
۱۱) (تهذیب الکمال (ج ۲۰ص۵)-.
۱۲) (المعجم الکبیر (ج۱۷ص ۱٥٤)-.
۱۳) (التاریخ الکبیر (ج۷ص ۳۱) رقم (۱۳۷) وانظر أیضًا للمزید فتح الباری (ج۶ص۵۵)-

**يوه تنبيه:** دلته دَ امام بخارى رحمه الله دا عبارت ((قال سليمان: عن شعبة عن عروة بن أبي الجعد)) نه دا مغالطه او شبه نه دى كيدل پكار چه امام شعبه دَ حضرت عروه نه روايت كوى، حالانكه شعبه دَ حضرت عروه زمانه نه ده ليدلې، نو دَ دې عبارت معنى به دا وى چه شعبه په خپل روايت كنبې دَ عروة بن أبي الجعد لفظ دَ "اب" اضافې سره (۱) ذكر كړيدې عروة بن الجعد ئى نه دې وئيلې.

**قوله:** تابعه مسدد عن هشيم عن حصين عن عروة بن أبي الجعد: مسدد ((عن هشيم عن حصين عن عروة بن أبي الجعد)) په طريق سره دَ سليمان متابعت كړيدې.

**دَ مذكوره عبارت مقصد:** ددې عبارت مقصد او مطلب دا دې چه د امام بخارى رحمه الله شيخ مسدد بن مسرهد رحمه الله هم دَ "اب" په اضافې سره دَ سليمان متابعت او ملګرتيا كړيده. (۲)

دَ باب دريم حديث دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې.

[۲۶۹۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَرَكَةُ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ [۳۴۴۵]

## تراجم رجال

۱- **مسدد:** دا مسدود بن مسرهد بن مسرهل رحمه الله دې.

۲- **يحيى:** دا يحيى بن سعيد بن فروخ القطان تميمى رحمه الله دې. دَ دې دواړو حضراتو حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه)) لاندې راغلى دى. (۴)

۳- **شعبه:** دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې تيرشوى دى. (۵)

۴- **ابوالتياح:** دا ابوالتياح يزيد بن حميد بصرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة والعلم كى لاينفروا)) لاندې تير شوى دى. (۶)

---

۱ ) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۴۴)-
۲ ) حواله بالا-
۳ ) قوله: عن أنس بن مالک رضى الله عنه: الحديث: أخرجه البخارى أيضًا (ج۱ص۵۱۴) كتاب المناقب باب بعد باب سؤال المشركين أن يريهم النبى صلى الله عليه وسلم آية.... رقم (۳۶۴۵) ومسلم كتاب الإمارة باب فضيلة الخيل وأن الخير معقود بنواصيها رثقم ۴۸۵۴) والنسائى كتاب الخيل باب بركة الخيل رقم (۳۶۰۱)
۴ ) (كشف البارى (ج۲ص۲)-
۵ ) (كشف البارى (ج۱ص۶۷۸)-
۶ ) (كشف البارى (ج۳ص۱۶۸)-

۵- انس بن مالك: دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) (۱)

**قوله: قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: البركة في نواصي الخيل:** دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى د اسونو په تندوكښې بركت ايخودې شوې دې.

**في نواصي الخيل دَ څه څيز سره متعلق دې:** دلته چه دا كوم ((في نواصي الخيل)) جارومجرور دې دَ دې معلق حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمهما الله ((نازلة يا تنزيل)) ګرځولې دې. ((عاصم بن علي عن شعبة)) په طريق سره دا روايت نقل كړې اودَ دې الفاظ دادى ((البركة تنزل في نواصي الخيل)) (۲)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت ((البركة)) كښې دې ځكه چه بركت هم عين خير دې. (۳)

**فائده:** دَ باب لاندې ذكر كړيشوې حديث مبارك تقريباً دَ شلو صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين نه مروى دې. (۴)

## ۴۴- باب: الْجِهَادُ مَاضٍ مَعَ الْبَرِّ وَالْفَاجِرِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه عينى رحمه الله فرمائى دَ دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى چه جهاد به دَ قيامت پورې باقى وى. (۵)

او علامه ابن التين فرمائى چه دَ ترجمه مقصد دا دې چه په هر سړى باندې دَ قيامته پورې جهاد واجب او ضرورى دې. كه نيك وى كه ګناهګار. اودَ دې وجه داده چه دَ ابوالحسن قابسى په روايت كښې دَترجمة الباب داسې الفاظ راغلى دى: ((الجهاد ماض على البر والفاجر)) (۶) خو حافظ صاحب رحمه الله فرمائى:

**((إلا أنه لم يقع في شيء من النسخ التي وقفنا عليها، وقد وجدته في نسخة قديمة من رواية القابسي كالجماعة، والذي يليق بلفظ الحديث ما وقع في سائر الأصول بلفظ "مع" بدل "على"** (۷)

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص ٤)-
۲) (فتح البارى (ج۶ص۵۵) وعمدة القارى (ج ١٤ص ١٤٩)-
۳) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٤٤)-
٤) (لامع الدرارى (ج۷ص۲۲۹) وهم: ابن عمر، وعروة، وأنس، وجرير، وسلمة بن نفيل، وأبو هريرة، وعتبة بن عبد، وجابر، وأسماء بنت يزيد، وأبوذر، والمغيرة، وابن مسعود، وأبو كبشة، وحذيفة، وسوادة بن الربيع، وأبو أمامة، غيرب المليكي، والنعمان بن بشير، وسهل ب الحنظلية، وعلى رضى الله عنهم. ذكر هم الحافظ مع تخريج رواياتهم (ج۶ص۵۶)-
۵) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٤۵)-
۶) (حواله بالا وفتح البارى (ج۶ص۵۶)-
۷) ( وفتح البارى (ج۶ص۵۶)-

د کوم خلاصه چه دا ده، زمونږ چه کومو نسخو ته رسیدل شوی دی په هغې کښې په یوه نسخه کښې هم دا خبره نشته. دَ قابسی روایت شوې یوه زړه نسخه ماته ملاوشوې وه نو په هغې کښې هم دَ اکثر په شان "مع" دې نه چه "علی" او دَ حدیث الفاظو سره هم دغه مناسب دی کوم چه په ټولو اصلو (نسخو) کښې دی چه "مع" سره وی نه چه "علی" سره.

حافظ ابن حجر نور فرمائی چه دا ترجمه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ حدیث نه اخذ کړې شویده کوم چه امام ابوداود او امام ابویعلی رحمهما الله مرفوعاً او موقوفاً نقل کړیدې او دَ دې رواة هم مناسب دی خو دا چه دَ حدیث په سند کښې مکحول هم دې دَ چا سماع چه دَ ابوهریره رضی الله عنه نه ثابته نه ده. (۱)او دَ امام ابوداود رحمه الله دَ روایت الفاظ دا دی: ((الجهاد واجب عليكم مع كل أمير، براكان أو فاجراً....وإن عمل الكبائر))(۲)

**قوله: لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:** (۳) دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دې ارشاد په وجه چه دَ اسونو تندو سره دَ قیامته پورې خیر تړلې دی. دا د امام بخاری رحمه الله ماقبل کښې دَ ذکر شوې دعوی دلیل دې چه هغه په ترجمة الباب کښې دا وئیلې وو چه جهاد به دَ قیامته پورې باقی وی. بیا دا دعوی ثابتولو دَ پاره ئې دا پورته ذکر شوې حدیث دَ دلیل په توګه ذکر کړو.

**د استدلال وجه:** دلته دَ امام بخاری رحمه الله استدلال دا دې چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په دې مذکوره حدیث کښې دا ذکر فرمائیلی دی چه دَ قیامته پورې دَ اسونوتندو پورې خیر تړلې دې. هغوی علیه السلام ته دا خبره معلومه وه چه دَ هغوی په امت کښې به عادل او ظالم دواړه قسم بادشاهان وی نو دَ دې حدیث په رو دَ هغوی سره جهاد واجب شو او په دې کښې حضور صلی الله علیه وسلم دَ دې خبرې تفریق نه دې کړې چه که جهاد امام عادل سره وی نو بیا خو هغه خیر دې ګنی نو نه دې، نو معلومه شوه چه دا فضل او مرتبه په هر صورت کښې حاصلیدې شی که امام عادل وی که جائر. (۴)

حافظ ابن حجر فرمائی چه دَ دې حدیث نه دا استدلال دَ ټولونه اول حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله کړې وو. (۵) دَ ترمذی په روایت کښې دی:

**قوله: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: وَفِقْهُ هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّ الْجِهَادَ مَعَ كُلِّ إِمَامٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:** (۶) دَ دې دَ پاره چه جهاد دَ قیامته پورې مشروع دې نوکه امام عادل او نیک وی

---

۱) (وفتح الباری (ج۶ص۵۶)-
۲) (الحديث أخرجه الإمام أبوداود فى سننه كتاب الجهاد باب فى الغزو مع أئمة الجور رقم (۲۵۳۳)-
۳) (الحديث مر تخريجه فى الباب السابق-
۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص۵۷) وفتح البارى (ج۶ص۵۶)-
۵) ( وفتح البارى (ج۶ص۵۶)-
۶) (الجامع للترمذى أبواب الجهاد باب ماجاء فى فضل الخيل رقم (۱۶۹۴)-

نو بیا هم هغه سره یوځائ کیدل او جهاد کول دی اوکه فاجر او فاسق دې نو هم د هغه سره یوځائ کیدل او جهاد کول دی. ځکه که امام عادل وی که فاجر، هغه هم د جهاد د پاره راوتلې دې د هغه خرابوالی او فاجر کیدو سره هیڅ فرق نه پریوځی. د کفارو په مقابله کښې چه کوم جهاد مطلوب دې هغه په هرحال کښې کول ضروری دی.

[۲۶۹۷] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا عُرْوَةُ الْبَارِقِيُّ (۱) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ الْأَجْرُ وَالْمَغْنَمُ [ر: ۲۶۹۵]

## تراجم رجال

۱- **ابونعیم:** دا مشهور محدث ابونعیم فضل بن دکین رحمه الله دې.

۲- **زکریا:** دا زکریا بن زائده کوفی رحمه الله دې، د دې دوارو حالات ((کتاب الإيمان باب فضل من استبرألدينه)) لاندې تیرشوې دی.(۲)

۳- **عامر:** دا مشهور تابعی محدث ابوعمروعامر بن شراحیل شعبی رحمه الله دې. د دوی حالات ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) (۳)

۴- **عروة البارقی:** دا حضرت عروة بن ابی الجعد رضی الله عنه دې. د ده حالات په تیرشوی باب کښې راغلی دی. او ((البارقی)) بارق طرف ته منسوب دې چه د یمن د یو غرنوم دې.(۴)

**تنبیه:** د حدیث باب تشریح په تیرشوی باب کښې تیره شویده.

**فائده:** په حدیث باب کښې د دې خبرې زیرې او خوشخبری ده چه اسلام او مسلمان به تر قیامته پورې باقی وی ځکه چه د جهاد بقاء د مجاهدینو بقاء د پاره مستلزم ده او بنکاره خبره ده چه مجاهدین به هم مسلمانان وی. (۵)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ((فی نواصيها الخير إلى.....)) کښې دې. (۶)

**د یوجماعت ټول کسان صالح او نیک کیدل ضروری نه دی:** علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه د باب په حدیث کښې د یو اصل عظیم طرف ته اشاره ده هغه دا چه د کومو امورو مدار جماعت یعنی ډله وی په هغوی کښې افرادو ته نشی کتلې ځکه چه په هره ډله

---

۱) (قوله: عروة البارقی الحدیث مرتخریجه فی الباب السابق-
۲) (کشف الباری (ج۲ص۶۶۹و ۶۷۳)-
۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۷۸)-
٤) (عمدة القاری (ج١٤ص١٤٥) وفتح الباری (ج۶ص۵۵)-
۵) (فتح الباری(ج۶ص ۵٤)-
۶) (عمدة القاری (ج١٤ص١٤٥)-

كښې نيك او بد هر قسم خلق وي او د داسې جماعت پيدا كيدل هم متعذر دى چه د هغې ټول كسان نيكان وي. كه چرې دا شرط اولګولې شو چه د جماعت ټول خلق به نيك وي نو د خير ډير اعمال به معطل شي او دا مثال خو مشهور دې: ((مالايدرك كله، لايترك كله))
د دې نه پس دا اوګڼړئ چه هركله به جهاد د قيامته پورې باقي وي او دغه د جماعت كار دې (د يو ځان سرې د وس طاقت كار نه دې) او دا هم معلوم دى چه ټول عمر به د خير امير موجود نه وي، نو اوس خو به يا جهاد معطل كيږي چه نيك امير موجود نه دې او يا به هر يو نيك او فاجر سره باقي وي.
نبى كريم ﷺ په حديث باب كښې دې خبرې طرف ته تنبيه اوفرمائيله چه د امراؤ فسق او فجور ته په كتلو سره د جهاد نه مه منع كيږئ ځكه چه كله الله تعالى د دين كار د فاجرنه هم اخلي. د دې د پاره د خلقو حالاتو پسې كيدل اود فاجر د فجور د وجه نه روستو پاتې كيدو تاخر ((عن الخير البحض)) دې او خير محض جهاد دې او دا هم كيديشى چه د جهاد نه د امير د فسق او فجور د وجه روستو پاتې كيدو سره هم جهاد ختم شي، په دې وجه د فاجر اطاعت د خير ختمولو اود هميشه د پاره د ذلالت طوق په غاړه كښې د اچولو نه اولى دې.(۱)

## ۴۵- بَاب: مَنْ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله د جهاد فى سبيل الله دپاره د اسونوتړل او تيار ساتلو فضيلت بيانوى. (۲)

**قوله:** لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ﴾: [الانفال: ٦٠] د الله د دې قول د وجه نه "او تړلى شوى اسونه"
دا د سورة الانفال د يو آيت حصه ده. د كوم چه رومبنى كلمات دا دي: ﴿وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة ومن رباط الخيل﴾ (۳)
رباط مصدر دې اود مفعول په معنى كښې دې. يعنى هغه اسونه چه د جهاد په نيت تړلي شوى وى.(۴) اود خيل لفظ دجمهورو په نزد مذكر او مونث دواړو ته شامل دې خود حضرت عكرمه رحمه الله ميلان دې طرف ته دې چه دلته هم ((اناث الخيل)) مراد دې.(۵)
او په دې پورتنى آيت مبارك كښې الله تعالى مسلمانانوته د دښمن د مقابلې د پاره د جنګ د سامان د تيارى حكم وركړې دې او د اسونو ترلو هم ځكه چه اسونه هم د جنګ د آلاتونه دى. د دې نه هم د اسونو ترلو فضيلت او اهميت ثابتيږى. (۶)

---

۱) (فيض البارى (ج۲ص ۴۲۰)-
۲) (عمدة القارى (۱۴ص۴۵) وفتح البارى (ج۶ص۵۷)-
۳) (الانفال: ۶۹)-
۴) (روح المعانى (ج۶ص۶۵(تفسير قوله تعالى: ﴿ومن رباط الخيل﴾-
۵) (عمدة القارى (۱۴ص۱۴۶)-
۶) (حواله بالا(ص۱۴۵)-

[۲۶۹۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنَا طَلْحَةُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدًا الْمَقْبُرِيَّ يُحَدِّثُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۱) يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ إِيمَانًا بِاللَّهِ وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهِ فَإِنَّ شِبَعَهُ وَرِيَّهُ وَرَوْثَهُ وَبَوْلَهُ فِي مِيزَانِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

## تراجم رجال

۱- **علي بن حفص:** دا ابوالحسن علی بن حفص المروزی رحمه الله دي. (۲)
دي دعبدالله بن المبارک رحمه الله نه روایت کوی اودده نه امام بخاری رحمه الله روایت کړي دي. او فرمائیلی دی ((لقیته بعسقلان سنة سبع عشرة ومئتین)) (۳)
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ((لیس بشيء)) (۴)
اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ((مقبول)) (۵)
او ابوحاتم رحمه الله هم هغه ثقه ګرځولي دي او د هغه نه ئی روایات اخستي دی. (۶)
او علامه ابن حبان هم هغه په (کتاب الثقات) کښې ذکر کړيدي. (۷)
په اصحاب سته کښې صرف امام بخاری رحمه الله د هغه نه روایت اخستي دي او هغوی هم د ده نه صرف درې احادیث نقل کړی دی. (۸)

۲- **ابن المبارک:** دا عبدالله بن المبارک بن واضح حنظلی رحمه الله دي، د دوی مختصر حالات ((بدء الوحی)) پنځم حدیث لاندې راغلی دی. (۹)

۳- **طلحه بن ابی سعید:** دا طلحه بن ابی سعید مدنی مصری رحمه الله دي ابوعبدالملک د هغه کنیت دي، د قریشو مولیٰ دي. (۱۰)
دي د سعید مقبری، بکیر بن اشج، صخر بن عیله، خالدبن ابی عمران رحمهم الله نه د حدیث

---

۱) (قوله: أباهريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه النسائي، كتاب الخيل.... رقم (۳۶۱۲)-
۲) (تهذيب الكمال (ج۲۰ص۴۱۱)-
۳) (حواله بالا وتاريخ البخارى الكبير(ج۶ص۲۷۰)-
٤) (تعليقات تهذيب الكمال(ج۲۰ص۴۱۱)-
۵) (التقريب (ص۴۰۰) رقم ۴۷۲۰)-
۶) (تعليقات تهذيب الكمال(ج۲۰ص۴۱۲)-
۷) (كتاب الثقات (ج۸ص۴۶۹)-
۸) (حاشيه سبط ابن العجمي فى الكاشف (ج۲ص۳۸) وفتح البارى (ج۶ص۵۷)-
۹) (كشف البارى (ج۱ص۴۶۲)-
۱۰) (تهذيب الكمال (ج۱۳ص۳۹۸) خلاصة الخزرجى(ص۱۷۹)-

روايت كوى. او دَ ده نه حيوة بن شريح، ليث، ابن المبارك او ابن ذهيب رحمهم الله وغيره د حديث روايت كوى. (۱)

امام احمد رحمه الله فرمائى ((ما أرى به بأسا))(۲)

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى ((معروف))(۳)

ابوزرعه رحمه الله فرمائى ((ثقة))(۴)

او امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى ((صالح))(۵)

امام ابو داود رحمه الله فرمائى ((روى عنه الليث بن سعد، وقال فيه خيرا)) (۶)

ابن حبان رحمه الله دَ دوى تذكره په (كتاب الثقات) كښې كړيده فرمائى: ((من أهل المدينة، جاء إلى مصر مراراً)) (۷)

سبط ابن العجمى رحمه الله فرمائى ((ثقة)) (۸)

امام ذهبى رحمه الله فرمائى ((وُثِّق))(۹)

امام بخارى رحمه الله دَ ده نه صرف يو روايت اخستې دې چه په مذكوره باب كښې دې. بلكه دَ ابوسعيد بن يونس وينا ده چه دَ ده نه صرف هم يو مسندحديث مروى دې. ((قال أبوسعيد بن يونس: ...لم يُسنِد غيرهذا الحديث))(۱۰)

په كال ۱۵۷ھ كښې دَ دوى وفات شويدې (۱۱) رحمه الله رحمة واسعة.

۴- سعيدُالمقبري: دا ابوسعد سعيد بن ابوسعيد كيسان مقبرى رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب الدين يسر)) لاندې راغلى دى. (۱۲)

---

۱ ) (شيوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۱۳ص۳۹۸)-

۲ ) (حواله بالا-

۳ ) (حواله بالا-

٤ ) (حواله بالا و خلاصة الخزرجى(ص۱۷۹)-

۵ ) (تهذيب الكمال (۱۳ص۳۹۹)-

۶ ) (حواله بالا-

۷ ) (الثقات لابن حبان (ج۶ص٤۹۸)-

۸ ) (حاشيه سبط ابن العجمى فى الكاشف (ج۱ص۵۱٤)-

۹ ) (الكاشف(ج۱ص۵۱٤)-

۱۰ ) (تهذيب الكمال(ج۱۳ص۳۹۹)-

۱۱ ) (خلاصة الخزرجى (ص۱۷۹)و حواله بالا-

۱۲ ) (كشف البارى (ج۲ص۳۳۶)-

۵- ابوهریره: دا د رسول الله ﷺ صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دی. د ده حالات ((کتاب الایمان باب امور الایمان)) لاندې تیرشوی دی.(۱)

**قوله: یقول: قال النبی صلی الله علیه وسلم: من احتبس فرسًا فی سبیل الله.....:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی کوم سړی چه په الله تعالی باندې ایمان لرلو سره اود هغه د وعدې تصدیق کولو سره د الله تعالی په لارکښې اس ترلې اوساته نود هغه اس خوراك څښاك، د هغه خاشنړه او د هغه متیازې به د قیامت په ورځ د هغه د عمل په تله کښې وی.

د حدیث مطلب دا دې که یو سړې صرف هم د الله تعالی د رضاد پاره د جهاد په نیت اس اوترې نو ده ته ثواب ملاویږی اود هغه د خوراك څښاك، خاشنړو او متیازو هم به الله تعالی ثواب ورکوی. غرض دا چه د ده به هرڅیز ثواب جوړ شی او د قیامت په ورځ به د جهاد کونکې او اس ترونکی په اعمالوکښې وزن کولې شی او دا وزن به ډیر درووند وی.

**د "احتبس" صرفی او نحوی تحقیق:** احتبس د باب افتعال نه د فعل ماضی مذکر غائب صیغه ده. د کوم معنی چه ترل او منع کول دی اود دې د مجرد همدغه معنی ده. کله دا پخپله متعدی شی او کله لازم.

اوس معنی دا شوه چه هغه سړې دا اس د خپل خان دپاره منع کوی او ترلې ساتی که چرې صبا په سرحدونوباندې څه خطره پیدا شی نوچه د ده په کار راشی. (۲)

**قوله: ایمانًا بالله:** ((ایمانًا)) په ترکیب کښې مفعول له واقع کیږی او مطلب دا دې چه هغه دا د اس ترلوکوم عمل اختیارکړیدې، هغه خالص دالله تعالی د پاره اود هغه د حکم امتثال او پوره کولو د پاره دې.(۳)

**قوله: تصدیقًا بوعده:** په دې احتباس باندې چه کوم ثواب مرتب کیږی د هغې نه عبارت دې، خلاصه دا ده چه د دې سړی عمل د احتباس د الله د حکم په خائې راوړلو اود ثواب په نیت سره شوې دې. او هغه داسې چه الله تعالی د احتباس په عمل د ثواب او بدلې کومه وعده فرمائیلې ده، نو چه کوم سړې اس رامنع کړی لکه چه داسې وائی ((صدقت فیما وعدتنی)) یعنی (ای الله!) تا چه د ثواب کومه وعده کړې ده په هغې کښې ته رښتونې یې. (۴)

بیا په دې کلموکښې اشاره د معاد طرف ته ده لکه چه په ایمان کښې د مبداء طرف ته اشاره ده، نو نبی اکرم ﷺ دا مختصر کلمات ((ایمانا بالله وتصدیقا بوعده)) کښې د انسان مبداء او معاد دواړو طرف ته اشاره کړیده. (۵)

---

۱) (کشف الباری (ج ۱ص ۶۵۹)-
۲) (عمدة القاری (ج ۱۴ص ۱۴۵) وشرح طیبی(ج ۷ص ۳۱۷)-
۳) ( عمدة القاری (ج ۱۴ص ۱۴۶) وشرح طیبی(ج ۷ص ۳۱۷)-
۴) (حواله بالا-
۵) (شرح الکرمانی (ج ۱۲ص ۱۳۸)-

((شبعه)) دَ شین په کسره سره دې. دَ دې معنی ده په کوم څیز چه خیټه ډکیږی، که هغه وابنه وغیره وی یا څه بل څه څیز. (۱)
((ریّه)) دَ راء په کسره اویاء په تشدیدسره دې.یعنی هغه اوبه په کوموچه اس خړوب شی.(۲)
((روثه)) دَ اس خاشنړه ته روث ونیلې شی اودَ دې جمع ارواث ده. (۳)
او مقصد ترینه دلته ثواب دې دامطلب نه دې چه دَ اس خړانچه او متیازې به په تله دَ اعمالوکښې تلی. (۴)
**په اسونو دَ خوړلو څکلو فضائل:** دَ حدیث باب په شان نور ډیر احادیثوکښې په اسونو خوړلو څکلو اوپه هغې دَ خرچ کولو فضیلتونه وارد شوی دی.

ابن سعد په (**طبقات**) کښې دَ حضرت عریب ﷺ دا حدیث نقل کړیدې چه په اسونو خرچ کونکو مثال دَ هغه سړی په شان دې چاچه خپل لاس دَ صدقاتو دپاره کولاؤ کړې وی چه هغه نه بندوی اودَ هغه اس متیازې او یا خاشنړه به دَ قیامت په ورځ دَ الله تعالی په نزد دَ مشکو دَ خوشبو په شان وی.(۵)
په ابن ماجه کښې دَ حضرت تمیم الداری ﷺ حدیث شریف دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه کوم سړی دَ الله تعالی په لار کښې یو اس اوتړلو بیا ئی دَ کیا وغیره په خپلو لاسونو تیاره کړه نو هغه ته به دَ هرې یوې دانې په بدله کښې الله تعالی یو نیکی ورکوی.(۶)
**دَ حدیث فوائد:** دَ حدیث باب نه یو څو فائدې مستنبط شوی دی:
① دَ ضرورت او حاجت په وخت کښې دَ یو مستقذر او ګنده څیز ذکر کولوکښې هیڅ بدییت نشته لکه چه نبی کریم ﷺ دلته دَ خاشنړو او متیازو ذکر کړیدې. (۷)
② صرف په نیت او اراده سره هم اجر ورکولې شی. (۸)
③ ابن ابی جمرة رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث باب نه دا خبره مستفاد کیږی چه په دې کښې ذکر کړیشوی حسنات به بهر حال مقبول وی څکه چه په دې کښې نص دَ شارع موجود دې

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۶) وشرح القسطلانی (ج۵ص ۷۰)-
۲ ) حواله بالا-
۳ ) (مختار الصحاح مادئ روث-
٤ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۶) وفتح الباری (ج۶ص۵۷)-
۵ ) (عزاه القسطلانی إلی ابن سعد (ج۵ص ۷۰) وأخرجه المنذری فی الترغیب (ج۲ص۲۶۷)-
۶ ) (سنن ابن ماجه، أبواب الجهاد باب ارتباط الخیل فی سبیل الله رقم (۲۷۹۱) وانظر أیضًا إرشاد الساری للقسطلانی (ج۵ص ۷۰-۷۱)-
۷ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص۵۹) وعمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۳۶)-
۸ ) (حواله بالا-

په خلاف د نورو حسناتو چه هغه کله قبليږی هم نه نو په ميزان کښې به هم د ثواب په نيت نه راخی. (۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت او مناسبت ښکاره دې. (۲)

دَ اس دَ تړلې ساتلو فضيلت په باب کښې ذکر دې او په حديث کښې په ده باندې دَ خوړلو څکلو او د ده په فضلاتو باندې ثواب بيان کړېشوې دې.

## ۴۶- بَاب: اسْمِ الْفَرَسِ وَالْحِمَارِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې داښائی چه دَ اس او خر نوم کيخودل جائز دی او مشروع دی په دې کښې هيڅ حرج او خرابی نشته.(۳)

**دَ نوم ايخودلو حکمت:** په اس او خر باندې دَ نوم کيخودلو حکمت دادې چه فرس او حمار اسم جنس دې په دې وجه دَ دوی نومونه کيخودل پکار دی. دې دَ پاره چه دې دَ خپلو نورو هم جنسو نه ممتاز او جدا وی، په پيژندګلوکښې څه ګران نه وی، لکه څنګه چه په انسانانوکښې افرادجنس نه ممتاز کولودپاره نومونه کيخودلې شی.(۴)

بيا دا جوازاو مشروعيت صرف دَ فرس او حمار دَ پاره نه دې بلکه نور څاروی په کښې هم شامل دی.

[۲۶۹۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ(۵) أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَخَلَّفَ أَبُو قَتَادَةَ مَعَ بَعْضِ أَصْحَابِهِ وَهُمْ مُحْرِمُونَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَأَوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ فَلَمَّا رَأَوْهُ تَرَكُوهُ حَتَّى رَآهُ أَبُو قَتَادَةَ فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ يُقَالُ لَهُ الْجَرَادَةُ فَسَأَلَهُمْ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ فَأَبَوْا فَتَنَاوَلَهُ فَحَمَلَ فَعَقَرَهُ ثُمَّ أَكَلَ فَأَكَلُوا فَنَدِمُوا فَلَمَّا أَدْرَكُوهُ قَالَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ قَالَ مَعَنَا رِجْلُهُ فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَهَا [ر:۱۷۲۵]

## تراجم رجال

۱- **محمد بن ابی بکر:** دا محمد بن ابوبکر بن علی بن عطاء المقدمی رحمه الله دې. (۶)

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۵۷)-

۲) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۳۶)-

۳) (فتح البارى (ج۶ص۵۸)-

٤) (حواله بالا (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۳۶)-

۵) (قوله: عن أبيه: الحديث مرتخريجه فى كتاب جزاء الصيد، باب إذا صاد الحلال فأهديللمحرم الصيدأكله-

۶) (دَ دوی حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب المساجد التى على طرق المدينة....-

او همدغه صحیح دی، دَ ابوعلی جیانی رحمه الله وینا ده چه د ابوزید په نسخه کښې محمدبن بکر دې او هغه غلط دې ځکه چه دَ امام بخاری رحمه الله په شیخانوکښې دَ محمدبن بکر په نوم څوک شیخ نشته.(۱)

۲-**فضیل بن سلیمان:** دا ابوسلیمان فضیل بن سلیمان نمیری بصری رحمه الله دې. (۲)

۳-**ابوحازم:** دا مشهور زاهدابوحازم سلمة بن دینارمولی الاسودالمدنی رحمه الله دې. (۳)

۴-**عبدالله:** دا عبدالله بن ابی قتاده السلمی رحمه الله دې.

۵-**ابوقتادة:** دا مشهور صحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت ابوقتاده حارث بن ربعی رضی الله عنه دې.(۴)

**تنبیه:** دَ حضرت ابوقتاده رضی الله عنه دا حدیث خپل مکمل تشریحاتو سره دَ ((کتاب جزاء الصید)) په شروع کښې تیرشویدې.

په دې باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله دا حدیث صرف دَ دې دَ پاره ذکر کړیدې چه په دې کښې دَ حضرت ابوقتاده د اس نوم ذکر دې.(۵)

**قوله:** فرکب فرسًا یقال لها: الجرادة: نو هغه په یو اس سور شو، هغه اس ته به ئې "جراده" وئیل.

**دَ هغه اس نوم څه وو؟:** دَ حضرت قتاده رضی الله عنه دَ دې پورته ذکر شوی اس نوم څه وو په دې کښې اختلاف دې .دلته خو"الجرادة" ذکر دې خو په سیرت ابن هشام (۶)کښې راغلی دی چه دَ حضرت قتاده رضی الله عنه دَ اس نوم "الحزوة" وو.

نواوس خو به یا دا وئیلې شی چه دَ دغه اس دوه نومونه وو، جراده او حزوه. او یا دا اووئیلی شی چه په دې کښې یو غلط او تصحیف دې. دَ بخاری شریف په روایت کښې چه کوم نوم ذکر دې هم هغه معتمد او صحیح دې. (۷)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت او مطابقت دَ حدیث په دې جمله کښې دې: ((فرکب فرساله، یقال لها الجرادة)) (۸)

---

۱ ) (فتح الباری(ج۶ص۵۹)وعمدة القاری(ج۱۴ص۱۴۷)-
۲ ) (دَ دوی حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الصلاة باب المساجد التی علی طرق المدینة.....-
۳ ) (دَ دوی حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباهاالدم عن وجهه-
۴ ) دَ حضرت قتاده اودَ هغه دَ خوئ دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب النهی عن الاستنجاء بالیمین
۵ ) (فتح الباری (ج۶ص۵۸)-
۶ ) (سیرة ابن هشام (ج۳ص۲۹۶) غزوة ذی قرد-
۷ ) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)-
۸ ) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۴۷)-

[۲۷۰۰] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ (۱) قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَائِطِنَا فَرَسٌ يُقَالُ لَهُ اللُّحَيْفُ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ بَعْضُهُمُ اللُّخَيْفُ

## تراجم رجال

۱- علي بن عبدالله بن جعفر: دا مشهور امام حديث امام جرح وتعديل حضرت علي بن عبدالله ابن المديني رحمه الله دي. د دوی حالات ((کتاب العلم باب الفهم في العلم)) لاندې راغلي. (۲)

۲- معن بن عيسى: دا ابويحيى معن بن عيسى بن يحيى القزاز المدني رحمه الله دي. (۳)

۳- أبي بن عباس: دا أُبي - بضم الهمزة وفتح الباء - ابن عباس بن سهل بن سعد الانصاری الساعدی المدنی رحمه الله دي. د عبدالمهيمن بن عباس رور دي. (۴)

دې د خپل والد عباس اوابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم رحمهما الله نه روايت کوي. او د دوی نه زيد بن حبا، عتيق بن يعقوب الزبيري او معن بن عيسى قزاز رحمهم الله وغيره د حديث روايت کوي. (۵)

امام بخاري او امام نسائي رحمهما الله فرمائي ((ليس بالقوي)) (۶)

امام احمد رحمه الله فرمائي ((منكر الحديث)) (۷)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي ((ضعيف)) (۸)

امام عقيلي رحمه الله ((له أحاديث لايتابع على شيء منها)) (۹)

او حافظ ساجي او ابو العرب قيرواني هم ((أبي)) ضعيف گرځولي دي. (۱۰)

البته بعض حضرات ائمه مثلاً امام دارقطني، ابن حبان او امام حاکم رحمهم الله هغه ته ثقه او قوي وئيلي دي. (۱۱)

---

۱) (قوله: أبي بن عباس بن سهل عن أبيه عن جده: الحديث هذا من إفراده عمدة القاري (ج ۱۴ ص ۱۴۷)-

۲) (کشف الباري (ج ۳ ص ۲۹۷)-

۳) (د دوی حالاتو د پاره اوگورئ کتاب الوضوء باب مايقع من النجاسات فى السمن والماء-

۴) (تهذيب الكمال (ج ۲ ص ۲۵۹)-

۵) (حواله بالا-

۶) (تهذيب الكمال (ص ۲۵۹)-

۷) (حواله بالا (ص ۲۶۰)-

۸) پورتنۍ حواله)

۹) (کتاب الضعفاء الكبير (ج ۱ ص ۱۶)-

۱۰) (تعليقات تهذيب الكمال (ج ۲ ص ۲۶۰)-

۱۱) (حواله بالا-

بهرحال ابی بن عباس دَ مضبوطې درجې راوی نه دې لکه څنګه چه تاسو اوکتل چه اکثر انمه دَ جرح او تعدیل په ده باندې جرح کړیدې.
خودلته دا خبره یاد ساتل پکار دی چه امام بخاری رحمه الله دَ دې باب صرف هم دا یو حدیث اخستې دې او هغه هم دَ احکامو متعلق نه دې.
دونمه خبره دا ده چه دَ هغه نه دَ امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ترمذی او امام ابن ماجه رحمهما الله هم روایت نقل کړې دی. او داهم دَ یو قسم توثیق او تعدیل دې.(۱) نو که دې ثقه یا ثبت نه هم وی لیکن حسن الحدیث ضرور دې او دَ احتجاج قابل دې نو علامه ذهبی رحمه الله فرمائی
((أبي وإن لم يكن بالثبت، فهو حسن الحديث)) (۲)
او ابن عدی رحمه الله فرمائی ((وهو يكتب حديثه، وهو فرد المتون والأسانيد))(۳)

۴-عباس بن سهل: دا عباس بن سهل بن سعد الساعدی رحمه الله دې. (۴)

۵- سهل بن سعد: دا مشهو صحابی حضرت سهل بن سعدمالك الساعدی انصاری رضی الله عنه دې. (۵)

**قوله: قال:كان للنبي صلى الله عليه وسلم في حائطنا فرس يقال له:اللحيف:** حضرت سهل بن سعدالساعدی رضی الله عنه فرمائی دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم زمونږ په باغ کښې یو اس وو کوم ته به چه ئې "اللحیف" وئیلې.
مطلب دا دې چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ هغه اس دَ تربیت، پالنې او تړلو ځائ زمونږ باغ وو. (۶)
((حائط)) دَ کهجورو باغ ته وائی خوچه دَ هغې دیوالونه هم وی اودَ دې جمع حوائط ده، یا مطلق دیوال او جدال ته هم حائط وئیلی شی.
**دَ لحیف ضبط او معنی:** دلته دَ باب په روایت کښې لحیف حاء مهمله او تصغیر سره دې.
ابن قرقول رحمه الله وائی چه دَ ابن سراج رحمه الله نه دا کلمه دَ رغیف په وزن نقل کړیشویده یعنی "لحیف"، حافظ شرف الدین دمیاطی رحمه الله هم دا راجح ګرځولې دې او دَ علامه هروی رحمه الله همدغه رائې ده او هغه وائی چه دَ هغه اس لکئی اوږده وه نو ((كأنه يلحف الأرض بذنبه))، لکه چه هغه به خپله لکئی په زمکه راښکله او تلوبه او په خپله لکئی به ئی زمکه پټه کړې وه.(۷) په دې وجه ده ته "لحیف" وئیلې شوی دی. (۸)

---

۱ ) (هدی الساری (ص۷۸)-
۲ ) (میزان الاعتدال(ج۱ص۷۸)-
۳ ) (الکامل لابن عدی(ج۱ص۴۲۱)-
٤ ) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الزکوة، باب خرص التمر-
۵ ) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه-
۶ ) (فیض الباری (ج۳ص۴۳۱)-
۷ ) (النهاية لابن الأثير الجزری (ج ٤ص۲۳۸) ولسان العرب (ج۹ص۳۱۵)-
۸ ) (فتح الباری (ج۶ص۵۹) وعمدة القاری (ج ١٤ص۱۳۷)-

**قوله:** قال أبوعبدالله: وقال بعضهم: اللخيف: ابوعبدالله وائی چه بعضو لخيف ونيلي دي.

مطلب دا دي چه بعض حضراتو دا لفظ خاء معجمه سره لخيف نقل کړيدي. په دې کښې هم هغه دوه صورتونه بيان کړيشوی دی کوم چه په لحيف کښې تيرشو چه يا خو مصغر دي يا په وزن دَ رغيف سره مکبر. (۱)

او دا دَ عبدالمهيمن بن عباس بن سهل رحمه الله روايت دي چه دَ ابی بن عباس رحمه الله رور دي. ابن منده رحمه الله هم دا روايت نقل کړيدي دَ کوم الفاظ چه دا دی: ((كان لرسول الله صلى الله عليه وسلم عند سعد بن سعد والد سهل ثلاثة أفراس، فسمعت النبى صلى الله عليه وسلم يسميهن لزاز، والظرب، واللخيف))(۲)

خو د سبط ابن الجوزی رحمه الله وينا ده چه امام بخاری رحمه الله دا په تصغير او خاء معجمه سره مقيد کړې دي اودغه شان ابن سعد رحمه الله هم د واقدی رحمه الله نه نقل کړی دی

ليکن ښکاره چه پورته تيرشو چه اکثرو حضراتو دې ته ترجيح ورکړيده چه دا دَ رغيف په وزن مکبر او حاء مهمله سره دي او همدغه معروف دی. ابن الاثير رحمه الله فرمائی ((والمعروف بالحاء المهملة)) (۳) او قاضی عياض رحمه الله فرمائی ((وبالأول ضبطناعن عامة شيوخنا))(۴)

دَ دې لفظ دريم صورت ابن الاثير(۵) او صاحب (المغيث) دا بيان کړيدي چه دا جيم سره لجيف دي صاحب دَ (المغيث) بيا فرمائی چه چرې جيم سره دا لفظ صحيح وی نودَ دې معنی دَ هغه غشی ده دَ کوم مخ چه خور شوې وی نولکه دَ هغه اس دَ لجيف سره دَ هغه د تيز والی موسوم کړې شو. (۶)

او دا اس دَ امام ابن سعد رحمه الله مطابق نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته ربيعه بن ابی البراء مالك بن عامر العامری دَ هديه په توګه پيش کړې وو. (۷)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دي. ځکه چه دَ راوی دا قول ((فرس يقال له: اللحيف)) دَ امام بخاری رحمه الله دَقول ((اسم الفرس)) مطابق دي.(۸)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)-
۲) (حواله بالا واللخف: الضرب الشديد. لسان العرب (ج۹ص۳۱۵)-
۳) (النهاية(ج٤ص۲۳۸)-
٤) (شرح القسطلانی(ج۵ص۷۷)-
۵) (النهاية (ج۵ص۲٤٤)-
۶) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)-
۷) (الطبقات الکبير لابن سعد(ج۱ص٤۹۰)-
۸) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱٤۷)-

[۲۷۰۱] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ سَمِعَ يَحْيَى بْنَ آدَمَ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۱) قَالَ كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ يُقَالُ لَهُ عُفَيْرٌ فَقَالَ يَا مُعَاذُ هَلْ تَدْرِي حَقَّ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ حَقَّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقَّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا [۵۶۲۲، ۵۹۱۲، ۶۱۳۵، ۶۹۳۸]

## تراجم رجال

۱- اسحاق بن ابراهيم: دا مشهور امام فقه او حديث اسحاق بن ابراهيم بن مخلدابن راهويه رحمه الله دي. دَ ده حالات ((كتاب العلم باب فضل من علم وعلم)) لاندې تيرشوي دی. (۲)

۲- يحيى بن آدم: دامشهورامام حديث يحيى بن آدم بن سليمان مخزومي قريشي رحمه الله دې. (۳)

۳- ابوالأحوص: دلته په سندكښې دَ يحيى بن آدم دَ شيخ كنيت ذكر كړې شوېدې، نوم ئې نه دې ذكر شوې نو اوس په شارحينوكښې دَ دې خبرې په بابت كښې اختلاف دې چه دَ ابوالاحوص نه څوک مراد دې؟

نو علامه كرماني (۴) علامه عيني (۵) حافظ قسطلاني (۶) او حافظ جمال الدين مزي (۷) رحمهم الله رائې داده چه ابوالاحوص نه مراد سلام بن سليم كوفي ضبعي رحمه الله دې او هم دغه دَ جمهورو رائې ده.

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ابوالاحوص دَعمار بن رزيق كنيت دې. نور فرمائي چه ما دَ يحيى بن آدم شيخ ابوالاحوص سلام بن سليم ګنړلو او هم په دې دَ مزي (۸) كلام هم

---

۱) (قوله: عن معاذ رضي الله عنه: الحديث أخرجه البخاري أيضًا كتاب اللباس باب إرداف الرجل خلف الرجل رقم (۵۹۶۸) وكتاب الاستئذان باب من أجاب بلبيك وسعديک رقم (۶۲۶۷) وكتاب الرقاق بن من جاهد نفسه في طاعة الله رقم (۶۵۰۰) وكتاب التوحيد باب ماجاء في دعاء النبي صلى الله عليه وسلم أمته إلى توحيدالله تبارک وتعالى رم (۷۳۷۳) ومسلم كتاب الإيمان باب الدليل على أن من مات على التوحيد دخل الجنة قطعاً رقم (۱۴۴) والترمذي أبواب الإيمان باب ماجاء في إفتراق هذه الأمة رقم (۲۶۴۳) وأبوداؤد كتاب الجهاد باب في يسمى دابته رقم (۲۵۵۹)-

۲) (كشف البارى (ج۳ص۴۲۸)-

۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ كتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه-

۴) (شرح الكرماني (ج۲ص۳۹)-

۵) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۴۸)-

۶) (شرح القسطلاني (ج۵ص۷۲)-

۷) (تحفة الأشراف (ج۸ص۴۱۱)-

۸) حواله بالا-

دال دي خو هم دغه حدیث امام نسائی رحمه الله (۱) ((عن محمد بن عبدالله بن المبارك المخرومی عن یحیی بن آدم)) په طریق باندې نقل کړیدې. په دې کښې دَ یحیی بن آدم شیخ عمار بن رزیق دې او امام بخاری رحمه الله دا روایت ((یحیی بن آدم عن أبي الأحوص عن أبي إسحاق)) په طریق سره نقل کړې دې او دَ عمار بن رزیق کنیت هم ابوالاحوص دې. ((ولم أر من نبه علی ذلك)) (۲)
دا خو د حافظ ابن حجر رائې شوه خو همدغه روایت امام مسلم (۳) او امام ابوداؤد (۴) رحمه الله هم نقل کړیدې. دَ امام مسلم شیخ ابوبکر بن ابی شیبه او امام ابوداؤدهناد بن السری دی او دا دواړه ((عن أبي الأحوص عن أبي إسحاق)) په طریق سره کوی. خو دلته دَ مسلم او ابوداؤد په روایت کښې دَ عمار بن رزیق په ځای سلام بن سلیم متعین دې.
ځکه چه ابوبکر بن ابی شیبه او هناد بن السری ملاقات دَ سلام بن سلیم نه خو ثابت دې، البته دَ عمار بن رزیق نهَ نه دې. (۵)
خوعلامه عینی رحمه الله دَ حافظ صاحب تردید کولو سره فرمائی :
((أبوالأحوص: اسمه سلام بن سُلیم الحنفی الکوفی، قیل: أبوالأحوص هذا عمار بن رزیق الضبی الکوفی، قلت: لایصح هذا لأن عمارا هذا مما انفرد به مسلم، ولم یخرج له البخاری)) (۶)
دَ علمائې رجال رحمهم الله دَ صنیع نه همدغه معلومیږی چه دلته سلام بن سلیم مراد دې نه چه عمار بن رزیق، ځکه چه په دې کښې اکثرو حضراتو عمار بن رزیق دَ افراد بخاری نه نه دې شمیرلی. (۷) په دې وجه دا معلومیږی چه دې دَ بخارۍ دَ افرادو نه نه دې.
بهر حال که مراد چرې دَ ابوالاحوص نه سلام بن سلیم رحمه الله دې نو دَ هغه حالات خو تیرشو (۸) اوکه مراد ترینه عمار بن رزیق وی لکه څنګه چه دَ حافظ صاحب خیال دې نومونږ دلته دَ هغه مختصر تذکره نقل کوو.

**قوله: عمار بن رزیق**: دا عمار بن رزیق – بضم الراء وفتح الزای مصغرا– الضبی الکوفی التمیمی رحمه الله دې. د ده کنیت ابوالاحوص دې. (۹)

---

۱) (سنن النسائی الکبری (ج۳ص٤٤٣) کتاب العلم باب الاختصاص بالعلم قوما.... رقم (۵۸۷۷)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)-
۳) (صحیح مسلم کتاب الإیمان باب الدلیل علی أن من مات علی التوحید رقم (١٤٤)-
٤) (سنن أبی داؤد کتاب الجهاد باب فی الرجل یسمی دابته رم (۳۵۵۹)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)-
۶) (عمدة القاری )ج١٤ص١٤٨)-
۷) (انظر تهذیب الکمال (ج۲۱ص۱۸۹) ومیزان الاعتدال (ج۳ص١۶٤) والکاشف (ج۲ص۵۰) وتهذیب التهذیب (ج۷ص٤۰۰) والتقریب (ج۱)-
۸) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الأذان باب الالتفات فی الصلاة-
۹) (تهذیب الکمال (ج۱ص۱۸۹)-

دي دابواسحاق السبیعی، اعمش، منصور، عبدالله بن عیسی، بن عبدالرحمن بن ابی لیلی، محمدبن عبدالرحمن بن ابی لیلی، عطاء بن السائب، مغیره بن مقسم، فطر بن خلیفه او نورو محدثینو ﷺ نه د حدیث روایت کوی.

د دوی نه روایت کونکوکښې ابوالجواب احوص بن جواب، ابوالاحوص سلام بن سلیم الکوفی، ابواحمد الزبیری، زید بن احباب، عبثر بن قاسم، یحیی بن آدم، معاویه بن هشام او نور محدثین حضرات شامل دی. (۱)

امام یحیی بن معین او امام ابوزرعه ﷺ فرمائی ((ثقة)) (۲)

لوین رحمه الله فرمائی چه ماته ابواحمد الزبیری اووئیل ((لواختلفت إلیه لکفاك أهل الدنیا)) (۳) که نه هغه له تلې راتلې نو هغه (عمار بن رزیق) به ستا د پاره د اهل دنیا د طرف نه کافی شی، یعنی بل چاله به د تلو هډو ضرورت نه وی.

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ((کان من الأثبات)) (۴)

امام ابن المدینی رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۵)

ابوبکر البزار رحمه الله فرمائی ((لیس بأس به)) (۶)

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ((لابأس به)) (۷)

نسائی رحمه الله فرمائی ((لیس به بأس)) (۸)

او ابن حبان د هغه ذکر په (کتاب الثقات) کښې کړیدې. (۹)

سبط ابن العجمی رحمه الله هم د هغه ثقه ګرځولې دې. (۱۰)

دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۱۱)

د هغوی انتقال په کال ۱۵۹ھ کښې شویدې (۱۲) رحمه الله رحمةً واسعةً.

---

۱) (د شیوخو او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۲۱ص۱۸۹-۱۹۰)-
۲) (تاریخ عثمان بن سعید الدارمی (ص۱۵۹)-
۳) (الکاشف (ج۲ص۵۰)-
٤) (تهذیب التهذیب (ج۷ص٤۰۱)-
۵) (حواله بالا-
۶) (حواله بالا-
۷) (تهذیب الکمال (ج۲۱ص۱۹۰)-
۸) (حواله بالا-
۹) (الثقات لابن حبان (ج۷ص۲۸۶)-
۱۰) (حاشیة الکاشف لابن العجمی (ج۲ص۵۰)-
۱۱) (میزان الاعتدال (ج۳ص۱٦٤)-
۱۲) (الکاشف (ج۲ص۵۰)-

۴- ابی اسحاق: دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید سبیعی رحمه الله دي. دَ دوی حالات «کتاب الإیمان باب الصلاة من الإیمان» لاندې تیرشوی دی. (۱)

۵- عمروبن میمون: دامشهورتابعی عمروبن میمون الاودی ابویحیی کوفی رحمه الله دي(۲)

۶- معاذ: دا ممتاز انصاری صحابی حضرت معاذبن جبل بن عمرو رضی الله عنه دي. دَ دوی مختصر حالات «کتاب الإیمان باب الإیمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم: بني الإسلام علی خمس» لاندې تیرشوی دی. (۳)

**قوله: قال: کنت ردف النبي صلی الله علیه وسلم علی حمار یقال له: عفیر:**

حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائی چه زه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم شاته په یو خر باندې چه هغې ته عفیر وائی سوروم. «ردف» دَ راء په کسراودال په سکون سره دې.

جوهری فرمائی چه «ردف» دَ مرتدف په معنی کښې دې یعنی هغه سړې چه سور پسې سور وی اودَ دې جمع «أرداف» ده. (۴)

«عفیر» دَعین په ضمه اوفاء په فتح سره دَ «أعفر» تصغیردې. لکه چه دَ اسود تصغیر سُوید دې. (۵) او قاضی عیاض دا لفظ دَ عین په ځایَ غین سره ضبط کړیدې چه وهم دې ځکه چه اکثر حضراتو دا په عین سره نقل کړیدې. (۶)

او «عفیر» دَ «عفرة» نه مشتق او ماخوذ دې دَ دې معنی سُوربخن سپین رنګې دې یعنی دَ خاورې دَ رنګ په شان، دَ دې خر نوم ئې «عفیر» ځکه کیخودې وو چه دَ دې رنګ سربخن سپین وو. (۷)

بیادا خبره باندې پوهه شئی چه دلته دَ باب په روایت کښې دَ هغه خر نوم «عفیر» راغلې. دغه شان په مسلم شریف (کتاب الإیمان) (۸) اودَ ابوداؤد (کتاب الجهاد) (۹) په روایت کښې هم دَ ده نوم هم «عفیر» ذکر دې. لیکن علامه خطابی رحمه الله دَ امام واقدی رحمه الله (۱۰) نه علامه

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص ۳۷۰)-
۲) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أوجیفة...-
۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۲۸)-
۴) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱٤۸) ولسان العرب (ج۹ص ۱۱۶)-
۵) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱٤۸)-
۶) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱٤۸)وشرح النووی علی مسلم (ج۱ص ٤٤)-
۷) (فتح الباری (ج۶ص۵۹)وشرح ابن بطال (ج۵ص ۶۰)-
۸) (صحیح مسلم کتاب الإیمان باب الدلیل علی أن من مات علی التوحید دخل الجنة قطعا رقم (۱٤٤)-
۹) (سنن أبی داؤد کتاب الجهاد باب فی الرجل یسمی دابته رقم (۲۵۵۹)-
۱۰ ) (قوله ابن بطال (ج۵ص ۶۰) وهو فی معالم السنن للخطابی (ج۳ص ۳۹۰) ولیس فیه ذکر الواقدی. وصنیع الخطابی دال علی أنه قائل بکونهما واحداً-

طبري رحمه الله (١) او شيخ ابومحمد لونى رحمه الله (٢) دَ دغه خر نوم ((يعفور)) نقل كړيدي.
اوس اختلاف دا پيدا شو چه آيا دا هم يو خرِ دې که دوه جدا جدا خرونه دی. دَ ابن عبدوس رحمه الله او ابن القيم رحمه الله خيال دا دې چه دا هم دَ يو خر دوه نومونه دی. او شرف الدين دمياطی رحمه الله فرمائی چه دا جدا جدا دوه خرونه وو. حضور ﷺ ته ((عفير)) شاه مقوقس په هديه کښې ورکړې وو او دوئم يعنی ((يعفور)) فروه بن عمرو حضور ﷺ ته دَ هديه په توګه پيش کړې وو أو بالعکس.(٣)

حافظ صاحب هم دا راجح ګرځولې دې چه دا دوه خرونه وو، فرمائی ((وهو غير الحمار الذی يقال له: يعفور)) (٤)

((يعفور)) په اصل کښې دَ هوسئی دَ بچی نوم دې اودې دوئم خر ته ((يعفور)) دَ هغه دَ تيزوالی په وجه ونيلې شوې دې ځکه چه دَ هوسئی بچې په منډه کښې تيز وی.(٥)

دَ امام واقدی رحمه الله وينا ده چه دا ((يعفور)) دَ نبی عليه السلام دَ حجة الوداع نه په واپسئی باندې هلاک شوې وو اوهم داعلامه نووی رحمه الله دَحافظ ابن الصلاح په حواله راجح ګرځولې دې.(٦)

خودَ سهيلی وينا ده چه په کومه ورځ دَ رسول الله ﷺ وفات اوشوهم په هغه ورځ ((يعفور)) خپل ځان په يوکوهی کښې ورګذارولو سره هلاک کړې وو. (٧)

دَ حديث باب نور تشريحات ((کتاب العلم باب من خصّ بالعلم قوما دون قوم)) لاندې تيرشوی دی.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه دَ حديث شريف په دې جمله کښې دې: ((يقال له: عفير)) (٨)

[٢٧٠٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ(٩) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لَنَا يُقَالُ لَهُ مَنْدُوبٌ فَقَالَ مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا [ر: ٢٤٨٤]

---

١) (شرح ابن بطال (ج٥ص٦٠)-
٢) (عمدة القاری (ج١٤ص١٤٨)-
٣) (حواله بالا وفتح الباری (ج٦ص٥٩)-
٤) (وفتح الباری (ج٦ص٥٩)-
٥) (حواله بالا وعمدة القاری (ج١٤ص١٤٨)-
٦) (حواله بالا وشرح النووی علی مسلم (ج١ص٤٤)-
٧) (وعمدة القاری (ج١٤ص١٤٨)-
٨) (حواله بالا-
٩) قوله: عن أنس بن مالک رضی الله عنه: الحديث مر تخريجه فی کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس

# تراجم رجال

۱- محمد بن بشار: دا مشهور امام حدیث محمدبن بشار عبدی بصری رحمه الله دي. د بندار په لقب باندې مشهور دې. د ده حالات ((کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم...)) لاندې تیرشوی دی.(۱)

۲- غندر: دا ابوعبدالله محمدبن جعفر هذلی رحمه الله دي.د غندرپه لقب مشهور دې. د ده حالات ((کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې راغلی. (۲)

۳- شعبه: داامام شعبه بن الحجاج رحمه الله دي. د ده حالات هم مختصراً ((کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده)) په ذیل کښې راغلی دی.(۳)

۴- قتاده: دا قتاده بن دعامه بن قتاده سدوسی رحمه الله دي. د ده حالات هم مختصراً ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې راغلی دی. (۴)

۵- انس بن مالك: حضرت انس بن مالك رضی الله عنه حالات هم ((کتاب الإیمان)) د مذکوره باب لاندې تیر شوی دی. (۵)

قوله: قال: کان فزع بالمدینة، فاستعار النبی صلی الله علیه وسلم فرسالنا یقال له المندوب: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل په مدینه کښې دننه د ویرې حالات پیدا شو نو حضوراکرم صلی الله علیه وسلم زمونږ اس واخستلو د کوم نوم چه "مندوب" وو.

دلته حضرت انس رضی الله عنه د اس نسبت خپل طرف کړو چه ((فرسالنا)) او همدغه روایت په ماقبل کښې هم راغلې په هغې کښې ((فرسا من أبی طلحه))(۶) الفاظ وارد شوی دی. یعنی هغه اس د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه وو. لیکن په دې دواړو روایتونو کښې څه تعارض او منافاة نشته ځکه چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه د حضرت انس رضی الله عنه ناسکه پلار اود هغه د مور ام سلیم رضی الله عنها دونم خاوندوو، نواس په اصل کښې د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه وومګر په دې حیثیت سره چه د حضرت انس رضی الله عنه د تربیت لاندې وو نو خپل طرف ته ئې د اس نسبت اوکړو. (۷)

قوله: فقال: ما رأینا من فزع، وإن وجدناه لبحرا: نو حضور صلی الله علیه وسلم واپس راغلو او

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۱۵۸)-
۲) (کشف الباری (ج۲ص ۲۵۰)-
۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۷۸)-
۴) (کشف الباری (ج۲ص۳)-
۵) (کشف الباری (ج۲ص ۴)-
۶) (صحیح البخاری کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس رقم (۲۶۲۷)-
۷) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۴۸) و شرح القسطلانی (ج۵ص۷۲)-

ونى فرمانيل مونږ هيڅ د ويرې خبره اونه ليدله او مونږ هغه د سمندر په شان اوموندلو.
"مندوب" نومې دا اس اول بطئ السيرو د حضور اكرم ﷺ د سوريدو په بركت تيز رفتار شو او سريع السير شو.(١)
اود علامه مهلب رحمه الله په حواله سره دا خبره اول راغلې چه د ټولونه اول د تيز اس تشبيه د سمندر سره نبى اكرم ﷺ وركړيده. (٢)
**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې: ((فرسالنا يقال له: مندوب)).(٣)

## ٤٧-بَاب: مَا يُذْكَرُ مِنْ شُؤْمِ الْفَرَسِ

**د باب د ترجمه مقصد:** د امام بخارى رحمه الله د دې باب د ترجمه مقصد دا دې چه په احاديثومباركو كښې د اسونوپاره كښې چه دا كوم راغلى دى چه په دې كښې شوم او نحوست دې هغه په خپل عموم باندې دى يا د بعضو اسونو سره مخصوص دى. هغه په خپل ظاهر باندې دى يامؤول باندې دى؟ (۴)
بيا مصنف رحمه الله په دې باب كښې دوه احاديث ذكر كړى دى، حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او حديث سهل بن سعد الساعدى رضي الله عنه.
د سهل بن سعد رضي الله عنه حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه پس ذكر كولو سره د دې خبرې طرف ته اشاره كړيده چه حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما كښې چه كوم حصر وارد شويدې هغه په خپل ظاهر باندې نه دې. د دې باب نه پس د باب ترجمه "الخيل لثلاثة...." كښې هم د دې خبرې ذكر دې چه شوم بعض اسونو سره خاص دې، د هر يو اس حكم دا نه دې او دا ټول د امام بخارى رحمه الله د نظر لطافت او د فكر د دقت نتيجه ده.(٥)

[٢٧٠٣] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ(٦) النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّمَا الشُّؤْمُ فِي ثَلَاثَةٍ فِي الْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ وَالدَّارِ [ر: ١٩٩٣]

## تراجم رجال

١- ابواليمان: دا ابواليمان حكم بن نافع بصرى رحمه الله دې.

---

١ ) (شرح القسطلانى (ج٥ص٧٢) ويدل عليه قوله: فرسالأبى طلحة بطيئا فى باب السرعة والركض فى الفزع رقم (٢٩٦٩)-
٢) شرح ابن بطال (ج٥ص٣٤٥)-
٣ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٤٨)-
٤ ) (فتح البارى(ج٥ ص٧٢) وعمدة القارى (ج١٤ص١٤٩)-
٥ ) (فتح البارى(ج٦ص ٦٠)-
٦ ) (قوله: ان عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: احديث، مرتخريجه فى كتاب البيوع باب شراء الابل الهيم اوالاجرب-

۲-شعیب: دا ابوبشر شعیب بن ابی حمزة قرشی اموی رحمه الله دې، دَ دې دوارو مختصر حالت "بدء الوحی" دَ شپږم حدیث په زمره کښې راغلې دي. (۱)

۳-الزهري: دا امام محمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې، دَ هغوی حالات هم دَ "بدء الوحی" په دریم حدیث کښې تیرشوی دی. (۲)

۴-سالم بن عبدالله: دا ابو عمر سالم بن عبدالله بن عمر بن خطاب رحمه الله دې، دَ هغه هم مختصر حالات "کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان" لاندې تیرشویدې. (۳)

۵-عبدالله بن عمر رضی الله عنهما: دا مشهور صحابی دَ رسول الله ﷺ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه دې، دَ هغوی حالات ((کتاب الایمان، باب قول النبی ﷺ: بنی الاسلام علی خمس)) کښې تیرشویدې. (۴)

اخبرني سالم: دغه شان شعیب دَ زهری رحمه الله نه نقل کړی دی چه سالم دَ زهری نه دا حدیث بیان کړو او ابن ابی ذئب دَ شاذ امر ارتکاب کړیدې چه دَ امام زهری او سلام په مینځ سند کښې ئې محمد بن زبید بن قنفذ داخل کړیدې: یعنی صحیح دا ده چه په دې سند کښې دَ امام زهری او سالم په مینځ کښې بل راوی نشته. (۵)

قوله: قال: سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: انما الشؤم فی ثلاثة: فی الفرس، والمراة، والدار: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ نه ماداسې فرمائیلوسره واوریده چه نحوست په اس کښې، ښخه کښې او په کورکښې وی.

دَ "شوم" لفظ شین معجمه او همزه سره دې او کله په دې کښې تسهیل کولې شی نو په ځای دَهمزه واؤ کیږی (۶) اودَ دې معنی نحوست او بدفالی ده. (۷)

[۲۷۰۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي حَازِمِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۱) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ فَفِي الْمَرْأَةِ وَالْفَرَسِ وَالْمَسْكَنِ [۴۸۰۷]

---

۱) (کشف الباری (ت۱ص۴۷۹-۴۸۰)-
۲) (کشف الباری (ج۱ص۳۲۶)-
۳) (کشف الباری (ج۲ص۱۲۸)-
۴) (کشف الباری (ج۱ص۶۳۷)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۶۰) وعمدة القاری (ج۱ص۱۴۹)-
۶) (فتح الباری (ج۶ص۶۰)-
۷) (التمهید (ج۹ص۲۷۸)-

[.... بقیه حاشیه په راروانه صفحه.....

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن مسلمه: دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبی رحمه الله دي.

۲- مالك: دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس اصبحی رحمه الله دي، دَ دې دواړو حضراتو حالات ((کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن)) کښې تیرشوی دی.(۲)

۳- ابوحازم: دا مشهور زاهد، ابو حازم بن دینار مولی الاسود مدنی رحمه الله دي. (۳)

۴- سهل بن سعدالساعدی: دَصحابی رسول ﷺ حضرت سهل بن سعدالساعدی رضی الله عنه حالات هم تیرشوی دی. (۴)

**قوله:** ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: ان کان فی شئ ففی المراة والفرس والمسکن: حضرت سهل بن سعدالساعدی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه (نحوست) که په یو څیز کښې وې نو په ښځه کښې، په اس کښې او دَ اوسیدو په ځائ (مسکن) کښې به وو.

**یوسوال اودَ هغې جوابونه:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دوه احادیث ذکر کړی دی. په دې احادیثو باندې دا اشکال کیږی چه دَ حضوراکرم ﷺ په یوبل حدیث کښې چه دَ حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې په دې کښې دی: "لاعدوی، ولاطیرة" (۵) او په دې حدیث کښې دَ بدفالئی نه منع کړې شوې ده، ښځه کوراو اس کښې دَ شوم دا تصور بدفالی او بدشګونی نه ده نو نور څه دی؟ په ظاهره دواړو قسم روایاتوکښې تعارض دې.
دَ دې تعارض دَلرې کولودَپاره مختلف حضرات او محدثین مختلف جوابونه ورکوی:

① امام مالك او ابن قتیبه رحمه الله دَ باب احادیث په خپله ظاهری معنی باندې محمول کړی دی اوونیلی دی چه دااحادیث په دې دوئم حدیث کښې بیان شوی عام قانون نه مستثنی دی.(۶)

---

...دتیرمخ حاشیه[ ۱ ] (قوله: عن سهل بن سعدالساعدی رضی الله عنه الحدیث اخرجه الخاری ایضاً (ج۲ص۷۶۳ کتاب النکاح باب یتقی من شؤم المراة.... رقم (۵۰۹۵) ومسلم کتاب السلام باب الصنرة والفال ومایکون فیه الشئوم رقم (۵۸۱۰) والترمذی ابواب الادب باب ماجاء فی الشئوم رقم (۲۸۲٤) وابن ماجه ابواب النکاح باب مایکون فیه الیمن والشئوم رقم (۱۶٦٤)-

۲ ) (کشف الباری(ج۲ص ۸۰) وایضا انظر لترجمة الامام مالک بن انس کشف الباری(ج۱ص ۲۹۰)-

۳ ) (دَ هغوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء، باب غسل المراة اباها الدم عن وجهه-

٤) حواله بالا-

۵ ) (الحدیث اخرجه البخاری کتاب الطب باب الفال رقم (۵۷۵۶) وباب لاعدوی رقم (۵۷۷۶ ومسلم کتاب السلام باب الطیرة والفال رقم (۵۸۰۰و ۵۸۰۱)و ابوداؤد ابواب الطب باب فی الطیرة رقم (۳۹۱۶) والترمذی ابواب السیر باب ماجاء فی الطیرة رقم(۱۶۱۵)-

۶ ) (فتح الباری(ج۶ص ۶۱)-

④ علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دا احادیث دَ قرآن کریم دَ آیت ﴿ ما اصاب من مصیبة فی الارض ولا فی انفسکم الا فی کتاب ﴾ (۱) سره منسوخ دی (۲) لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په دې جواب باندې رد کړیدې او فرمائی "والنسخ لایثبت بالاحتمال" (۳)
⑤ ابن العربی رحمه الله دافرمائی چه دا کلام حرف شرط سره دې، لکه څنګه چه دَ باب بل روایت حضرت سهل بن سعد کښې ((ان کان الشؤم......)) حرف شرط سره دې او معنی دا ده چه شوم ونحوست که چرته په یو څیز کښې کیدیشی نو هغه ښځه، کور او اس کیدیشی.(۴) (لیکن شوم یعنی سپیره والې په څه څیز کښې نه وی نودَ دې دَ پاره په دې دریو څیزونوکښې هم دَ دې تصور نشی کیدلې).
⑥ بعض علماؤ فرمائی چه په حقیقت کښې شوم په دوه قسمه دې، یو شوم په معنی دَ عدم موافقت او دوئم شوم په معنی دَ نحوست.

نودشوم په حدیث باب کښې په معنی دَعدم موافقت دې او ((لاعدوی ولا طیرة)) کښې په معنی دَ نحوست دې. په دې صورت کښې به دَ کور بدفالئی مطلب دا وی چه هغه تنګ وی یا هلته ګاونډیان ښه نه وی یا دَهغه ځائ آب وهوا خرابه وی دغه شان دَ شؤم مرأة مطلب دا دې چه دَهغې اولاد نه وی، اوږد ژبې وی، دَ پاك دامنئ خیال نه ساتی او دَ شؤم فرس مطلب دا دې چه هغه په جهاد کښې په کار رانشی یاسرکش وی یا دَ هغې قیمت زیات وی.(۵)
علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی:

((وقد فسر معمر فی روایته لهذا الحدیث الشؤم تفسیرا حسنا: قال معمر: سمعت من یفسر هذا الحدیث یقول: شؤم المرأة اذا کانت غیر ولود، وشؤم الفرس اذا لم یغز علیه فی سبیل الله، وشؤم الدار جار السوء)). (۶)
او معمر رحمه الله دَ دې حدیث په روایت کښې دَ شوم ښه تفسیر بیان کړیدې. هغوی فرمائی چه دَ هغه نه می اوریدلې چه دَ دې حدیث تفسیر او وضاحت ئې بیانولو چه دَ ښځې شوم دا دې چه دَ هغې بچی نه کیږی، دَ اس شوم دا دې چه په دې دَ الله تعالی دَ پاره جنګ نه کوی او دَ کور شوم دا دې چه دَ هغې ګاونډی خراب وی.
دَ آخری جواب تائید دَ حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه هغه مرفوع حدیث نه هم کیږی کوم

---

۱) (الجدید ۲۲)-
۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۵۰) والتمهید (ج ۹ص ۲۸۵)-
۳) (فتح الباری (ج ۶ص ۶۲)-
٤) (حواله بالا، وتکملة فتح الملهم (ج٤ص ۳۸۱) وعمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۵۱) قال العینی وهنا اسم کان مقدر ان کان الشؤم فی شئ حاصلا فیکون فی المراة والفرس والمسکن فقوله ان کان فی شئی الی اخره اخبار انهلیس فیهن فاذالم یکنفی هذه الثلاثة فلایکون فی شئ-
۵) (لامع الدراری (ج ۹ص ۲۶۷) ورجح هذا الجواب الشیخ الکاندهلوی انظر تعلیقات لامع الدراری-
۶) (التمهید لابن عبدالبر (ج ۹ص ۲۷۸-۲۷۹) والمصنف لعبدالرزاق (ج ۱ص ٤۱۱ رقم (۱۹۵۲۷)-

چه امام احمد رحمه الله روایت کړیدي. په دې کښې دي:

((من سعادة المرء المراة الصالحة والمسكن الصالح والمركب الهنئ ومن شقاوة المرء المراة السوء والمسكن السوء والمركب السوء)). (۱)

يعنې د سړي په خوشبختئ کښې دا دي چه د هغه ښځه نيکه وي، د هغه د اوسيدو ځائ ښه وي او د هغه سورلي ښه وي او د سړي بدبختئ نه دا دي چه د هغه ښځه بداخلاقه وي د هغه د اوسيدو ځائ خراب وي او د هغه سورلي خرابه وي. او دا څيز د هرجنس بعض قسمونو سره مختص دې. (۲)

**خاص د دې دريو څيزونو ذکر کولو وجه:** د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث باب اداة حصر سره وارد شويدې چه شوم هم په دريو څيزونوکښې وي ښځه اس او کور. (۳)

بعض حضراتو مثلاً ابوالعباس قرطبي رحمه الله فرمائي چه د دې دريو څيزونو ذکر سره د خاص کولو وجه د ملازمت طول او اوږدوالي دې. يعنې د انسان هم دې څيزونو سره واسطه پريوزي ځکه چه انسان په غالب احوالوکښې د کور نه چه په کښې اوسيږي، د ښځې نه چاسره چه د ژوندتيرولو تعلق وي او ترلي شوي اس نه کوم چه ده د جهاد د پاره تيار ساتلي وي مستغني کيدې نشي. (۴)

**آيا شوم مذکور په دې دريو څيزونوکښې محصور دې؟:** بيا دا خبره ياد ساتئ چه د باب حديث طرق هم په دې دريو څيزونو متفق دي يعنې په ټولو طرقو کښې هم د فرس، مراة او دار ذکر دې البته مصنف عبدالرزاق (۵) کښې "معمرعن ام سلمة" په طريق ((السيف)) اضافه هم موجود ده. کوم نه چه معلوميږي چه توره هم شوم او نحوست وي او علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي ((رواه جويرية عن مالك عن الزهري ان بعض اهل ام سلمة زوج النبي صلى الله عليه وسلم اخبر ان ام سلمة كانت تزيد السيف)) (۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله چه د دې زياتوالي متعلق کوم کلام ذکر کړيدې د هغې خلاصه مونږ دلته ذکر کوو: دا حديث سره د دې زياتوالي امام دارقطني په "غرائب مالك" کښې نقل کړيدې او د هغه سند تر زهري رحمه الله پورې صحيح دې. بيا جويريه په دې حديث کښې منفرد هم نه ده بلکه سعيد بن داؤد د هغې متابعت کړيدې، دا متابعت هم امام دارقطني نقل کړيدې او هغه فرمائيلي چه د جويريه په روايت کښې چه کوم مبهم راوي دې هغه ابو عبيده عبدالله بن زمعه دې، دغه شان امام ابن ماجه رحمه الله دا روايت "سيف" د زياتوالي سره په خپل

---

۱) (المسند الامام احمدبن حنبل (ج۱ص۱۶۸)-
۲) (فتح الباري(ج۶ص۶۲) وانظر ايضا کشف الباري کتاب النکاح (ص۱۸۱)-
۳) (حواله بالا وعمدة القاري (ج۱۴ص۱۴۹) وطرح التثريب في شرح التقريب (ج۷ص۲۱۵۳)-
۴) (وعمدة القاري (ج۱۴ص۱۴۹) وطرح التثريب في شرح التقريب (ج۷ص۲۱۵۳)-
۵) (المصنف لعبدالرزاق (ج۱۰ص۴۱۱) رقم (۱۹۵۲۷)-
۶) (التمهيد لابن عبدالبر(ج۹ص۲۷۹)-

سنن کښې موصولاً ذکر کړيدي دي. د هغه په سند کښې ابوعبيده عبدالله بن زمعه صراحت دي او د هغه روايت الفاظ دا دي:

**قوله: عن زينب بنت ام سلمة عن ام سلمة انها حدثت بهذه الثلاثة وزادت فيهن والسيف:** (١) زينب بنت ام سلمه دا د ابوعبيده عبدالله بن زمعه مور ده، حديث باب امام نسائي رحمه الله (٢) هم د سند په څه اختلاف سره نقل کړيدي. دې کښې هم د "سيف" زياتوالې موجود دې. (٣)

علامه ابن عربي رحمه الله فرمائي چه حصر په نسبت د عادت دې يعنى خلق عادةً په دې څيزونو کښې نحوست ګڼړي او دا څه خلقي يا فطري معامله نه ده چه په دې څيزونو کښې به خامخا څه نحوست وي، دا مطلب حصر نه دې چه دا درې څيزونه پيدائشي مشؤم او منحوس وي، کله نحوست د دوو کسانو سره په اوسيدو سره کيږي، کله په سفر کښې کيږي او کله په هغه کپړا کښې وی کومه چه بنده نوې نوې اخلى، د دې د پاره نبي کريم ﷺ فرمائيلي دی ((اذا لبس احدكم ثوبا جديدا فليقل: اللهم انى اسالك من خيره وخير ما صنع له، واعوذبك من شره وشر ما صنع له)) (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د باب د رومبى حديث مناسبت ترجمة الباب د حديث جملې ((فى الفرس)) په جمله کښې دې او د دوئم حديث مناسبت هم ترجمه سره بالکل واضح او ظاهر دې. (۵)

**تنبيه:** دا د شؤم مسئله (كتاب النكاح) (۶) کښې هم تيره شويده او دلته هم امام بخاری رحمه الله دا روايات نقل کړيدی، ترجمه ئې هم قائم کړيده او د جهاد په مناسبت سره شؤم فرس ئې هم بيان کړيدې د کوم تفصيل چه په ما قبل کښې مونږ بيان کړيدې.

## ۴۸- بَاب: الْخَيْلُ لِثَلَاثَةٍ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری دلته دا اوفرمائيل چه اسونه درې وی يعنى د اسونو پالونکو کسانو د نوعيت په اعتبار سره درې قسمونه دی. (۷)

---

١) (سنن ابن ماجه كتاب النكاح باب مايكون فيه اليمن والشؤم رقم ١٩٩٥)-
٢) (سنن النسائى الكبرى (ج۵ص۴۰۳) كتاب عشرة النساء ابواب حقوق الزوج شؤم المرءة رقم (ج۵ص ٩٢٨٠)-
٣) (فتح البارى(ج۶ص۶۳)-
٤) (الحديث رواه ابوداؤد فى كتاب اللباس باب ما يقول اذا لبس ثوبا جديدا رقم (٤٠٢٠) والترمذى فى كتااللباس باب ما يقول اذا ليس ثوباجديدارقم (١٧٩٧) وطرح التثريب فى شرح التقريب (ج۷ص ٢١۵٣)-
۵) (عمدة القارى (ج ١٤ص١٣٩و١۵١)-
۶) (صحيح البخارى(ج٢ص٧۶٣) كتاب النكاح باب مايتقى من شؤم المراة وكشف البارى كتاب النكاح (ص ١٨٠-١٨٢)-
٧) (عمدة القارى(ج ١٤ص١۵١)-

یو خیل خو هغه دي چه دَ اجر او ثواب سبب جوړیږی او دا هم هغه خیل دي چه دَ جهاد دَ پاره اوساتلې شی. دونم هغه دی چه ستر او پردې پتولو او دَ دوزخ دَ اور نه دَ حجاب سبب جوړیږی او هغه دا دی چه کوم سړې اس اوساتی او دَ هغه چه دَ الله تعالی دَ طرف نه کوم حقوق مقرر دی هغه ادا کړی. دَ ده ښه خیال اوساتی، او دریم اس هغه دې چه دَ اسلام سره دَ دښمنئ دَ پاره اوساتلې شی.
بیا امام بخاري دَ حدیث باب په رومبنئ حصه کښې باب دَ ترجمه جزء جوړکړیدې. (۱) لکه څنګه چه دَ هغه معروف عادت دې. (۲)
حضرت شیخ الحدیث ﷫ دَ ترجمه غرض دا خودلې دې: ((ویحتمل عندی فی وجه الغرض من الترجمة: انه الاشارة الی ما سبق من شؤم الفرس من حیث الحصر الوارد فی الحدیث، فانه لم یتعرض فیه الی الشؤم)) (۳)
یعنی زما په نزد دَ باب دَ ترجمه په غرض کښې دا احتمال دې چه امام بخاری ﷫ دَ دې ترجمه نه دې طرف ته اشاره کوی چه په ما سبق کښې په کومو دریوڅیزونو کښې حصر وارد شوې وو چه په دې کښې نحوست دې په دې کښې اس هم شامل وو نو هغوی په سابق کښې دَ بیان شوی شوم نه دلته تعرض نه دې کړې.
دکوم نه چه دا معلومه شوه چه په هریو اس کښې نحوست نه وی. کما سبق منا ذکرہ فی الباب السابق
آیا اسونه هم په دې دریو قسمونوکښې منحصر دی؟: دلته سوال دا پیدا کیږی چه نبی کریم ﷺ دَ باب په حدیث کښې دَ خیل درې قسمونه بیان فرمائیلی دی نو آیا دَ خیل صرف همدغه درې قسمونه دی که نور هم شته؟
حافظ ابن حجر ﷫ دَ دې جواب کښې فرمائی چه دَ باب حدیث نه بعض شراح حصر مراد اخستې دې چه دَ اسونوهم درې قسمونه دی. هغه داسې چه اس پالل او هغه ساتل خو به مطلوب وی یا به مباح وی او یا به ممنوع، نو په مطلوب کښې واجب او مندوب دواړه داخل دی او ممنوع کښې حرام او مکروه دواړه داخل دی. (۴)
بیا بعضو حضراتو په دې باندې اعتراض اوکړو چه په حدیث کښې خو دَ مباح ذکر نشته، څکه چه کوم دریم قسم دَ اسونودې هغه دې قید سره مقید دی "ولم ینس حق الله فیه" نودا خو مندوب سره ملحق شو نو دلته دَ مباح قسم کوم ځائ نه راغلو؟
دَدې اعتراض جواب دا دې چه دَ نبی کریم ﷺ غالب عادت دا وو چه هغوی ﷺ به هم دَ دې څیزونو اهتمام فرمائیلو په کوم کښې چه دَ څه څیز ترغیب وی یا دَ امر نه منع کړیشوې وی. ترکومې چه دَ خالص مباحاتو تعلق دې نودَ دې بیان نه هغوی ﷺ سکوت فرمائی،

۱) (حواله بالا وفتح الباری (ج۶ص ۶۴)-
۲) (کشف الباری (ج۱)-
۳) (الابواب والتراجم للشیخ الکاندهلوی (ج۱ص۱۹۶)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص ۶۴)-

ځکه چه داخبره معلومه ده چه د دې مباحاتونه سکوت د عفواو معافئې دليل دې. (١)
او حافظ صاحب رحمه الله د مذکوره اعتراض جواب فرمائي چه دا هم ممکن دی چه دونم قسم خالص د مباح وی مګر دا چه د نيت د خلوص په وجه هغه کله کله د ندب درجې ته اورسي په خلاف د اول قسم ځکه چه هغه خو د شروع نه مطلوب دی (٢) يعنی په اول قسم کښې د اس تړلو نيت هم د جهاد د پاره وو نو هغه خو د شروع نه مطلوب او مقصود دې. والله اعلم.

قوله: وَقَوْلُهُ تَعَالَى وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ: [النحل:٨] او د الله تعالى قول دې او(هغه)اسونه قچرې او خره پيداکړی دې د پاره چه تاسو په دې سواره شئ او زينت هم دې.

د(الخيل....) عطف د ماقبل "والانعام" باندې دې په دې وجه د مفعوليت په وجه منصوب دې (٣)
او د قرآن کريم مذکوره آيت د ترجمة الباب دونم جزء دې او دا آيت هم د باب حديث کښې په مذکوره تقسيم باندې دلالت کوی. اومطلب دا دې چه مذکوره څيزونه يعنی اس قچر اوخر الله تعالى د سورلئې او ښائست د پاره پيدا کړی. اوس که يو سړې دا په څه کار کښې استعمالوی نود ده د پاره دا مباح دی. د دې نه پس که دې کار سره د عبادت نيت هم شامل شی نو هغه مباح نه ترقی کوی او امر مندوب کښې شامليږی او که د معصيت نيت اوکړی يعنی د فخر او مباهاتو نودا په ګناه کښې شامليږی. (۴)

فائده: تاسو ګورئې چه د الله تعالى مذکوره بالاقول کښې معطوف او معطوف عليه په يوه طريقه باندې نه دې. معطوف عليه خو "لتركبوها" دې او معطوف "زينة" كلمه ده، په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه رکوب د مخاطبينو فعل دې او زينت، د زينت ورکونکی خالق فعل دې. (۵)

[٢٧٠٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٦) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلَاثَةٍ لِرَجُلٍ أَجْرٌ وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ وَعَلَى رَجُلٍ وِزْرٌ فَأَمَّا الَّذِي لَهُ أَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَأَطَالَ فِي مَرْجٍ أَوْ رَوْضَةٍ فَمَا أَصَابَتْ فِي طِيَلِهَا ذَلِكَ مِنَ الْمَرْجِ أَوِ الرَّوْضَةِ كَانَتْ لَهُ حَسَنَاتٍ وَلَوْ أَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ أَرْوَاثُهَا وَآثَارُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ وَلَوْ أَنَّهَا مَرَّتْ

---

١) (فتح البارى (ج٦ص ٦٤)-
٢) (حواله بالا-
٣) (عمدة القارى(ج١٤ص١٥١)-
٤) (فتح البارى (ج٦ص ٦٤)-
٥) (عمدة القارى(ج١٤ص١٥١)-
٦) (قوله: عن ابى هريرة رضى الله عنه الحديث مر تخريجه فى كتاب المسافاة باب شرب الناس وسقى الدواب من الانهار-

بِنَهرٍ فَشَرِبَتْ مِنهُ وَلَمْ يُرِدْ أَنْ يَسْقِيَهَا كَانَ ذَلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ وَرَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَرِئَاءً وَنِوَاءً لِأَهْلِ الإِسْلَامِ فَهِيَ وِزْرٌ عَلَى ذَلِكَ وَسُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الحُمُرِ فَقَالَ مَا أُنْزِلَ عَلَيَّ فِيهَا إِلَّا هَذِهِ الآيَةُ الجَامِعَةُ الفَاذَّةُ فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ [ر: ٢٢٤٢]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن مسلمه: دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبی رحمه الله دې.

۲- مالك: دا امام مالك بن انس رحمه الله دې، دَ دې دواړو حضراتو حالات ((كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن)) لاندې تيرشوى دى.(۱)

۳- زيد بن اسلم: دا مولى عمرزيد بن اسلم العدوى دې. دَ دوى حالات هم په مذكوره بالا باب كښې تيرشوى دى. (۲)

۴- ابوصالح السمان: دا ابوصالح ذكوان السمان الزيات رحمه الله دې.

۵- ابوهريره رضي الله عنه: دا مكثر صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې، دَ دې دواړو حضراتو حالات "كتاب الايمان، باب امور الايمان" كښې تيرشوى دى. (۳)

**قوله:** ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: الخيل لثلاثة: دَ بخارى شريف په تولونسخوكښې "لثلاثة" دې، اودَ كشميهنى په روايت كښې "الخيل ثلاثة" دې بغيردَ لام نه(۴)

**دَ اسونودَ دريوقسمونو په مينځ كښې دَ حصر وجه:** دَ دې دريواړو قسمونو په مينځ كښې دَ حصر وجه دا دې چه اس به دَ سورلئى دَ پاره ساتلې شي يا دَتجارت دَ پاره، بيا په دې دواړو كښې دَ هريو قسم سره به څه عبادت مقترن وى، نودا اول قسم دې يا څه معصيت يا گناه مقترن وى نو دا دريم قسم دې. ياهر دوه قسمه دَ يو قسم نه خالى وى نو دا دونم قسم دې، او دَ دونم قسم نه مراد هغه صورت دې كله چه هغه ستر جوړ شي (۵)

**دَ حديث باب ترجمه:** دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه اس دَ درې قسم سړو سره كيديشى. دَ يو سړى دَپاره دَ اجر ذريعه دې، او دَ يو سړى دَ پاره ستر دې او دَ يو دَ پاره دَ جرم سبب دې. هغه سړې دَ چا دَ پاره چه اجر او ثواب دى هغه سړې دې چه هغه دَ الله تعالى په لاركښې دَ جهاد دَ پاره اوساتى او دَ څرن په ځاى يا باغ كښې هغه په اوږده رسئى باندې

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص ۸۰) وانظرايضاً لترجمة الامام مالك بن انس كشف البارى (ج۱ص ۲۹۰)-
۲) (كشف البارى (ج۲ ص ۲۰۳)-
۳) (كشف البارى (ج۱ ص۲۵۸-۲۵۹)-
۴) (عمدة القارى(ج ۱۴ص ۲۵۲) وفتح البارى (ج۶ص ۶۴)-
۵) (فتح البارى ج۶ ص ۶۴)-

اوتړی نو چه د هغه څرن د ځای یا باغ کومه کومه حصه په دې رسئی کښې دننه راشی نو د هغه هومره د کویرابر نیکئی به هغه ته ملاویږی. اوکه اتفاقی هغه خپله رسئی اوشلوله او په یوه غونډئی یا دوو غونډو باندې تیرشو نود هغه د خاشنړو د وزن او د قدمونود نښوبرابر نیکئی به ورته ملاویږی. اوکه دا اس چرته په نهر باندې تیرشو اود هغې اوبه اوڅکی سره د دې چه مالك د اوبوڅکلو اراده نه وی کړې نوبیا به هم ده ته نیکئی ملاویږی. اوکوم سړې چه د خان خودنې د پاره یاد فخر په غرض اوتړی اود اهل اسلام د دښمنئی د پاره ئی اوساتی نو هغه اس د ده د پاره د جرم سبب دې. کله چه د رسول الله ﷺ نه د خرو باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی ﷺ اوفرمائیل د دوی باره کښې ماته څه حکم نه دې نازل شوې. مګردا آیت ﴿فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۝ وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ څوك چه ذرې برابر نیکئی کوی هغه به وینی، او څوك چه د ذرې برابر بدی کوی هغه به وینی، دا آیت جامع او منفرد دې.

**یوڅوضروری فوائد:** حدیث باب خو "کتاب المساقاة" کښې تیرشوې دې په دې وجه مونږ دلته صرف د حدیث په ترجمه اکتفا اوکړه، البته د یو څوضروری فواندو ذکر کول به د فائدې نه خالی نه وی او هغه دا دی:

① لکه څنګه چه اوس مونږ اوخودل چه دا روایت "کتاب المساقاة" کښې تیرشوې دې د دې د پاره امام بخاری رحمه الله حدیث باب دلته په اختصارسره ذکر کړو او دونم قسم ئی اختصاراً حذف کړو. د دونم قسم ذکر د "کتاب المساقاة" په روایت کښې داسې ذکر دې: ((ورجل ربطها تغنيا وتعففا ثم لم ينس حق الله في رقابها ولاظهورها فهي لذلك ستر)) (۱)

او یو سړې هغه دې چه د خلقو نه بې پرواه اوسیږی او د هغوی په وړاندې د سوال د پاره خپل لاس خورولو نه د بچ کیدلو د پاره اس ساتی او بیا د هغه د سټ او د هغه د شا په سلسله کښې د الله تعالی حق هم نه هیروی نو دا اس د خپل مالك د پاره پرده ده.

② د حدیث باب د جملې ((ولم يردان يسقيها)) نه معلومیږی چه بنده ته به د دې جزئیاتو هم ثواب او اجر ملاویږی چه د طاعت او عبادت د فعل په مینځ کښې واقع وی په دې شرط چه اصل یعنی د عبادت قصد او ارادې نیت موجود وی. دا د الله تعالی د طرف نه په خپلو مؤمنانو بندیګانو فضل او احسان دې. (۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

((وفيه ان الانسان يؤجر على التفاصيل التي تقع في فعل الطاعة اذا قصد اصلها وان لم يقصد تلك التفاصيل)) (۳)

③ د اسونو تندو سره خیر او برکت تړلې وی خو چه کله د هغې ساتل د عبادت د پاره یا د

---

۱) (صحيح البخاری كتاب المساقاة باب شرب الناس وسقى الدواب من الانهاررقم (۲۳۷۱) وعمدة القاری (ج۲۴ص۱۵۲)ولكرمانی (ج۱۲ص۱۴۱)-

۲) (التمهيد(ج٤ص۲۰۳) وشرح ابن بطال (ج۵ص۶۳)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص٦٤)-

څه مباح کار د پاره وی. کنی د دې ساتل مذموم او د ګناه ذریعه ده. حافظ رحمه الله فرمائی:

((وفی هذا الحدیث بیان ان الخیل انما تکون فی نواصیها الخیر والبرکة اذا کان اتخاذها فی الطاعة اوفی الامور المباحة والافهی الجامعة مذمومة)) (۱)

**قوله: فقال: ما انزل علی فیها الا هذه الایة الجامعة الفاذة:** نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: د دې په بابت کښې په ما څه حکم نه دې نازل شوې. مګر دا آیت ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۝ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ ۝﴾ جامع او منفرد دې.

ابن التین رحمه الله فرمائی مطلب دا دې چه دا آیت په دې خبره باندې دلالت کوی چه کوم سړې خره د عبادت او طاعت د پاره اوساتی نو د هغې ثواب به وینی او که د دې خرو په ذریعه د څه معصیت او ګناه کارکوی نو بیا به هم د هغې سزا او راګیرول وینی. (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت او مطابقت بالکل واضح دې او هغه ((الخیل لثلاثة)) دې. (۳)

## ۳۹- بَاب: مَنْ ضَرَبَ دَابَّةَ غَيْرِهِ فِي الْغَزْوِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله دا بیان کول غواړې چه د سفر په دوران قافله کښې که د چا سورلی د کمزورتیا اولاغرتیا په وجه اودریږی نو د سورلئی د مالك امداد او اعانت کولو د پاره هغه وهل پکار دی چه هغه سورلی روانه شی. (۴)

[۲۷۰۶] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا أَبُو عَقِيلٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيُّ قَالَ أَتَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيَّ فَقُلْتُ لَهُ حَدِّثْنِي بِمَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَافَرْتُ مَعَهُ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ قَالَ أَبُو عَقِيلٍ لَا أَدْرِي غَزْوَةً أَوْ عُمْرَةً فَلَمَّا أَنْ أَقْبَلْنَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَتَعَجَّلَ إِلَى أَهْلِهِ فَلْيُعَجِّلْ قَالَ جَابِرٌ فَأَقْبَلْنَا وَأَنَا عَلَى جَمَلٍ لِي أَرْمَكَ لَيْسَ فِيهِ شِيَةٌ وَالنَّاسُ خَلْفِي فَبَيْنَا أَنَا كَذَلِكَ إِذْ قَامَ عَلَيَّ فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا جَابِرُ اسْتَمْسِكْ فَضَرَبَهُ بِسَوْطِهِ ضَرْبَةً فَوَثَبَ الْبَعِيرُ مَكَانَهُ فَقَالَ أَتَبِيعُ الْجَمَلَ قُلْتُ نَعَمْ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ وَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ فِي طَوَائِفِ أَصْحَابِهِ فَدَخَلْتُ إِلَيْهِ وَعَقَلْتُ الْجَمَلَ فِي نَاحِيَةِ الْبَلَاطِ فَقُلْتُ لَهُ هَذَا جَمَلُكَ فَخَرَجَ فَجَعَلَ يُطِيفُ بِالْجَمَلِ وَيَقُولُ الْجَمَلُ جَمَلُنَا فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَاقٍ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ أَعْطُوهَا جَابِرًا ثُمَّ قَالَ اسْتَوْفَيْتَ الثَّمَنَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ الثَّمَنُ وَالْجَمَلُ لَكَ [ر: ۴۳۲]

---

۱) (حواله بالا (ص۶۵)-

۲) (حواله بالا-

۳) (عمدة القاری (ج۱٤ص۵۵۲)-

٤) (عمدة القاری (ج۱٤ ص۱۵۲) وفتح الباری (ج۶ص۶۶)-

# تراجم رجال

۱- مسلم: دا مسلم بن ابراهیم القصاب فراهیدی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه)) لاندې تیرشوی دی. (۱)

۲- ابوعقیل: دا ابوعقیل بشیربن عقبه السامی رحمه الله دې (۲)

۳- ابوالمتوکل الناجي: دا ابوالمتوکل علی بن داؤد الناجی رحمه الله دې. (۳)

۴- جابر بن عبدالله: دا دَ رسول الله ﷺ مشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنه دې. (۴)

**قوله: قال: سافرت معه فی بعض اسفاره - قال ابوعقیل: لاادری غزوة ام عمرة:** حضرت جابربن عبدالله الانصاری رضی الله عنه فرمائی چه ما دَ رسول الله ﷺ سره دَ هغوی په بعض سفرونوکښې سفراوکړو، راوی حدیث ابوعقیل رحمه الله وائی چه ماته دا معلومه نه ده چه مذکوره سفر دَ کومې غزوه وو یا دَ عمرې وو.

**دا پورتنې سفردَ غزوې ووکه دَ عمرې؟:** دلته راوی ابوعقیل رحمه الله ته شك پیدا شوې دې چه سفردَ څه څیز دَپاره وو دَ غزوه دَپاره یا دَ عمرې دَ پاره. لیکن دَ روایاتو دَ تتبع نه هم دغه معلومیږی چه سفردَ غزوه وو. همدغه حدیث امام بخاری رحمه الله په کتاب البیوع کښې هم نقل کړیدې، په دې کښې دَ "غزاة" لفظ صریح موجود دې. (۵) دینه علاوه دَ غزوه دَ سفر کیدو کښې تائید دَ ابوعوانه عن مغیره په طریق روایت نه هم کیږی، دَ کوم په آخرکښې چه دا الفاظ واردشوی دی ((فاعطانی ثمن الجمل والجمل وسهمی مع القوم)) (۶) ظاهر شان خبره ده چه سهم هم په غزوه کښې کیږی.

**دا کومه غزوه وه؟:** دَ غزوه په تعیین کښې دَ شراحو اختلاف دې چه دا کومه غزوه وه؟ ځکه چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث په صحیح بخاری کښې موصولاً تقریباً شپږویشت (۲۶) خل ذکر کړیدې. په کوم کښې چه بعض کښې دَ سفر دَ غزوه کیدو تصریح خوشته لکه چه په اکثرو روایاتوکښې ابهام دې البته په یو تعلیق کښې دَ غزوه تعیین شته چه غزوه تبوك وه. په کتاب الشروط کښې داؤد بن قیس عن عبیدالله بن مقسم عن جابر په طریق کښې دی

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۴۵۵)-

۲) (دَ هغوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب المظالم باب من عقل بعیره علی البلاط اوباب المسجد-

۳) (دَ هغوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الاجارة باب مایعطی فی الرقبة علی احیاء العرب...-

۴) دَهغوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء الامن المخرجین من القبل والدبر

۵) (صحیح البخاری کتاب البیوع باب شراء الدواب والحمیر رقم (۲۰۹۷)-

۶) (صحیح بخاری کتاب الاستقراض... باب الشفاعة فی وضع الدین رقم (۲۴۰۶)-

((اشتراء بطريق تبوك))(۱) اوذ داوذ بن قيس موافقت علي بن زيدبن جُدعان كړيدې دَ هغوی په روايت كښې دى ((ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مربجابر في غزوة تبوك)) (۲)
ليكن ابن اسحاق په دې باندې جزم كړيدې چه مذكوره واقعه دَ "غزوة ذات الرقاع" ده (۳) اوذ واقدى رحمه الله هم دغه خيال دې چه دا "غزوة ذات الرقاع" واقعه ده. (۴)
اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم دا راجح ګرځولې دې. حافظ رحمه الله فرمائى: ((وهى الراجحة في نظرى لان اهل المغازى اضبط لذلك من غيرهم)) (۵)
او علامه بيهقى رحمه الله هم دَ ابن اسحاق په قول باندې جزم كړيدې. (۶)
**دَ غزوه ذات الرقاع په راجح كيدودلائل:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى په حديث باب كښې غزوه نه مراد ((غزوة ذات الرقاع)) ده، په دې ئې مختلف دلائل وركړى دى:
① دَ امام طحاوى رحمه الله په روايت كښې راغلى دى چه حضرت جابر رضي الله عنه او دَ نبى كريم ﷺ په مينځ كښې مذكوره واقعه دَ مكې او مدينې په لاركښې پيښه شوې وه. او دَ تبوك لار دَ مكې لارې سره نه ملاويږى په خلاف دَ ((غزوة ذات الرقاع)) دَ لارې نه، نو معلومه همدغه شوه چه مذكوره واقعه دَ((غزوة ذات الرقاع)) ده. (۷)
② دَحضرت جابر رضي الله عنه دَ دې حديث ډير طرق راغلى چه نبى كريم ﷺ دَ هغه نه په دې حديث كښې ذكر شوې واقعه كښې دا سوال هم كړې وو((هل تزوجت؟، قال: نعم، قال: ،،اتزوجت بكرا ام ثيبا؟)) (۸) بيا هم په دې كښې دَ حضرت جابر رضي الله عنه دا اعتذار هم ذكر دې چه ما كونډې سره نكاح په دې وجه اوكړه چه زما پلار په غزوه احد كښې شهيد شو او شاته ئې زما ورې ورې خوئيندې پريخودې نو ما كونډې سره نكاح اوكړه چه هغه زما دَ خوئيندو خيال اوساتى. دينه همدغه معلوميږى چه دَ باب په حديث كښې ذكر شوې واقعه دَ هغوى دَ پلار عبدالله دَ شهادت سره نزدې ده. نودَ دې سفر دَ ((غزوة ذات الرقاع)) په موقع باندې كيدل ډير ظاهريږى، نه چه دَ غزوه تبوك په موقع كيدل، ځكه چه دَصحيح قول مطابق ((غزوة ذات

---

۱) (صحيح بخارى كتاب الشروط باب اذا اشترط البائع ظهرالدابة رقم (۲۷۱۸)-
۲) (فتح البارى (ج۵ص ۳۲۰)-
۳) (السيرة النبوية لابن هشام(ج۳ص۲۱۶)-
٤) (فتح البارى (ج۵ ص ۳۲۰)-
۵) (حواله بالا-
۶) (دلائل النبوة للبيهقى (ج۳ص۳۸۲) وقدصرح فيه: فى عزوة ذات الرقاع من نخل-
۷) (فتح البارى (ج۵ص۳۲۱)-
۸) (انظرمثلاً الصيحى للبخارى كتاب الجهاد باب استئذان الرجل الامام رقم (۲۹۹۷) وكتاب المغازى باب "اذهمت طائفتان منكم ان تفشلا" رقم (٤٠۵۲)-

الرقاع» وقوع دَ غزوه احد نه يو كال پس ده او غزوه تبوك اودَ غزوه احد په مينځ كښې دَ اوو كالوفاصله ده. (۱) والله اعلم.

**قوله: قال جابر: فاقبلنا وانا على جمل لى ارمك ليس فيه شية والناس**

**خلفى:** حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى چه مونږ راغلو په دې حال كښې چه خپل يو اوښ باندې چه خاكى رنګ وو سور وم په هغه كښې هيڅ عيب نه وو او نور خلق زما نه شاته وو.

**دَ ارمک معنى:** "ارمك" دَ احمر په وزن دې امام اصمعى رحمه الله فرمائى چه ارمك هغه اوښ ته وائى دَ كوم په سوروالى كښې چه توروالې ملاوشوې وى. (۲)

او علامه كشيمرى رحمه الله دَ دې معنى په اردوكښې "خاكستر اونٹ" كړيده. (۳)

**دَ شية معنى:** "شية" معنى علامت ده، اومراد ترينه دا دې چه په هغه اوښ باندې دَ هغه دَ خپل حقيقى رنګ نه علاوه بل څه ټاكې وغيره نه وو. (۴) او دا هم احتمال دې چه په هغه اوښ كښې څه عيب نه وو او دَ دې احتمال تقويت او تائيد دَ روستوتنى جملې نه هم كيږى «والناس خلفى فبينا انا كذلك اذ قام على» چه خلق زمانه شاته پاتې شوې وو، زه هم په دې حال كښې ووم چه اوښ مى اودريدو. دينه هم دغه ظاهريږى چه اوښ تيزرفتارو او دَ رفتارپه حواله سره په دې كښې څه عيب نه وو تردې چه هغه دَ نورو خلقو نه وړاندې اووتلو او بيا هغه دَ ستړيوالى په وجه اودريدو. (۵)

دغه شان امام المفسرين حضرت قتاده رحمه الله هم په قرآن كريم كښې وارد ﴿لَّا شِيَةَ فِيهَا﴾ (۶) معنى «لاعيب فيها» نقل كړيدې. (۷)

**تنبيه:** دَ حديث باب نور جمله تشريحات ما قبل كښې په مختلف بابونوكښې تيرشوى دى.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث دَ باب ترجمه سره مناسبت دَ حديث په دې جمله كښې دې «ضربه بسوطه ضربة» وهونكې نبى كريم ﷺ اواوښ دَحضرت جابر رضي الله عنه وواودَ وهلو وجه دَ اوښ اودريدل وو. (۸)

**فائده:** علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه دَ باب دَ حديث نه معلومه شوه چه جهاد كښې دَ خپل ملګرى سره دَ څناور په شړلوكښې امداد كول پكار دى. نبى كريم ﷺ اوكتل چه دَ يو

---

۱) (فتح البارى (ج۵ص۳۲۱)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۵۳) وشرح ابن بطال (ج۵ص۶۵) و كتاب الامالى (ج۲ص۲۵۶)-
۳) (فيض البارى (ج۳ص۴۳۱)-
۴) (حواله بالا وفتح البارى (ج۶ص۶۶)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۶۶)-
۶) (البقرة:۷۱-
۷) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۵۳)-
۸) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۵۲)-

كمزورى سرى سورلئى له بل سړي ديكه وركوى نو هغوى ﷺ اوفرمائيل ((ذهب هذا باالاجر)) يعنى المعين دغه شان چه څوك د ځناور په سړلوكښې معين وى ده ته به په دې اجر او ثواب ملاويږى. (١)

## ٥٠-باب: الرُّكُوبِ عَلَى الدَّابَّةِ الصَّعْبَةِ وَالْفُحُولَةِ مِنَ الْخَيْلِ

## وَقَالَ رَاشِدُ بْنُ سَعْدٍ كَانَ السَّلَفُ يَسْتَحِبُّونَ الْفُحُولَةَ لِأَنَّهَا أَجْرَى وَأَجْسَرُ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته د باب په ترجمه کښې د شراح بخارى اختلاف دې چه د امام بخارى رحمه الله مقصد د دې ترجمه نه څه دې؟

نود ابن حجر او ابن بطال رحمه الله رائې دا ده چه د نر اس او مست ځناور سورلى افضل خودلې كيږى. (٢)

حافظ صاحب رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په ترجمه کښې کړې شوې دعوى په دوو طريقوسره ثابته كړې ده. يود راشد بن سعد د اثرنه چه په دې کښې دا راغلى دى چه سلفو به نر اسونه خوښول نو د دې نه امام بخارى رحمه الله د سركش ځاروى په سورلئى باندې استدلال كړې دې. دوئم د حضرت انس رضى الله عنه حديث په باب کښې ذكر شوى نه، په حديث شريف کښې د اس د پاره د مذكر ضمير استعمال شوې دې نو معلومه شوه چه د ابوطلحه رضى الله عنه مذكوره اس فحل(نر) وو (٣)

اود علامه ابن بطال رحمه الله وينا ده چه دا خبره خو معلومه ده چه مدينه منوره د اسپونه خالى نه وه ليكن د دې وصف سره نبى كريم ﷺ او نورو صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين کښې د چانه هم دا نقل نه دى چه هغوى د نر اس نه علاوه په بل باندې سورلى كړې وى سوا د سعد بن وقاص رضى الله عنه نه. دا د دې وجه نه چه نر اس د اسپې نه افضل وى. (٤)

مګر د علامه ابن بطال رحمه الله دا خبره د نظر نه خالى نه ده چه صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين د نر اسونونه علاوه په بل باندې سورلى نه ده كړې. ځكه چه د حضرت مقداد رضى الله عنه د اس باره کښې د دارقطنى روايت دا دې ((غزوت مع النبى صلى الله عليه وسلم يوم بدر على فرس لى انثى)) (٥)

دغه شان علامه عينى رحمه الله د مختلف صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين باره کښې ذكر كړى دى چه هغوى به اناث الخيل خوښول، خاص توګه باندې خالدبن وليد رضى الله عنه، چه د هغوى باره کښې راځى ((انه كان لايقاتل الاعلى انثى، لانها لاتدفع البول، وهى اقل صهيلاً والفحل يحبسه

---

١ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص ٦٤)-

٢ ) (فتح البارى(ج٦ص ٦٦) وشرح ابن بطال (ج٥ص ٦٦)-

٣ ) (فتح البارى (ج٦ص ٦٦)-

٤ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص ٦٦)-

٥ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٥٣)-

فى جريه حتى ينتفق، وتؤذى بصهيلة)) هغه به صرف په اسپه باندې جنګ کولو خکه چه هغه متیازې نه بندوی، هغه کمه هنرېږی هم په خلاف د نراس چه هغه د منډې په وخت کښې متیازې بند ساتی تردې چه (د متیازو پوکنړنی) اوشلیږی او هغه په خپل هنرارۍ سره تکلیف هم رسوی. (۱)

**دعلامه عینی او علامه ګنګوهی (رحمهما الله) رائې** د علامه عینی رحمه الله رائې دا ده چه امام بخاری د باب په ترجمه کښې په سخته سورلئی باندې سورلی کولو مشروعیت او جواز بیانول غواړی که سورلی کونکې د دې اهل وی ګنی نو نه.(۲)

او علامه ګنګوهی رحمه الله هم د دې قائل معلومیږی. شیخ الحدیث محمدزکریا رحمه الله فرمائی

((ظاهر کلام الشیخ قدس سره العزیز انه حمل ترجمة البخاری علی بیان جواز الرکوب علی الصعبة)) (۳)

**د حضرت شیخ الحدیث رائې:** د حضرت شیخ الحدیث محمد زکریا رحمه الله رائې دا ده چه امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی چه مجاهدله په داسې سورلئی باندې عادت جوړول پکار دی چه سخت وی او نروی، دې د پاره چه په هغه کښې تکړه والې او بهادری وی او داسې اس د جهاد په میدان کښې ډیر فائده مند او په کار راځی. نو هغوی لیکی:

((والاوجه عند هذا العبد الضعیف: ان غرض الامام البخاری ترغیب الرکوب علی الدابة الصعبة والفحولة، کما یدل علیه اثر راشد بن سعد....)) (۴)

او دلته د حضرت شیخ الحدیث صاحب رائې بهتر او مناسب معلومیږی.

**قوله: وقال راشد بن سعد: کان السلف یستحبون الفحولة لانها اجری واجسر:**

او راشدبن سعد رحمه الله فرمائی سلفو نراسونه خوښول خکه چه هغه د ډیرې بهادرئی او جسارت والا وی.

**راشدبن سعد:** دا راشدبن سعد مرائی —بفتح المیم وسکون القاف (۵) حبرانی —بضم الحاء (۶) حمصی رحمه الله دې.

هغه د حضرت ثوبان، حضرت سعدبن ابی وقاص، ابوالدرداء، عمرو بن العاص، ذی مخبر حبشی، عبه بن عبد، عوف بن مالك، معاویه، یعلی بن مرة، مقدام بن معدی کرب، عبدالله بن بسر، ابوامامة، ابن عامر عبدالله بن لحی هوذنی او عبدالرحمن بن جبیر بن نفیر رضی الله تعالی عنهم اجمعین وغیره نه د حدیث روایت کوی.

---

۱) (انظر تفصیل ذلک فی عمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۳) وفتح الباری (ج۶ص۶۶) وقال العلامة القرطبی رحمه الله فی تفسیر الجامع لاحکام القران (ج۸ص۳۶) والمستحب منها الاناث قاله عکرمة وجماعة-

۲) (حواله بالا-

۳) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲۳۲) والابواب والتراجم (ج۱ص۱۹۶)-

٤) (حواله بالا-

۵) (وقیل: بضم المیم والاول قول الاکثر انظر تعلیقات تهذیب الکمال (ج۹ص۸)-

۶) (تعلیقات تهذیب الکمال (ج۹ص۸)-

اودهغوی نه د حدیث روایت کونکوکښې حریز بن عثمان، صفوان بن عمرو، معاویه بن صالح حضرمي، علی بن ابی طلحه، ثوربن یزیداو ابوبکربن ابی مریم رحمهم الله وغیره شامل دی.(۱)
امام یحیی بن معین (۲) ابوحاتم، احمد بن عبدالله عجلی، یعقوب بن شیبة او نسائی رحمهم الله فرمائی "ثقة" (۳)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ((لاباس به اذالم يحدث عنه متروك)) (۴)

علی ابن المدینی رحمه الله فرمائی چه ماد یحیی بن سعیدنه تپوس اوکړو ((تروی من راشد بن سعد؟ قال: ماشانه هواحب الی من مکحول)) (۵)

مفضل رحمه الله فرمائی ((راشد بن سعد المقرائی من حمیر من اثبت اهل الشام)) (۶)

اوابن سعد رحمه الله فرمائی ((وکان ثقة)) (۷)

البته ابن حزم رحمه الله فرمائی ((هوضعیف)) (۸)

لیکن علامه ذهبی رحمه الله په ابن حزم باندې رد کولو سره فرمائی ((فهذا من اقواله المردودة)) (۹)
د صفین په جنګ کښې راشد بن سعد رحمه الله د حضرت معاویه رضی الله عنه سره شریك وو (۱۰) او په هغه جنګ کښې د هغه یوه سترګه هم ضائع شوې وه. (۱۱)
امام بخاری رحمه الله د هغه نه په باب کښې صرف مذکوره اثر نقل کړیدې او هیڅ روایت ئې نه دې اخستې، البته امام مسلم رحمه الله نه علاوه باقی حضراتو د هغه روایتونه اخستې دی.(۱۲)
د اکثرو امامانو د جرح او تعدیل دا خیال دې چه د هغه وفات د خلیفه هشام بن عبدالملك په دور حکومت کښې په کال ۱۰۸ھ کښې شوې. (۱۳)
. اود وفات په وخت کښې د هغه عمر تقریباً (۹۰) کاله وو. (۱۴) رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

---

۱) (د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۹ص۹-۱۰)-
۲) (تاریخ عثمان بن سعید الدارمی )ص۱۱۰) رقم (۳۲۸)-
۳) (تهذیب الکمال (ج۹ص۱۰)-
٤) (حواله بالا وتهذیب تاریخ دمشق لابن عاسکر (ج۵ص۲۹۳)-
۵) (تهذیب الکمال (ج۹ص۱۰)-
۶) (حواله بالا-
۷) (الطبقات لابن سعد(ج۷ص۴۵۶)-
۸) (سیراعلام النبلاء (ج٤ص۴۹۰)-
۹) (حواله بالا-
۱۰) (حواله بالا وشرح الکرمانی (ج۱۲ص۲۷۳)-
۱۱) (تاریخ البخاری (ج۳ص۲۹۲)-
۱۲) (تهذیب الکمال (ج۹ص۱۱)-
۱۳) (عمدة القاری (ج١٤ص۱۵۳) ومیزان الاعتدال (ج۲ص۳۵) وتهذیب الکمال وتعلیقات (جص۱۱)-
١٤) (سیراعلام النبلاء (ج٤ص۴۹۰)-

**د اجر او اجسر معنى** ((أجرأ)) همزه او بغيرهمزه دواړه شانه مروى دي. که همزه سره وى نو دَ دي معنى به دَ بهادر وى او دا به دَ جراءت نه مشتق وى. او که بغيرهمزه وى نو دَ دې معنى زيات تيزمندې وهونکى او دا به مشتق وې دَ جرى نه.(۱)

او ((أجسر)) جسارة نه مشتق دې دَ دې معنى هم بهادرى ده. (۲)

**دَ مفضل عليه دَ حذف وجه:** اودلته مفضل عليه له په سياق باندې اکتفاء کولو سره حذف کړېشوې دې. مطلب دادې چه دا نراس داسپې اوخصى اس نه زيات بهادراوتيزرفتاره وى.(۳)

علامه کرمانى رحمه الله فرمانى چه فحولة دَ فحل جمع ده په دې کنبې چه کومه تاء ده هغه دَ جمعيت دَ تاکيد دپاره راوړلې شويده لکه دَ ملك جمع چه ملائكة ده. (۴)

[۲۸۰۷] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ بِالْمَدِينَةِ فَزَعٌ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ مَنْدُوبٌ فَرَكِبَهُ وَقَالَ مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا [ر: ۲۴۸۴]

## تراجم رجال

۱- <u>احمد بن محمد:</u> دا احمدبن محمدبن موسى ابوالعباس السمسارالمروزى رحمه الله دې، دَ هغوى لقب مردويه دې. (۵)

اودَ امام دارقطنى رحمه الله دا وينا چه دا احمدبن محمدبن ثابت بن عصمان خزاعى شبويه رحمه الله دې، صحيح نه ده، ځکه چه دا دَ بخارى دَ رجالو نه نه دى بلکه دَ مروزى و بخارى دَ رجالونه دى. (۶)

۲- <u>عبدالله:</u> داعبدالله بن مبارك حنظلى مروزى رحمه الله دې، دَ هغوى مختصر حالات "بدء الوحى" په پنځم حديث کنبې تيرشوى دى.(۷)

۳- <u>شعبه:</u> دا ابوبسطام شعبه بن الحجاج رحمه الله دې دَ دوى هم مختصر حالات ((کتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې تيرشوى دى. (۸)

---

۱) (شرح الکرمانى (ج۱۲ص۱۴۳) وفتح البارى(ج۶ص۶۶)-
۲) (حواله بالا-
۳) (فتح البارى (ج۶ ص ۶۶) وعمدة القارى (ج ۱۴ص۱۵۳)-
۴) (شرح الکرمانى (ج۱۲ص۱۴۳)-
۵) (دَ هغوى دَ حالاتودپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب ماينفع من النجاسات فى السمن والماء-
۶) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۵۳) وفتح البارى (ج۶ص۶۷)-
۷) (کشف البارى (ج۱ص ۴۶۲)-
۸) (کشف البارى(ج۱ص۶۷۸)-

۴-قتاده: دا قتاده بن دعامه بن قتاده سدوسی رحمه الله دې.

۵-انس بن مالك: دا حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې، دَ دې دواړو حضراتو حالات ((كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه لنفسه)) لاندې تيرشوى.(۱)

تنبيه دَ حديث باب تشريحات ماقبل كښې په مختلف ابوابو كښې بيان شوى دى.(۲)

**دَباب ترجمه سره دَ حديث مناسبت:** په ماقبل كښې مونږ دَ باب د ترجمه دَ مقصد لاندې دَ شراحو اختلاف دَ ترجمه په مقصد كښې نقل كړى دى، همدغه اختلاف ترجمة الباب سره حديث كښې هم مناسبت دې چه دَ حديث كوم جزء په ترجمه باندې منطبق دې؟

دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ كلام نه مستفادا كيږى چه ترجمه سره دَ حديث مناسبت دَ ((فرسا)) په لفظ كښې دې او هغه داسې چه فرس دَ پاره نبى كريم ﷺ كوم ضمير استعمال كړيدې نوهغه دَ مذكردې يعنى "وان وجدناه لبحرا" مونږ دا اس دَ سمندر په شان تيز رفتاره اوموندلو. نو دا معلومه شوه چه مذكوره اس مذكر يعنى نر وو، حافظ صاحب رحمه الله ليكى ((واخذ كونه كان فحلا من ذكره بضمير المذكر)) (۳)

**دَ علامه گنگوهى رحمه الله ارشاد:** حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى چه دَ روايت په ترجمة الباب باندې دلالت او انطباق په دې توگه دې چه څنگه سخت (او اريل) ځاروې په تلوكښې دَ فاصله وهلوكښې دَ خلل سبب جوړيږى دغه شان روتلونكې ځاروې هم لار وهلوكښې دَ خلل ذريعه جوړيږى نو چه كله په روتلونكى ځاورى باندې تلل جائز دى نو په سخت ځاروى باندې به هم جائز وى (۴)

**دَ شيخ الحديث صاحب رائې:** حضرت شيخ الحديث محمد زكريا كاندهلوى رحمه الله فرمائى ((ودلالة الرواية عليه بما صار حال فرس ابى طلحة بعد ركوبه صلى الله عليه وسلم حتى قال: وجدناه لبحرا))(۵)

يعنى دَ روايت باب سره دلالت په دې حال كښې دې چه دَ حضرت ابوطلحه رضي الله عنه په اس باندې دَ رسول الله ﷺ دَ سوريدو نه پس اوشو تردې چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل مونږ خودا دَ سمندر په شان اوموندلو. دې نه په سخت او تيزرفتاره ځاروى باندې دَ سوريدلو ترغيب معلوميږى.

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۳-۴)-
۲) (انظرباب الشجاعة فى الحرب والجبن وباب اسم الفرس والخمار من هذاالكتاب-
۳) (فتح البارى (ج۶ ص۶۶)-
۴) (لامع الدرارى (ج۷ ص۲۳۲)-
۵) (تعليقات لامع الدرارى (ج۷ص۲۳۲)-

## ٥١- باب: سِهَامِ الْفَرَسِ

**دَ ترجمة الباب مقصد** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ غازی اس ته دَ مال غنیمت نه چه کومه حصه ملاویږي د هغې مقدار اوکمیت خودل غواړی.(١)

اودَ سهام اضافت د فرس طرف ته په دې اعتبار سره دې چه دَ اس په وجه مالك دَ اضافی حصې حقدار کیږی.(٢)

[٢٧٠٨] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (٣) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ وَلِصَاحِبِهِ سَهْمًا [٣٩٨٨]

وَقَالَ مَالِكٌ يُسْهَمُ لِلْخَيْلِ وَالْبَرَاذِينِ مِنْهَا لِقَوْلِهِ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَلَا يُسْهَمُ لِأَكْثَرَ مِنْ فَرَسٍ

## تراجم رجال

١- عبيدبن اسماعيل: دا ابومحمد عبیدبن اسماعیل هباری قرى کوفی رحمه الله دې (٤)

٢- ابواسامه: دا ابواسامه خماد بن اسامه بن زید قرشی کوفی رحمه الله دې، دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب فضل من علم وعلّم)) لاندې تیرشوې دې. (٥)

٣- عبيدالله: داعبیدالله بن عمربن حفص بن عاصم بن عمربن الخطاب العمری رحمه الله دې(٦)

٤- نافع: دا ابوعبدالله نافع مولی ابن عمر رحمه الله دې مشهور تابعی دې. (٧)

٥- ابن عمر: دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر بن الخطاب رضی الله عنهما دې، دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس)) لاندې تیرشوی دی.(٨)

---

١) (عمدة القاری (ج ١٤ص ١٥٣)-
٢) (حواله بالا وفتح الباری (ج ٦ص ٦٧)-
٣) (قوله: ابن عمر رضی الله عنهما الحدیث اخرجه البخاری ایضا کتاب المغازی باب غزوة خیبر رقم (٤٢٢٨) ومسلم کتاب الجهاد باب کیفیت قسمة الغنیمة بین الحاضرین رقم (٤٥٨٦) وابوداوٗد کتاب الجهاد باب سهممان الخیل رقم (٢٧٣٣) والترمذی ابواب السیر باب فی سهم الخیل رقم (١٥٥٤) وابن ماجه ابواب الجهادباب قسمة الغنائم رقم (٢٨٥٤)-
٤) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الحیض، باب نقض المراة شعرها عندغسل المحیض-
٥) (کشف الباری (ج٣ص ٤١٤)-
٦) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب التبرزفی البیوت-
٧) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب العلم باب من اجاب السائل باکثر مما ساله-
٨) (کشف الباری (ج١ص ٦٣٧)-

**قوله:** ان رسول الله صلى الله عليه وسلم جعل للفرس سهمين ولصاحبه سهما: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دَ اس دَ پاره دوه حصې او دَ هغې مالك دَ پاره يوه دَ مال غنيمت نه مقرر كړې وه.

**په مال غنيمت كښې دَ اس دَ پاره څو حصې وى دوه يا يوه؟:** دا يوه مشهوره اختلافى مسئله ده دَ كومې تفصيل چه (كتاب المغازى) كښې راغلې دې. (۱)

امام مالك رحمه الله (۲) امام شافعى رحمه الله (۳) امام احمد، عمر بن عبدالعزيز، حسن بصرى، ابن سيرين، حسين بن ثابت، ثورى، ليث بن سعد، اسحاق، ابوثور رحمهم الله (۴) اوزاعى رحمه الله (۵)ابن حزم ظاهرى رحمه الله (۶) او صاحبين رحمهما الله (۷) وغيره مسلك دا دې چه دَ سور به درې حصې وى يوه سور او دوه دَ هغه دَ اس.

خو په صحابه كرامو كښې حضرت عمر بن الخطاب، على بن ابى طالب او ابوموسى اشعرى رضي الله عنهم (۸)اودَ امام اعظم او زفر رحمهما الله وغيره مذهب دا دې چه د سور به دوه حصې وى يوه د هغه او يوه دَ اس. (۹)

خو دا خبره دې واضحه وى چه دَ راجل (پياده) په سهم كښې هيڅ اختلاف نشته ، دَ جميع ائمه په نزد هغه ته به هم يوه حصه ملاويږى.(۱۰)

**دَ ائمه ثلاثه دلائل:** په دې باب كښې د جمهورو مستدل هغه احاديث دى كوم كښې چه ((للفرس سهمان وللفارس سهم)) الفاظ وارد شوى دى.مثلاً باب كښې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت دې، همدغه روايت امام بخارى رحمه الله كتاب المغازى كښې ذكر كړيدې او دَ دې حديث لاندې دَ حضرت نافع رحمه الله دا تفسيرهم دې. ((فقال: اذاكان مع الرجل فرس فله ثلاثة اسهم، فان لم يكن له فرس فله سهم)) (۱۱)

اودَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په باب كښې ذكر شوې حديث دَ جمهورو صحيح ترين دليل دې.

---

۱ ) (كشف البارى كتاب المغازى (ص۴۴۳)-
۲ ) (بداية المجتهد (ج۱ص ۳۹۴) والمدونة الكبير(ج۲ص۳۲)-
۳ ) (كتاب الام للشافعى باب كيف تفريق القسم؟ (ج۴ص۱۴۴) و (ج۷ص۳۳۷)-
۴ ) (المغنى لابن قدامة (ج۹ص ۲۰۰) رقم(۷۴۹۳)-
۵ ) (تكملة فتح الملهم (ج۳ص۱۴۱)-
۶ ) (المحلى بالاثار (ج۵ص۳۹۲)-
۷ ) (الهداية مع فتح القدير(ج۵ص۲۳۵) كتاب السيرباب الغنائم وقسمتها-
۸ ) (اوجزالمسالک (ج۸ص۳۱۲) وروح المعانى(ج۶ص۵)-
۹ ) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۵۵)-
۱۰ ) ( اوجزالمسالک (ج۸ص۳۱۱)-
۱۱ ) (الصحيح للبخارى كتاب المغازى باب غزوة خيبر رقم (۴۲۲۸)-

د هغوی يو بل دليل هغه روايت دې کوم چه علامه طبرانی او مام دارقطنی د حضرت ابورهم رضي الله عنه نه نقل کړيدې ((شهدت انا واخي خيبر معنا فرسان فاسهم لنا ستة اسهم))(۱)

**مستدلات امام اعظم رحمه الله**: حضرت امام اعظم رحمه الله هم په دې مسئله کښې ډير دليلونه ورکړی دی کوم کښې چه احاديث دی، او آثار هم دی او د هغوی قياس هم مؤيددې.

**رومبې دليل**: د هغوی د ټولونه مشهور دليل دحضرت مجمع بن جاريه رضي الله عنه هغه روايت دې کوم چه امام ابوداؤد رحمه الله په خپل سنن کښې نقل کړيدې، حضرت مجمع جاريه رضي الله عنه فرمائی:

((شهدنا الحديبية مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فلما انصرفنا عنها اذا الناس يهزون الاباعر.... فقسمت خيبر على اهل الحديبية فقسمها رسول الله صلى الله عليه وسلم على ثمانية عشر سهما وكان الجيش الفا وخمس مائة، فيهم ثلاث مائة فارس فاعطى الفارس سهمين وللراجل سهما)) (۲)

رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونږ حديبيه کښې شريك شو، کله چه مونږ دهغه ځائ نه واپس شو(اوموکتل) چه خلق اوښان زغلوی ....نواهل حديبيه باندې دغزوه خيبرد غنيمت تقسيم اوشو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د غنيمت اتلس حصې جوړې کړې او د لښکر شمير پنځلس سوه وو په کومو کښې چه درې سوه فارس وو، نو هغوی فارس ته دوه حصې ورکړې او پياده ته دوه حصې ورکړې.

**دوئم دليل**: حافظ ابن ابی شيبه رحمه الله خپل تصنيف کښې دې لاندينی سندسره د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا روايت ذکر کوی:

((حدثنا ابواسامة وابن نمير قالا: حدثنا عبيدالله عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما ان رسول الله صلى الله عليه وسلم جعل للفارس سهمين وللراجل سهما)) (۳)

مذکوره بالا روايت دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما د باب رواياتو صريح معارض دې اود دې رواة هم ثقه دی په کوم چه به مونږ انشاء الله نزدې کلام کوو.

**دريم دليل**: دحضرت عمربن خطاب رضي الله عنه باره کښې امام جصاص رحمه الله فرمائيلی چه د هغوی يو عامل منذربن ابی حمصه د حضرت امام اعظم د قول موافق په مجاهدينوکښې حصې تقسيم کړې چه په هغې باندې حضرت عمر رضي الله عنه راضی شو او د څه قسم نکير ئې اونه فرمائيلو. امام جصاص ليکی:

((روی مثل قول ابی حنيفة عن المنذر بن ابی حمصة –عامل عمر رضي الله عنه –انه جعل للفارس سهمين وللراجل سهما، فرضيه عمر)) (۴)

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص ۱۵٤) ومجمع الزوائد (ج۵ص۲٤۲) د نورو دلائلودپاره فتح الباری (ج۶ص۶۸) اوګورئ-

۲) (سنن ابی داؤد کتاب الجهاد باب فی من اسهم له سهم رقم (۲۷۳۶)-

۳) (المصنف لابن ابی شيبة (ج۶ص٤۹۲) کتاب السير فی الفارس کم يقسم له؟.... رقم (۳۳۱۵۹-

٤) (احکام لقران للجصاص (ج۳ص۵۸)-

**ځلورم دلیل:** دَ قیاس همدغه تقاضا ده چه فرس ته یوه حصه ورکړیشی نه چه دوه، ځکه چه په دوئم صورت کښې دَ فرس په مسلم باندې اوچتوالې ظاهریږی. حالانکه مسلمان دَ ټولونه افضل دې، دَ امام صاحب نه روایت دې چه هغوی فرمائیلی «لایسهم للفارس الاسهم واحد وقال: اکره ان افضل بهیمة علی مسلم» (۱) چه فارس له(دَهغه اس ته) به یوه حصه ملاویږی او وئی فرمائیل چه زه دا خبره نه خوښوم چه یو ځاروی له په مسلمان باندې فضیلت او اوچتوالې ورکړم.

**یوه اهمه تنبیه:** دَ غزوه خیبر نه اول دَ غنائمو تقسیم به دَ نبی کریم ﷺ په اختیار کښې وو چه نبی کریم ﷺ دَ خپلې رائې مطابق چاله څومره ورکول غوښتل ورکول به ئې. دَ ټولو نه مخکښې دَ غنائمو تقسیم دَ مجاهدینودَ حق په روسره په غزوه خیبرکښې اوشو په کوم کښې چه دا خبره مقرر شوې وه چه فارس ته به دومره حصې ملاویږی اوراجل ته دومره.(۲)

**دَ اختلاف سبب:** دَ ائموُ په مینځ کښې چه فارس ته ملاویدلو حصه کښې کوم اختلاف اوشو دَ هغې بنیادی سبب دَ غزوه خیبر دَ شرکاؤ دَ شمیر اختلاف دې. په دې سلسله کښې په روایاتوکښې سخت تعارض موندلې شی چه دَ خیبر دَ شرکاؤ څومره تعداد وو؟ دَ شرکاء خیبر تعداد کښې تقریباً لس اقوال دی په کوم کښې چه درې ډیر مشهور دی:

① دَحضرت مجمع بن جاریه رضی الله عنه په روایت کښې (چه لږ شان وړاندې تیرشو) معلومیږی چه دَ دوی تعداد پنځلس سوه وو، درې سوه سواره او نور دولس سوه پیاده وو. (۳)

② حضرت براء بن عازب رضی الله عنه (۴) او حضرت جابر رضی الله عنه (۵) دَ روایت نه معلومیږی چه څوارلس سوه تعداد وو په کوم کښې چه دوه سوه سواره او نور پیاده وو.

③ امام مغازی موسی بن عقبه رحمه الله شپاړس سوه تعداد خودلې دې. (۶)

**راجح شمیر څه دې؟:** شوافعو وغیره رحمهم الله څوارلس سوه تعداد راجح ګرځولې دې. علامه بیهقی رحمه الله دَحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه، حضرت ابن عباس رضی الله عنه، صالح بن کیسان، بشیر بن یسار اواهل مغازی قول نه استدلال کولوسره څوارلس سوه شمیر ته راجح وئیلی دی.(۷) او علماء احناف دَ حضرت مجمع بن جاریه رضی الله عنه روایت راجح ګرځوی.

**دَ ترجیح وجوهات:** دَاحنافو په مذهب دَ راجح کیدو دا لاندینی وجوهات دلالت کوی:

① دَ ثقه زیاتوالې مقبول وی حضرت جابر رضی الله عنه نه چه څنګه دا مروی دی چه دَ خیبر دَ شرکاؤ تعداد څوارلس سوا وو دغه شان دا هم مروی دی چه دَ هغوی شمیر پنځلس سوا

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۵)-

۲) (بذل المجهود (ج۱۲ ص۳۳٤) وتنظیم الاشتات (ج٤ص۱۲۰)-

۳) (سنن ابی داوٗد کتاب الجهاد باب فی من اسهم له سهم رقم (۲۷۳۶)-

٤) (صحیح البخاری کتاب المغازی باب غزوه الحدیبیة..... رقم(٤۱۵۰)-

۵) (حواله بالا رقم (٤۱۵۳)-

۶) (فتح الباری(ج۷ص٤٤۰) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۵۷)-

۷) (عون المعبود شرح سنن ابی داوٗد (ج۷ص۳۲۵) رقم (۲۷۳۳) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۵۶)-

وو، حضرت سالم بن ابی الجعد (۱) اوحضرت سعیدبن المسیب رحمه الله (۲) د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت کریدي "انهم کانوا خمس عشرة مائة" (۳)

② دزیادت اثبات کونکې، ددې دنفی کونکی په مقابله کښې راجح وی، د حضرت جابر رضی الله عنه په یو روایت کښې څوارلس سوا او بل کښې پنځلس سوا شمیر دې، ظاهره خبره ده چه د پنځلس سوو روایت د زیادت اثبات کوی نو په دې وجه به هم دغه راجح وی. (۴)

③ دحافظ ابن حجر رحمه الله د کلام نه هم دا مستفاده کیږی چه هغه هم د پنځلس سوو د شمیر راجح کیدو قائل دې، هغوی د ابن سعد رحمه الله او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړی دی چه د خیبر د شرکاؤ شمیر پنځلس سوا وو. (۵)

حافظ رحمه الله پخپله مقدمه کښې ذکر کړی دی چه هغه په فتح الباری کښې هم هغه احادیث اخلی چه صحیح یا حسن وی او په ضعیف باندې به سکوت نه کوی. دینه معلومه شوه چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما مذکوره روایت د هغوی په نزد صحیح یا حسن ضرور دې ګنی په دې به ئی ضرور کلام کولو. (۶)

د دې وجوهاتو په بنا معلومه شوه چه غزوه خیبرکښې رسول الله صلی الله علیه وسلم کومو لښکریانوته سهم ورکړې وو د هغوی شمیر پنځلس سوا وو د دې نه علاوه چه زیاتی کسان وو هغه ښځې خادمان او ماشومان ووا و هغوی ته سهم نه وو ورکړې شوې. (۷)

دې نه دا هم متبادر کیږی چه موسی بن عقبه رحمه الله چه کوم د شپاړسو شمیر خودلې دې غالبًا په دې کښې ئې ښځې خادمان او ماشومان هم شامل کړی دی.

د دې دلیل دا دې چه د خیبر غنائم ئې اول شپږویشت (۲۶) حصې کړې وو په کومو کښې چه اتلس حصې د مسلمانانو د عام ضروریاتو دپاره ایخودې وې او باقی اتلس حصې په مجاهدینو کښې تقسیم کړیشوې. (۸)

د سنن ابی داؤد روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خیبر غنائم اتلس حصوکښې تقسیم کړې وې، په هره حصه کښې سل حصې وې نو دا اتلس سوا حصې شوې. (۹)

اوس د خیبر د غنائمو په تقسیم کښې اختیار کړیشوې صورتونه دا لاندینی کیدیشی:

① که د اسلام لښکر په څوارلس سوو باندې مشتمل وی، په کوم کښې چه دوه سوا سواره

---

۱) (صحیح البخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة رقم (۳۱۵۲)-
۲) (حواله بالا رقم (٤١٥٣)-
۳) (اعلاء السنن (ج۱۲ص۱۵۶)-
٤) (حواله بالا-
۵) (فتح الباری (ج۷ص٤٤١)-
۶) (هدی الساری (ص٤) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۵۷)-
۷) (اعلاء السنن (ج۱۲ص۹۱۵۷)-
۸) (زادالمعاد (ج۳ص۳۲۸)-
۹) (سنن ابی داؤد کاب الخراج والفی والامارة باب ماجاء فی حکم ارض خیبر رقم۳۰۱۰-۳۰۱٤)-

وی او د سورو درې حصې وی او د پیاده یوه حصه یعنی
۲۰۰×۳=۶۰۰-۲۰۰+۱۲۰۰=۱۸۰۰.

② که دَ لښکر تعداد پنځلس سوا وی په کوم کښې چه درې سوا سواره وی او دَ سور دوه حصې او دَ پیاده یوه حصه وی نو ۳۰۰×۲=۶۰۰+۱۲۰۰=۱۸۰۰.

③ که لښکر شپاړس سوا وی او دې کښې دوه سوا سواره وی او همدغه شان دَ سور دوه حصې او دَ پیاده یوه حصه نو، ۲۰۰×۲=۴۰۰+۱۴۰۰=۱۸۰۰.

او دا خبره پورته معلومه شویده چه دَ لښکر په تعداد کښې راجح قول دَ پنځلس سوو دې نو دَ سور هم دوه حصې شوې نه چه درې حصې، **کما قاله مجمع بن جارية** رضی الله عنه (۱)

**دَ جمهورو دَ دلائلو جوابونه:** دَ جمهورو دَ ټولو نه صحیح او قوی دلیل دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث وو لیکن دا حدیث په بوجوه دَ جمهورو مستدل نشی جوړیدې، وضاحت دا دې:

① په دې کښې دَ غنائمو دَ تقسیم چه کوم بیان دې دَ هغې باره کښې دا معلومه نه ده چه دا تقسیم دَ غزوه خیبر نه وړاندې شوې وو که روستو، ممکن ده چه د غزوه خیبرنه وړاندې واقعه وی او منسوخ وی. (۲)

② عام قانون او ضابطه همدغه ده چه فارس ته هم دَ فرس په شان یو حصه ملاویدل پکار دی لیکن نبی کریم ﷺ نه مجاهدینو ته دَ استحقاق دَ نفل په توګه زیاتې حصې ورکول هم ثابت دی، لکه چه حضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه نه مروی دی چه هغوی ته نبی کریم ﷺ "غزوه ذی قرد" کښې دوه حصې ورکړې وې، یوه دَ فارس او یوه دَ راجل چه کله هغه راجل وو. دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما نه روایت دې چه دَ هغه پلار حضرت زبیر بن عوام رضی الله عنه ته دَ غنیمت څلور حصې ورکړې شوې وې او دا زیاتې چه دَ نفل په توګه ور کړیدې کیدې دَ دې مقصد مجاهدینوته دَ جنګ او جهاد ترغیب ورکول وو. (۳)

③ صاحب هدایه علامه مرغینانی رحمه الله دَ ارشاد حاصل دا دې چه دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه دواړه قسم اقوال مروی دی چه په څه کښې دَ فارس دَ پاره د دریو حصو ذکر دې او په څه کښې دَ دوو، هرکله چه دَ هغوی په دواړو قسم روایتونوکښې تعارض دې نو دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث (۴) راجح به وی، په کوم کښې چه فارس ته دَ دوو حصو ورکولو ذکر دې.

((سهم له وسهم لفرسه)) (۵)

④ مولانا خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله "بذل" کښې فرمائی چه ډیر ځل عربی کتابت کښې الف حذف کولې شی، ((للفرس سهمين)) په اصل کښې ((للفارس سهمين)) وو، الف حذف کړې

---

۱) (اعلاء السنن (ج۱۲ص۱۵۷)-
۲) (بذل المجهود (ج۱۲ص۱۶۷) وتنظیم الاشتات (ج٤ص۱۲۰)-
۳) (حواله بالا واحکام القران للجصاص الرازی (ج۳ص۵۹) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۷۱)-
٤) (اعلاء السنن (ج۱۲ص۱۶۷)وتنظیم الاشتات (ج٤ص۱۲۱)-
۵) (الهدایة (ج۲ص۵۷۳)-

شو د دې وجه دا ده چه دلته د راجل په مقابله کښې لفظ فرس ذکرکړې شویدې. د کوم نه چه هم دا په پوهه کښې راځي چه صحیح لفظ په اصل کښې فارس وو نه چه فرس، لیکن راوی فارس فرس ګنړلي د دې د پاره ئې للفارس په لفرس سهمین روایت کړې دې او ظاهره خبره ده چه د راوی فهم حجت نه دې.

او زمونږ د دې دعوی تائید چه فرس دراصل فارس وو، مصنف ابن ابی شیبه د دې روایت نه کیږی کوم چه امام اعظم رحمه الله په دلائلو کښې ذکر کړې دې چه ((عن ابن عمر رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم جعل للفارس سهمین، وللراجل سهما)) دا هم هغه روایت دې کوم چه امام بخاری وغیره د فرس په لفظ سره روایت کړې دې. دارقطنی هم د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه نقل کړې دی ((ان النبی صلی الله علیه وسلم قسم للفارس سهمین وللراجل سهما))(١)

او د دې ټولو روایتونومطلب همدغه دې چه فارس ته به د هغه د فرس د حصې سره دوه حصې ملاویږی نه چه درې حصې.(٢)

⑤ بیا په دې خبره ځان پوهه کړئی چه په دې باب کښې په اعتبار د مجموع دوه قسمه متعارض احادیث دی، یوخو هغه دې چه په هغې کښې ((للفارس سهمین)) راغلې دې او نورو روایاتوکښې ((للفارس ثلثة)) مروی دې لیکن اولنی قسم روایات د قیاس موافق دی لیکن چه د جهاد په معامله کښې هم رجل اصل دې او فرس د جهاد سامان دې اود ده تابع دې. ځکه چه د فرس نه بغیرهم یوازې د جهاد کار کیدیشی او صرف په فرس سره نه چلیږی نو فرس تابع شواوتابع له په اصل باندې فضیلت ورکول د عقل او قیاس نه خلاف ده. چه کله په احادیثو کښې تعارض دې نو هغه حدیث به راجح وی چه د قیاس موافق وی کما تقرر فی الاصول.(٣)

**دحضرت ابورهم د حدیث جواب:** او ترکومې چه د حضرت ابورهم رضی الله عنه د حدیث تعلق دې دینه هم جمهورد استدلال په وجوهاتو صحیح نه دې تفصیل دا دې:

① د دې حدیث په سند کښې یوراوی قیس بن ربیع دې، بل اسحاق بن عبدالله بن ابی فروه دې اول مختلف فیه راوی دې او دوئم ضعیف دې.

② بیا دحضرت ابورهم رضی الله عنه صحبت کښې هم اختلاف دې چه آیادې صحابی دې که نه؟(٤)

③ په دې حدیث شریف کښې هم هغه د نقل احتمال موجود دې. ممکن دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته اود هغه رور ته چه کومې دوه حصې زیاتی ورکړې وې هغه د نفل په توګه وی نو په دې وجه دې نه استدلال صحیح کیدې نشی.(٥)

---

١) (سنن الدارقطنی (ج ٤ص ٦١) کتاب السیر رقم (٤١٣٨)-
٢) (بذل المجهود (ج ١٢ص ٢٣٤-٢٣٥) وتنریم الاشتات (ج ٤ص ١٢١)-
٣) (حواله بالا-
٤) (اعلاء السنن (ج ١٢ص ١٦٥)-
٥) (حواله بالا-

**قوله: وقال مالك: يسهم للخيل والبراذين منها، لقوله: ((وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا))**: اوامام مالك رحمه الله فرمائی چه دَ غنيمت نه به خيل او براذين ته حصه ورکړې کيدې شی دَ الله تعالى دَ دې قول په بنا باندې، (او الله تعالى پيداکړی دی ستاسو دَ پاره) اسونه قچرې او خره دې دَ پاره چه تاسو په دې سورلی اوکړئ.

**اختلاف نسخ**: په بعض نسخوکښې دَ حضرت امام مالك رحمه الله دا پورته ذکر شوې قول دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ حديث نه اول دې او دَ ابوذر په نسخه کښې حديث مقدم دې کمافی نسختنا.(۱)

**دَ مذکوره تعليق تخريج**: دا تعليق موصولاً امام مالك رحمه الله موطا کښې نقل کړې دې.(۲)

**دَ براذين او هجين معنی**: براذين دَ برذون جمع ده، علامه مطرزی رحمه الله "المغرب" کښې فرمائی چه برذون ترکی اسونوته وائی دَ دې ضد عراب –بكسر العين المهملة– دې او مؤنث ته برذونة وائی. (۳)

بعض دا وائی چه براذين هغه اسونه دی چه دَ روم نه راوستلې شو، دا اسونه به په کندو، غرونو او سختو لاروکښې په منډو کښې مضبوط وو په خلاف دَ عربی اسونو. (۴)

بيا دَ امام مالك رحمه الله هم په دې تعليق کښې يو بل لفظ زياتې هم مروی دې هغه دې "الهجين"(۵) او هجين هغه اس ته وائی چه دَ هغه په والدينوکښې يوعربی وی او بل غيرعربی. او بعضو وئيلی دی چه دَ کوم اس پلار عربی وی هغې ته هجين وائی او دَ چا چه مور عربی وی هغې ته مقرف وائی (۶)

البته دَ امام احمد رحمه الله نه دا روايت دې چه هجين او برذون هم يو څيز دې. (۷)

**دَ آيت مبارک مقصد**: حضرت امام مالك رحمه الله دخپلې دعوی ثابتولو دَ پاره دَ آيت مبارك ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا﴾ نه استدلال کوی او وجه دَ استدلال په قول دَ علامه ابن بطال رحمه الله دا ده چه الله تعالى په خپلو بنديګانو باندې دا احسان کوی چه هغه دَ بنديګانو دَ سورلئی دَ پاره اسونه پيدا کړل او رسول الله صلی الله عليه وسلم اسونوته په غنيمت کښې حصه ورکړه، نو دَ اس اطلاق په برذون اوهجين باندې هم کيږی نوځکه به دوی ته هم حصه ورکولې شی.(۸)

دَ حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله نه يو ځل تپوس اوشو چه په براذين باندې زکوة واجب

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۵۵) وشرح القسطلانی (ج۵ص۷۷)-
۲) (لموطا للامام مالک بن انس (ج۲ص٤۵۷) کتاب الجهاد باب القسم الخيل فی الغزو رقم (۲۱)-
۳) (المغرب (ج۱ص ۷۱) وعمدة القاری (ج ۱٤ص۱۵۵)-
٤) (حواله بالا-
۵) (الموطا للامام مالک بن انس (ج۲ص٤۵۷) کتاب الجاهد باب القسم للخيل فی الغزو رقم (۲۱)-
۶) (عمدةالقاری (ج ۱٤ص۱۵۵) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۷۶)-
۷) (عمدةالقاری (ج ۱٤ص۱۵۵) والمغنی لاب قدامة (ج۹ص۲۰۱) رقم (۷٤۹٤)-
۸) (شرح ابن بطال (ج۵ص۶۷) وعمدة القاری(ج ۱٤ص۱۵۵)وفتح الباری (ج۶ص۶۷)-

دي؟ نو هغوی اوفرمائیل چه په اسونوباندې زکوة شته؟ مقصد همدغه وو چه په خیل باندې زکوة نشته، نو په دې وجه په براذین باندې هم زکوة نشته دا (دَ ائمه ثلاثه مذهب دې) ځکه چه براذین هم دَ خیل نه دي.(۱)

**دَ مذکوره تعلیق مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ دې تعلیق په ذریعه یو بلې اختلافي مسئلې طرف ته اشاره فرمائیلې ده. چه برذون په اسونو کښې داخل دې او که نه؟ او ده ته به په غنیمت کښې حصه ورکولې شي او که نه؟ او څومره به ورکولې شي؟

ائمه ثلاثه امام اعظم ابوحنیفه، امام شافعي، امام مالك، ثوري، ابوثور، خلال، عمربن عبدالعزیز رحمهم الله مسلك دا دې چه هجین برذون او عراب سهم کښې برابر شریك دی تولوته به یو شان حصه ورکولې شي. (۲)

او امام لیث بن سعد رحمه الله دَ عراب دَ فضیلت قائل دې. هغه فرمائي چه هجین او برذون ته به دَ عراب برابر حصه نه بلکه کمه ورکولې شي. (۳)

اودَ امام احمد رحمه الله نه په دې مسئله کښې څلور اقوال نقل دی:

① صرف یوه حصه به ورکولې شي نه چه دوه. لکه چه فرس کښې هغه دَ دوو حصو قائل دې.

② دَ جمهورو دَ قول موافق چه ده ته به هم دَ عربي نسل په شان ورکولې شي.

③ که براذین دَ عراب په شان په جنګ کښې حصه واخلي تیزي اوښائي نودَ هغه دَ پاره هم دَ عراب په شان مکمل سهم به وي او کمه حصه به نه وي.

④ براذین ته به دَ غنیمت نه حصه نه ملاویږي، راجح قول ړومبې دې. (۴)

**دَ جمهورو دلائل:** دَ جمهورو یو دلیل خو هغه آیت مبارك دې کوم چه امام بخاری رحمه الله ذکر کړیدې، بل هغه احادیث دی په کوم کښې چه دَ سهام فرس ذکر راغلې دې. په دې ټولو احادیثوکښې دا خبره ده چه هغوی صلی الله علیه وسلم فرس له حصې ورکړې دی او دا احادیث مطلق دی په دې کښې دا تصریح چرته هم موجود نه ده چه هغوی دَ اس نسل او جنس ته کتلی او په سهام کښې ئې کمې یا زیاتې کړیدې. (۵)

اودَ قیاس تقاضا همدغه ده چه په براذین او عراب کښې هیڅ قسم فرق اونه کړیشي ځکه چه براذین هم حیوان ذوسهم دې. لکه څنګه چه سړې دې، لکه چه په سړوکښې دَ نسل لحاظ نشي کولې دغه شان به په اسونوکښې هم دَ دې اعتبارنشي کولې او ټولوته به برابره حصه ورکولې شي. (۶)

**دَامام احمد او لیث دلائل او دَ هغې جوابونه:** دَ هغوی ړومبې دلیل هغه روایت دې کوم چه

---

۱) (الموطاللامام مالک (ج۲ص۴۵۷)-

۲) (عمدة القاری(ج ١٤ص١٥٥)وفتح الباری(ج۶ص۶۷)والمغنی(ج۹ص۲۰۱)واعلاء السنن(ج۱۲ص۱۷۷)

۳) ((عمدة القاری (ج ١٤ص١٥٥) وفتح الباری (ج۶ص۶۷)واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۷۷)-

٤) (المغنی(ج۹ص۲۰۱) رقم (۷۴۹٤) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۷۷)-

۵) (المغنی(ج۹ص۲۰۱)واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۷۸) واحکام القران للجصاص(ج۳ص۶۰)-

۶) (حواله بالا-

سعيد بن منصور او ابوداؤد ﷫ د مکحول نه روايت کړې دې.

((ان النبی صلی الله علیه وسلم هجّن الهجین یوم خیبر وعرّب العراب فجعل للعربی سهمین وللهجین سهما)) (١)

يعنى نبى كريم ﷺ د هجين اسونو تحقير اوکړو اود اعراب تعظيم، عراب ته ئى دوه حصې ورکړې او هجين ته يوه حصه.

د دې دليل جواب حافظ ابن حجر ﷫ دا ورکړې دې چه دا روايت منقطع دې نو په دې وجه دا د استدلال قابل نه دې. (٢)

د هغوى دوئم دليل هغه اثر او حکايت دې کوم چه امام شافعى ﷫ "کتاب الام" کښې او سعيدبن منصور خپل سنن کښې د على بن الاقمر په طريق سره نقل کړيدې. فرمائى چه اسونو حمله اوکړه نو عربى اسونه خو خپل منزل ته اورسيدل ليکن براذين روستو پاتې شو، نو منذر بن ابى حمصه بن ابى حمصه وادعى اودريدو او وئى وئيل چه کوم خپل مقام ته اورسيدل هغوى سره به زه هغه شمير نه کړم چه کوم روستو پاتې شو، يعنى هغه عربى اسونوته فضيلت ورکړو. دا خبره حضرت عمر ﷛ ته اورسيدله نو هغوى اوفرمائيل وادعى دې د هغه مور ورك كړى (يعنى هغوى د منذر د مذکوره فعل تصويب او تعريف اوکړو) نور ئى اوفرمائيل د هغه مورهغه نر راوړلې دې هغه چه کومه فيصله کړيده هغه جارى کړئى، نو دې د تپولونه ړومبې سرې وو چا چه براذين له د عراب په مقابله کښې کمه حصه ورکړه. (٣)

ليکن دا دليل هم حافظ ابن حجر ﷫ منقطع گرځولې دې. (۴)

امام احمد ﷫ د دې اثر جواب ورکولو سره فرمائى چه پخپله د حضرت عمر ﷛ د منذر بن ابى حمصه وادعى په مذکوره فعل باندې حيرانتيا د دې خبرې مقتضى ده چه د دې واقعې نه وړاندې براذين ته هم د عراب په شان مکمل سهم ورکولې شو. دې نه دا ثابته شوه چه عادت مستمره په براذين اوعراب کښې برابر د شروع نه راروان وو. (۵)

حضرت امام محمد ﷫ نور فرمائى چه منذر د حضرت عمر ﷛ عامل ووهغه چه کومه فيصله اوکړه مجتهدفيه کښې ئې اوکړه او حضرت عمر ﷛ د هغه مذکوره فيصله په ځائې اوساتله ليکن دا د دې دپاره نه وه چه پخپله د حضرت عمر ﷛ رائې هم دا وه چه هغه هم د منذر هم خيال وو بلکه د دې وجه دا وه که چرې حاکم د يو مجتهدفيه څيز کښې څه فيصله اوکړى نو روستنو حکام ته دا حق حاصل نه دې چه هغه د ړومبى حاکم فيصله ختمه کړى.په دې وجه حضرت عمر ﷛ د هغه فيصله برقراره اوساتله او هغه ئى باطله ونه گرځوله. (۶)

**قوله:** <u>ولا یسهم لاکثر من فرس</u>: د يو اس نه به زياتو اسونو ته سهم نه شى ورکولې.

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٥٦) وفتح البارى (ج ۶ص ۶۷) واعلاء السنن (ج ١٢ص ١٧٧)-

٢) (فتح البارى (ج ۶ص ۶۷)-

٣) (حواله بالا والمغنى (ج ٩ص ٢٠٢) واعلاء السنن (ج ١٢ص ١٧۶) وکتاب الامام للشافعى (ج ٤ص ٣٣٧)-

٤) (فتح البارى (ج ۶ص ۶۷)-

۵) (اعلاء السنن (ج ١٢ص ١٧٧)-

۶) (حواله بالا-

دا د امام مالك رحمه الله د تيرشوي كلام باقي حصه ده. (۱)
دا هم اختلافي مسئله ده، طرفين، امام شافعي، امام مالك او د ظاهريه رحمهم الله مذهب دا دې چه مجاهدته به د هغه په ډيرو اسونو كښې يو اس ته حصه ملاويږى، په كوم چه هغه جنګ كړيدې. سره د دې چه هغه د جنګ ميدان ته ډير اسونه راوستې وى.
او امام ابويوسف، احمد، اسحاق، ليث بن سعد، ثورى، اوزاعى، مالكيه نه ابن وهيب او ابن جهم رحمهم الله مسلك دا دې چه دوو ته به سهم وركولې شى. (۲)
د جمهورو دلائل: ① امام مالك رحمه الله فرمانى ((بلغنى ان الزبير بن العوام شهد مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بفرسين يوم خيبر فلم يسهم له الا بسهم فرس واحد)) (۳)
② مبسوط كښې ((ابراهيم التيمى عن ابيه)) په طريق دا روايت علامه سرخسى رحمه الله نقل فرمانى ((ان النبى صلى الله عليه وسلم لم يسهم لصاحب الافراس الالفرس واحد يوم حنين)) نبى كريم صلى الله عليه وسلم په غزوه حنين كښې د ډيرو اسونو خاوندانوته هم صرف يو سهم وركړې وو.
علامه سرخسى رحمه الله د دې روايت نقل كولو نه پس فرمانى چه دينه حضرت امام اعظم او امام محمد رحمهما الله استدلال كړيدې او د مجتهد د يو روايت نه استدلال د هغه تصحيح ده، نور دې په تائيد كښې د امام مالك رحمه الله (پورته) ذكر شوې بلاغ نه هم كيږى.
دې نه علاوه سره د دې چه دا روايت مرسل دې ليكن د دې قسم مرسل روايات زمونږ او د اكثرو په نزد حجت دې، ځكه چه د ابراهيم پلار يزيد بن شريك مخضرم تابعى دې. (۴)
③ امام ابوبكرجصاص رحمه الله د فريقينو مسلك تحرير كولونه پس ليكى:
((والذى يدل على صحة القول الاول انه معلوم ان الجيش قد كانوا يغزون مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بعد ما ظهر الاسلام بفتح خيبر ومكة وحنين وغيرها من المغازى، ولم يكن يخلو الجماعة منهم من يكون معه فرسان او اكثر ولم ينقل ان النبى صلى الله عليه وسلم ضرب لاكثر من فرس واحد وايضا فان الفرس الة، وكان القياس ان لايضرب له بسهم كسائر الالات، فلما ثبت بالسنة والاتفاق سهم الفرس الواحد اثبتناه، ولم تثبت الزيادة اذكان القياس يمنعه......)) (۵)
او چه كوم ځيز اول قول (يعنى د امام اعظم رحمه الله اونورو قول) په صحت باندې دلالت كوى

---

۱) (حواله بالا وعمدة القارى (ج ۱٤ص ۱۵۶) وفتح البارى (ج ۶ص ۶۷)-
۲) (حواله بالا المغنى (ج ۹ص ۲۰۲) والام للشافعى (ج ٤ص ۳٤۳) واحكام القران للجصاص (ج ۳ص ۶۰)-
۳) (المدونة الكبرى (ج ۲ص ۳۲) والموطأ للامام مالك بن انس (ج ۲ص ٤۵۷)-
٤) (المبسوط (ج ۱۰ص ٤۶) كتاب السير باب معاملة الجيش مع الكفار واعلاء السنن (ج ۱۲ص ۱۸۱) وقواعدفى علوم الحديث (ص ۵۷) الفصل الثانى فى بيان ما يتعلق بالتصحيح.....-
۵) (اعلا السنن (ج ۱۲ ص ۱۸۱) واحكام القران للجصاص (ج ۳ص ۶۰) وقال الشافعى فى "الام" له: ولكننا ذهبنا الى اهل المغازى فقلنا انهم لم يرووا انه عليه السلام اسهم لفرسين ولم يختلفوا انه حضر خيبر بثلثة افراس لنفسه: السكب، والضرب والمرتجز ولم ياخذ الالفرس واحد" انظر الام (ج ۷ص ۳٤۳)-

هغه دا دي چه دا خبره خو معلومه ده چه اسلامی لښکر فتح مکه، خیبر، مکه او حنین په ذریعه اسلام ته غلبه حاصلیدلو نه پس هم نبی کریم ﷺ سره په غزواتوکښې شرکت کولو. په دې لښکر او ډله کښې د داسې کسانو هم څه کمې نه وو چاسره چه دوه یا زیات اسونه وو اونه د نبی کریم ﷺ نه نقل دی چه هغوی د یو اس نه زیاتو ته څه حصه ورکړې وی. اس یوځیز دې اود قیاس تقاضا همدغه ده چه څنګه د جنګ نور سازوسامان ته سهم نه شی ورکولې دغه شان دې هغه ته هم نه ورکوی. نو چه کله د سنت او اجماع نه د یو اس سهم ثابت شو نو مونږ دا حکم برقرار اوساتلو او زیاتوالې مو برقرار اونه ساتلو ځکه چه قیاس دینه مانع دې.

**د دوئم فریق دلائل او د هغې جوابونه:** ① امام ابویوسف رحمه الله کتاب الخراج کښې د خپل قول دپاره د حضرت حسن بصری رحمه الله د ارشاد نه استدلال کړې دې. د کوم حاصل چه دا دې چه د غنیمت نه به د دوو نه زیاتو اسونوته سهم نشی ورکولې. (۱)

② هغه د امام مکحول رحمه الله د دې قول نه هم استدلال کوی چه "لایقسم لاکثرمن فرسین" (۲) لیکن ظاهره خبره ده چه د تابعي قول حجت نه دې، خصوصاً چه دا ثابته شوې هم وی چه نبی کریم ﷺ غزوه حنین کښې د یو نه زیات اسونوته سهم نه وو ورکړې. (۳)

البته بعض احادیث د دوئم فریق هم تائیدکوی مثلاً

③ امام سعید بن منصور (فرج بن فضالة، حدثنا محمد بن الولید الزبیدی عن الزهری) په طریق نقل کړی دی چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه حضرت ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه ته لیکلي وو چه یو اس ته دوه، دوه اسونوته څلور اودهغې مالك ته یوه حصه ورکوه. نوداتولې پنځه حصې شوې (۴)

لیکن د دې نه په دې لاندینی وجوهاتو استدلال کول صحیح نه دی:

① دا روایت مرسل دې او د امام زهری رحمه الله مرسل روایات د محدثینو په نزد ضعیف دی.

② زمونږ په نزد دا پورته ذکر شوې حدیث یو خاص معرکه باندې محمول دې، په کوم کښې چه مسلمانانوڅوشپې او ورځې جنګ کړې وو لکه غزوه یرموك وغیره.

مسلمانانو ته د دې خبرې ضرورت شو چه هغوی دوه یا زیات اسونو باندې سورلی اوکړی، ظاهره خبره ده چه کله جنګ ترڅو ورځو پورې روان وی نو یقیناً یو اس به کافی نه وی، اوس که چرې معامله داسې وی او د دوو اسونوضرورت پریوزی نو امام ته اختیار دې چه هغه د نفل په توګه دوو اسونو ته سهم ورکړی لکه څنګه چه هغه ته دا هم اختیار دې چه نفلاً یو اس ته دوه سهم ورکړی لکه چه حضرت عمر رضی الله عنه په دې اثر کښې ارشاد فرمائیلې دې. او د هغوی پخپله مذهب دا دې چه د فارس به دوه سهم وی یو د هغه او یو د هغه د اس کماتقدم قبل. (۵)

---

۱) (کتاب الخراج للامام ابی یوسف (ص ۲۰) واعلاء السنن (ج۱۲ص۱۸۱)-

۲) (حواله بالا-

۳) (اعلاء السنن (ج۱۲ص۱۸۱)-

٤) (حواله بالا-

۵) اعلاء السنن (ج۱۲ص۱۸۲) د نورودلائلو اود هغې د جوابونو د پاره اوګورئ حواله سابقه (ص۱۸۲- ۱۸۳)

## ۵۲- بَاب: مَنْ قَادَ دَابَّةَ غَيْرِهِ فِي الْحَرْبِ

**دباب دَ ترجمې مقصد:** امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دَ غازی دَ سورلئی دَ هغه دَ امداد په غرض راښکلو فضيلت بيانوی چه په دې کار کښې دَ غازی امداد کيږی نو په دې وجه دا هم دَ ثواب کار دې. (۱)

او دا هم وينلې شی چه امام بخاری رحمه الله دلته دا خودلې وی چه خاروې راښکل او بوتلل دا په هغه جلب منهی عنه کښې داخل نه دی دَ کوم ذکر چه دَ ابوداؤد په روايت ((لاجلب ولاجنب)) (۲) کښې راغلی دی نو شيخ الحديث محمد زکريا رحمه الله فرمائی:

((ولك ان تقول: انه اشار بذلك الى ان النهى عن الجلب لايتناول هذا)) (۳)

[۲۷۰۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ رَجُلٌ لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (۴) أَفَرَرْتُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَكِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَفِرَّ إِنَّ هَوَازِنَ كَانُوا قَوْمًا رُمَاةً وَإِنَّا لَمَّا لَقِينَاهُمْ حَمَلْنَا عَلَيْهِمْ فَانْهَزَمُوا فَأَقْبَلَ الْمُسْلِمُونَ عَلَى الْغَنَائِمِ وَاسْتَقْبَلُونَا بِالسِّهَامِ فَأَمَّا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَفِرَّ فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ وَإِنَّهُ لَعَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَإِنَّ أَبَا سُفْيَانَ آخِذٌ بِلِجَامِهَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ
[۲۷۱۹، ۲۸۷۷، ۲۷۷۲، ۴۰۶۱-۴۰۶۳]

## تراجم رجال

۱- **قتيبه:** دا شيخ الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد الثقفی رحمه الله دې دَ دوی حالات ((کتاب الايمان، باب افشاء السلام من الاسلام)) کښې تيرشوی دی. (۵)

۲- **سهل بن يوسف:** دا ابوعبدالرحمن سهل بن يوسف انماطی (۶) بصری رحمه الله دې (۷)

---

۱) (الابواب والتراجم للكاندهلوی (ج۱ص۱۹۶)-
۲) (سنن ابی داوٗد ابواب زكاة باب اين تصدق الاموال رقم (۱۵۹۱-۱۵۹۲)-
۳) (الابواب والتراجم للكاندهلوی(ج۱ص۱۹۶)-
٤) (قوله: البراء بن عازب رضی الله عنهما الحديث اخرجه البخاری ايضاً كتاب الجهاد والسير باب بغلة النبی صلی الله عليه وسلم البيضاء رقم (۲۸۷٤) وباب من صف اصحابه عند الهزيمة ونزل عن دابته واستنصر رقم (۲۹۳۰) وباب من قال:خذها وانا ابن فلان رقم (۳۰٤۲) وكتاب المغازی باب قول الله تعالی﴿ويوم حنين اذا اعجبتكم كثرتكم .... الی قول غفور رحيم﴾ رقم (٤۳۱۵-٤۳۱۷) ومسلم كتاب الجهاد باب غزوة حنين رقم (٤۶۱۵-٤۶۱۷) والترمذی ابواب الجهاد باب ماجاء فی الثبات عندالقتال رقم (۱۶۸۸)-
۵) (كشف الباری (ج۶ص۱۸۹)-
۶) (الانماطی منسوب الی المنوط هو "توب من صوف يطرح علی الهودج" (المنجد فی اللغة:ماده "نمط" وكان سهل بيبع الانماط فنسب اليها تعليقات تهذيب التهذيب (ج٤ص۲۵۹)-
۷) (تهذيب الكمال (ج۱۲ص۲۱۳)-

دي د ابن عون، عبيدالله بن عمر، عوف الاعرابى، حميد الطويل، سعيد بن ابى عروبه، سليمان التيمى، عوام بن حوشب، شعبه اومثنى بن سعيد الطائى رحمهم الله غوندې اساطين علم حديث نه روايت كوى.

اوډ هغه نه روايت كونكوكښې امام احمدبن حنبل، يحيى بن معين، بندار، ابوموسى، ابوبكر بن ابى شيبه، قتيبه بن سعيد، نصربن على جهضمى، عباس بن يزيدالبحرانى رحمهم الله وغيره غوندې محدثين شامل دى.(۱)

عباس الدورى، امام يحيى بن معين رحمه الله نه نقل كوى "ثقة قد سمعت منه"(۲)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى((لابأس به)) (۳)

امام نسائى رحمه الله فرمائى((ثقة)) (۴)

علامه ابن حبان رحمه الله هغه په (كتاب الثقات) كښې ذكر كړيدې (۵)

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى ((ثقة)) (۶)

امام طحاوى رحمه الله داَبراهيم بن ابى داوُد نه نقل كړى دى فرمائى ((بصرى ثقة)) (۷)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائ ((وثقوه)) (۸)

امام مسلم رحمه الله نه علاوه نورو اصحاب صحاح دَ دوى نه روايات اخستې دى (۹)

په كال ۱۹۴ه كښې وفات شوې دې (۱۰)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى ((سمعت منه سنة تسعين، ولم اسمع بعد منه شيئاً اراه كان قد مات)) (۱۱) رحمه الله رحمة واسعة.

**۳- شعبه:** دا په حديث كښې امير المؤمنين شعبه بن الحجاج رحمه الله دې، دَ دوى مختصر حالات ((كتاب الايمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) كښې تيرشوى دى. (۱۲)

---

۱) (شيوخ وتلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۱۲ص۲۱۳)-
۲) (تهذيب الكمال (ج۱۲ص ۲۱٤)-
۳) (الجرح والتعديل (ج٤ص۱۹۳) رقم (۵،۸۸۵،۶۰۰)-
٤) (تهذيب الكمال (ج۱۲ص ۲۱٤)-
۵) (حواله بالا-
۶) (تهذيب الكمال (ج۳ص ۲۶۰)-
۷) (حواله بالا-
۸) (الكاشف (ج۱ص ٤۷۱)-
۹) (تهذيب الكمال (ج۱۲ص ۲۱٤)-
۱۰) (تعليقات تهذيب الكمال (ج۱۲ص ۲۱٤)-
۱۱) (تهذيب الكمال (ج۱۲ص ۲۱٤)-
۱۲) (كشف البارى (ج۱ص۶۷۸)-

۴-ابی اسحاق: دا ابو اسحاق عمرو بن عبدالله السبیعی رحمه الله دي.

۵-البراء بن عازب رضی الله عنه: دا مشهور صحابی حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دي، دَ دې دواړو حضراتو حالات ((کتاب الایمان باب الصلاة من الایمان)) کښې تیرشوی دی. (۱)

**قوله: قال رجل للبراء بن عازب رضي الله عنه:** یوسړی حضرت براء بن عازب رضی الله عنه ته اووئیل "مغازی د روایت نه معلومیږی چه دا سړې د قبیله قیس نه یوکس وو، نو دَ مغازی په روایت کښې داسې راغلی دی ((وساله رجل من قیس)). (۲)

**قوله: افررتم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم حنین؟:** آیا تاسوخلقو په غزوه حنین کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم پریخي وو او تختیدلی وئ؟

په حدیث باب کښې ذکر شوې سوال او جواب دَ غزوه حنین متعلق دې په کوم کښې چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو په مقابله کښې هوازن او دثقیف قبیلې ۲۰زره خوانان وو اودا جنګ په حنین وادئی کښې.شوې وو. دَ دې جنګ په اول وهله کښې مسلمانان دَ مخالف قبیلودَ غشو ورولونه اوویریدل او ګډوډ شوې وو اوصرف یو څو صحابه کرام رسول الله صلی الله علیه وسلم سره پاتې شوې وو.دَدې غزوه مکمل تفصیل (کتاب المغازی) کښې تیرشوې دې.(۳)

**قوله: قال لکن رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یفر:** حضرت براء رضی الله عنه فرمائی لیکن رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وو تختیدلی.

کلمه ((لکن)) دَ استدراك دَ پاره ده اوتقدیری عبارت دلته داسې دې ((نحن فررنا ولکن رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یفر)) مونږ خو تختیدلې وو لیکن نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه وو تختیدلی. (۴)

اودَحضرت براء رضی الله عنه مقصود دَ دې حذف دَعبارت نه دَصحابه کرامودَ تختیدو تصریح نه کول وو. (۵)

**دَانبیاء کرامو دَ میدان جنګ نه تیخته ممکن نه ده:** حضرت براء رضی الله عنه دا اوفرمائیل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حنین نه نه ووتختیدلی.دغه شان دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په ټول ژوند باندې دلیل دې، او دَ نورو انبیاء کرامو همدغه شان وو چه هغوی کله هم دَ جنګ دَ میدان نه نه دی تختیدلی. ځکه چه هغوی په اقدام کښې بې مثاله،په بهادرئی کښې بې مثاله، دَ الله تعالی په وعده او نصرت باندې دَ هغوی پوره یقین وو اودا حضرات دَ شهادت او دَ الله تعالی سره دَ ملاقات خواهش مند وو.دَ انبیاء کرام علیهم السلام نه دَ یوباره کښې هم په حق کښې دَ

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص ۳۷۰-۳۷۶)-
۲) (الصحیح البخاری کتاب المغازی باب قول الله تعالی ﴿ویوم حنین اذ اعجبتکم کثرتکم..﴾ رقم (۴۳۱۷)
۳) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۵۳ی۲)
۴) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۱۵۷)-
۵) (حواله بالا-

جنګ د میدان نه تیښته اختیارول ثابت نه دی. او چه کوم سړی د دې خبرې قائل شوهغه به قتل کولې شی او د هغه نه به د توبې مطالبه نشی کولې ځکه چه د هغه دا قول داسې دې لکه چه یو سړې داسې اووائی چه هغوی ﷺ تور او عجمی وو او د هغوی ﷺ تور او عجمی نه کیدل په قطعی دلائلو ثابت دی. او دا د کفر قول دې. علامه قرطبی رحمه الله فرمائی:

((وحکی عن بعض اصحابنا الاجماع علی قتل من اضاف الیه صلی الله علیه وسلم نقصا اوعیبا وقیل: یستتاب فان تاب والاقتل)) (١)

یعنی زمونږ د بعض صحابه کرامو نه دا اجماع نقل کړیشوې ده چه کوم سړې د نبی کریم ﷺ طرف ته یو نقص یا عیب منسوب کړی هغه به قتل کولې شی او دا هم وئیلې شوی دی چه ده نه به د توبې مطالبه کولې شی که توبه ئی اوکړه نو ښه خبره ده او ګنی هغه به قتل کولې شی.

علامه ابن بطال رحمه الله د داسې سړی (چه د حضور ﷺ د منهزم کیدو قائل وی) د قتل علت بیانولو سره فرمائی :((لانه کافر، ان لم یتاول، ویعذر بتاویله))(٢)

یعنی ددې د پاره چه هغه سړې کافر دې که هغه د خپل قول تاویل او نه کړی اوکه هغه د دې خبرې قائل یو نص وړاندې کیږدی اود هغې تاویل اوکړی نو په داسې تاویل کولو به هغه معذوره ګڼلې شی او کافربه ئی نشی ګرځولې.

اونبی کریم ﷺ په شان کښې به دا تصور څنګه کیدیشی چه هغوی به میدان پریږدی. د مسلم په روایت کښې د حضرت براء رضی الله عنه الفاظ دا دی: ((قال البراء : کنا والله، اذا احمر الباس نتقی به، وان الشجاع منا للذی یحاذی به)) یعنی النبی صلی الله علیه وسلم (٣)

حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چه په الله قسم! کله به مونږ د جنګ شغلې اوچتیدونکې اولیدې نو هم د حضور ﷺ په ذریعه به مو خپل ځان بچ کولو او په مونږ کښې بهادر هم هغه ګڼلې کیدو چه د هغوی په نقش قدم به روان وو یعنی نبی کریم ﷺ.

**قوله:** ان هوازن کانواقوما رماة وانما لما لقیناهم حملنا علیهم فانهزموا، فاقبل المسلمون علی الغنائم، واستقبلونا بالسهام: په اصل کښې د هوازن قبیلې خلق ډیر غشی ویشتونکی وو، کله چه زمونږ د هغوی سره مقابله اوشوه نو مونږ په هغوی باندې حمله اوکړه نو هغوی ماتې اوخوړلواوتختیدل، بیا مسلمانان غنائمو طرف ته متوجه شو نو کافرانو په غشو باندې زمونږ استقبال اوکړو.

دلته په ذکر شوی عبارت کښې حضرت براء رضی الله عنه صحابه کرام رضی الله عنهم په میدان جنګ کښې

---

١ ) (حواله بالا-

٢ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص٦٩) وایضًا انظر لتفصیل هذه المسالة نسیم الریاض فی شرح شفاء القاضی عیاض (ج١ص١٦٥) القسم الرابع فی تصریف وجوه الاحکام.... فصل فی احجة فی ایجاب قتل من سبه اوعابه صلی الله علیه وسلم-

٣ ) (الصحیح لمسلم کتاب الجهاد والسیر باب غزوة حنین رقم (٤٦١٦) والجامع لاحکام القران (ج٨ ص ١٠١)

پريخودل اود تيښتې علت ئې اوخودلو چه د دې دا وجه شوې وه چه د هوازن خلق د غشو ويشتلو ماهرو وو دې سره کله چه زمونږ د هغوى سره مخامخ شو او ښه جنګ اوشو نو هغه خلق اوتختيدل، مسلمانانو دا خيال اوکړو چه فتح حاصله شوه. د دښمن د واپس راتلو امکان نشته نو د دې د پاره هغوى د غنائمو په جمع کولو کښې مشغول شو. کافرانو موقع غنيمت اوګڼړله بيائې حمله اوکړه او ښه غشى ئې اوورول، په څه سره چه د مسلمانانو پښې اوخوښيدې او اوتختيدل او خپل ځايونه ئې پريخودل. کله چه حضور ﷺ مکې ته تشريف راوړو نولس زره لښکر ورسره وو، دفتح مکه نه پس کله چه حنين ته ئې تشريف يوړو نو ډير خلق چه د فتح نه پس مسلمانان شوى وو هغوى په غزوه حنين کښې شامل شو. هوازن چه کله دوباره حمله اوکړه او د غشو باران ئې اوکړو نو ناڅاپى دې مصيبت سره د فتح مکه خلقو کښې ويره خوره شوه اودا خلق د زرګونو په تعداد کښې وو د دې په نتيجه کښې په صحابه کرامو کښې هم د تيښتې کيفيت پيدا شو. روستو چه کله حضور ﷺ واپس راوغوښتل نو صحابه کرام حضرات واپس شول او الله تعالى فتح ورنصيب کړه. (۱)

**قوله: فـأمـا رسول الله صلى الله عليه وسلم فلم يفر:** پاتې شو رسول الله ﷺ نو هغه اونه تختيدو.

دلته هم عبارت مقدر دې. ((اما نحن فقد فررنا واما رسول الله صلى الله عليه وسلم فلم يفر)) (۲)

**قوله: فلقد رايته، وانه لعلى بغلته البيضـاء:** تحقيق ما رسو ل الله ﷺ اوليدو او هغوى په خپله سپينه قچره باندې سور وو.

هغوى ﷺ په قچره باندې د سورلئى په حالت کښې وراندې شواوبيا د مشرکانو مجمع طرف ته تلل د شجاعت او بهادرئى حيرانونکې مثال دې. بيا چه کله هغوى په دې حالت کښې د سورلئى نه کوزشول نو د بهادرئى نور هم اعلى او اوچت مثال ئې قائم کړو. (۳)

د هغوى ﷺ د دې فعل نه دا خبره هم ثابتيږى چه د الله تعالى په لارکښې د خپل نفس هلاکت او شدت (سختئى) کښې اچول جائز دى. څکه چه د غزوه حنين په موقع باندې ټول صحابه کرام سواد دولسو (۴) ټول په ټول تختيدلې وو او د مشرکانو تعداد د هغوى نه په څو چنده زيات وو ليکن د دې باوجود دا حضرات په خپلوخپلو ځايونو او صفونوکښې کلک ولاړ وو اود ضرورت په وخت کښې چه د تيښتې کوم اجازت دې په هغې باندې ئې عمل اونه کړو. (۵)

**قوله: وان اباسفيـان اخذ بلجـامهـا:** اوحضرت ابوسفيان رضی الله عنه د قچرې واګه نيولې وه.

---

۱) (کشف البارى کتاب المغازى (ص۵۳۲)-
۲) (عمدة القارى (ج ١٤ ص١٥٧)-
۳) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٥٧)-
٤) (حواله بالا-
۵) ( شرح ابن بطال (ج۵ ص۶۹)-

دَ "ابوسفيان" نه مراد ابوسفيان بن الحارث ﷺ دې اودَ دې خبرې تصريح (كتاب المغازي) په روايت كښې موجود دې.((وان اباسفيان بن الحارث اخذ بزمامها)) (١)

**حضرت ابوسفيان بن الحارث ﷺ:** دا دَ حضور ﷺ رضاعي او دَ تره خوئ حضرت ابوسفيان مغيره حارث بن عبد المطلب بن هاشم هاشمي ﷺ دې. (٢) هغه دَ حضرت حليمه سعديه ﷺ پنې څکلې وو. (٣) او بعض حضراتو مغيره دَ هغه دَ رور نوم ګرځولې دې او وئيلي دي چه د هغه كنيت هم دَ هغه نوم مبارك دې. حضرت عبدالله بن مبارك او ابراهيم بن المنذر، علامه كلبي او زبير ﷺ قول دا دې چه مغيره هم دَ هغه نوم دې. (۴)

دَ هغوی مور غزية بنت قيس بن طريف بن عبدالعزى ده. (۵)

داشاعر وو او دَ صحابه كرامو اونبي كريم ﷺ بدبه ئې وئيل، دَ اسلام او مسلمانانو سخت مخالف وو. پوره شل كاله په خپله دې لار باندې قائم وو اودَ مسلمانانو خلاف چه قريشو څومره جنګونه كړي په هغه تولوكښې دَ قريشو سره او دَ مسلمانانو خلاف شريك شوی دی. دَ هغوی دَ مسلسل دَ اسلام سره دَ دښمنئ په وجه حضور ﷺ دَ هغوی وينه هدر يعني مباح ګرځولې وه.

كله چه اسلام ترقي اوكړه اونبي كريم ﷺ دَ فتح دَ پاره دَ مكې مكرمې رخ اوكړو نو الله تعالى دَ هغوی په زړه كښې دَ اسلام مينه واچوله. (۶)

**دَ اسلام راوړلوواقعه:** دَحضرت ابوسفيان ﷺ دَ اسلام راوړلو واقعه ابن سعد ﷺ په خپل "طبقات" كښې ذكر كړېده هم پخپله دَ حضرت ابوسفيان په ژبه ئې واورئې: زه خپل خوئ او بي بي له راغلم، هغوی ته مې اووئيل چه دَ وتلو تيارى كوئې څكه چه محمد (ﷺ) تشريف راوړونكې دې نو هغوی اووئيل مونږ په تاباندې قربان شو تاله پكار دى چه اوګورې چه دَ عرب او عجم خلقو دَ هغوی ﷺ منل كړې دى. تراوسه پورې ته دَ هغه په دښمنئ كښې يو حدپورې رسيدلې وې او دَ هغه دَ نصرت دَ پاره تاله دَ ټولونه اول تلل پكار وو.(يعنى دَ هغه بي بي او خوئ هم دَ هغه حوصله اوچته كړه)

بيا ما خپل خوئ ته اووئيل چه زما اوښان او اسونه زر ماله راوله، بيامونږ دَ مكې نه اووتلو، زمونږ منزل هم رسول الله ﷺ وو نو مونږ لاړو، كله چه ابواء مقام ته اورسيدو نو هلته كښې مو ډيره واچوله او دَ رسول الله ﷺ لښكر هم په ابواء كښې ډيره اچولې وه دَ چا منزل چه مكه مكرمه وه. زه دَ رسول الله ﷺ دَ مخامخ كيدو نه ويريدم، څكه چه هغوی زما

---

١) (الصحيح للبخاري كتاب المغازي باب قول الله تعالى: ﴿ ويوم حنين اذاعجبتكم كثرتكم فلم تغن..... ﴾ رقم٤٣١٥، ٤٣١٧)-

٢) (سيراعلام النبلاء (ج١ص٢٠٢) والاصابة (ج٤ص٩٠)-

٣) (طبقات ابن سعد(ج٤ص٩٠) والاصابة (ج٤ص٩٠)-

٤) (الاصابة (ج٤ص٩٠) وسيراعلام النبلاء (ج١ص٢٠٣)-

٥) (طبقات ابن سعد (ج٤ص٣٩)-

۶) (حواله بالا-

د وینې نذرمنلې وو، ما خپله شکل بدل کړو او د خپل خوئ جعفر لاس مې اونیولو بهر راووتلم، تقریباً یو میل پیدل لاړم. دا د هغه سحر خبره ده په کوم کښې چه رسول الله ﷺ د ابواء په مقام کښې تشریف ایخودې وو، زه د هغوی مخې ته لاړم نو هغوی ﷺ مخ مبارك بل طرف ته واړولو، زه هغه طرف ته لاړم نو بیا هغوی مخ مبارك واړولو، هغوی ﷺ زما نه خوخل دوه اوکړه نو زه د نزدې او لرې خیالاتو راګیرکړم او خپل ځان ته مې اوونیل چه زه به هغوی ﷺ ته د رسیدو نه اول قتل کړې شم، او ما د هغه نیکی، صله رحمی او د هغه سره خپلولی رایاده کړه، نو هغوی زما دا کوشش او معذرت قبول کړو.
زما یقین وو چه رسول الله ﷺ به زما اسلام راوړلو سره خوشحاله شی نو ما اسلام قبول کړو او هم په دې حال کښې هغوی ﷺ سره اووتلم او د هغوی سره فتح مکه او حنین کښې شریك شوم. په غزوه حنین کښې چه کله زمونږ دښمن سره مقابله اوشوه نو زه د اس سره په پټو سترګو په لښکر کښې ورننوتلم او زما په لاس کښې بربنډه توره وه، هغوی ﷺ هم زما طرف ته کتل خو هغوی ته دا خبره معلومه نه وه چه د هغوی د پاره زه خپل ځان قربانی کول غواړم. نو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نبی کریم ﷺ ته اوفرمائیل ((یا رسول الله هذا اخوك، وابن عمك ابوسفیان بن الحارث، فارض عنه)) چه یا رسول الله! دا ستاسو رور، اوستاسو د تره خوئ ابوسفیان بن حارث دې د هغه نه راضی شئی، هغوی ﷺ اوفرمائیل ما دې معاف کړو الله تعالی دې هم د ده هغه دښمنئی چه ده ماسره ساتلې وې معاف کړی. بیا حضور ﷺ ماته متوجه شو او وئی فرمائیل زما روره په خدائی چه ما رکاب کښې دهغه پښه ښکل کړه.(۱)
هغه د نبی کریم ﷺ سره صورةً مشابه وو، هغوی به دې ډیر عزیز ساتلو هغوی ﷺ دوی ته د جنت خوشخبری هم ورکړه، ارشاد مبارك دې ((ابوسفیان بن الحارث سید فتیان اهل الجنة))(۲)
او وئی فرمائیل ((ابوسفیان اخی وخیر اهلی وقد اعقبنی الله من حمزة اباسفیان بن الحارث)) ابوسفیان زما رور او د بهتر کور د خلقو نه دې او تحقیق الله تعالی حضرت حمزه نه پس ماته ابوسفیان بن حارث د بدل په توګه راکړو. دې نه پس به ئی هغه "اسد الله" او "اسد الرسول" په وقیع الفاظوسره رابللو.(۳)
دحضور ﷺ په وفات باندې هغوی یو ډیر د اثر نه ډك اود دردنه ډكه مرثیه هم وئیلې وه.(۴)

---

۱) (طبقات ابن سعد (ج ٤ص ۵۰)-
۲) (الاصابة (ج ٤ص ۹۰)-
۳) (الاستیعاب بهامش الصابة (ج ٤ص ۸٤) وطبقات اب سعد (ج ٤ص ۵۲)-
٤) (قال ابن اسحاق: ولابی سفیان یرثی النبی ﷺ:

ارقت فبات لیلی یزول ... ولیل اخی المصیبة فیه طول
واسعدنی البكاء و ذاک فیما ... اصیب المسلمون به قلیل
فقد عظمت مصیبتنا وجلت ... عشیة قیل قد قبض الرسول
فقدنا الوحی والتنزیل فینا ... یروح به و یغدو جبرئیل
و ذاک احق ما سالت علیه ... نفوس الخلق او كادت تسیل ....[بقیه حاشیه په بل صفحه...

هغه حج ته لاړو او هلته حجام د هغه سر اوخرولو، د هغوی په سر کښې يوه زخه وه چه نائی کټ کړه اود هغې د وجه نه د هغه مرګ واقع شواو خلقو به هغه شهيد ګڼړلو. (١)

په شلمه هجری کښې مدينه منوره کښې د هغوی وفات شوې دې (٢) رضی الله عنه وارضاه.

**قوله:** والنبي صلى الله عليه وسلم يقول: انا النبي لاكذب انا ابن عبد المطلب

او هغوی ﷺ فرمائيل چه زه نبی يم په دې کښې څه دروغ نشته او زه د عبد المطلب غونډې د سردار ځوئ يم.

د حضور ﷺ دا پورتنې قول ((انا النبي لاكذب)) کښې د نبوت محمدی اثبات دې، مطلب دا دې چه زه په خپل قول کښې کاذب نه يم چه ماته ماتې اوشې، ځکه چه ماتې هم هغوی ته کيږی د چا چه د الله تعالی په امداد او نصرت يقين نه وی او د مرګ ويره ورسره وی. (٣)

او ظاهره خبره ده چه په الله تعالی باندې کامل يقين د نبی او رسول وی او چه چاته د دې درجې يقين حاصل شی هغه ماتې نشې خوړلې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث د باب ترجمه سره مناسبت په دې جمله کښې دې ((وان اباسفيان بن الحارث اخذ بلجامها)) (۴)

## ٥٣- بَاب: الرِّكَابِ وَالْغَرْزِ لِلدَّابَّةِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله دا خودلې دی چه رکاب او غرز که د څاروو د پاره استعمال کړيشی نو په دې کښې هيڅ مضائقه نشته.

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه حضرت عمر رضی الله عنه نه چه دا روايت دې ((اقطعوا الركب وثبوا على الخيل وثبا)) (۵) که رکاب پريکړې او په اس په توپ ورسور شی نودې نه خوهم دامعلوميږی

دتيرمخ بقيه] نبی كان يجلو الشک عنا بما يوحی اليه و ما يقول

و يهدينا فلا نخشی ضلالا علينا و الرسول لنا دليل

فلم نسر مثله فی الناس حيا و ليس له من الموتی عديل

افاطم ان جزعت فذاک عذر و ان لم تجزعی فهو السبيل

فعودی بالعزاء فان فيه ثواب الله و الفضل الجزيل

وقولی فی ابيک و لاتعلی وهل يجزی بفضل ابيک قيل

فقبر ابيک سيد كل قبر و فيه سيد الناس الرسول

(سيراعلام النبلاء (ج١ص ٢٠٤)-

١ ) (حواله بالاوالمستدرک (ج٣ص٢٥٥)-

٢ ) (سيراعلاء النبلاء (ج١ص٢٠٥) وطبقات ابن سعد(ج٤ص٥٣)-

٣ ) (شرح ابن بطال (ج٥ ص٦٩)-

٤ ) (عمدة القاری (ج١٤ص١٥٦) د حديث باب نوره تشريح د پاره اوګورئ كشف البارى، كتاب المغازى (ص٥٣٥)_

٥ ) (كذا غزاه ابن بطال رحمه الله الى عمر رضی الله عنه الانی لم اجده فی المصادر التی بين يدی-

چه په خاورې باندې دَسوریدلودپاره رکاب استعمالول منع دی نو امام بخاری رحمه الله دَ موجوده باب دَ ترجمه په ذریعه دا فرمائیل غواړی چه حضرت عمر رضی الله عنه دَ سرنه دَ رکاب استعمالول منع نه گرځول بلکه دَ هغوی مقصد دَ دې منع نه خلقو له په پخپله په اسونوبغیر دَ څه سهارې سوریدو مشق اوتمرین ورکولو ترغیب ورکول وو ځکه چه پخپله رسول الله ﷺ دَ رکاب استعمال کړیدې او په خاروی دَ سوریدلودپاره نی دَ هغې نه مدد اخستې دې نو حضرت عمر رضی الله عنه ځنګه دَ هغې نه منع کولی شی؟(١)

**دَ رکاب او غرزمعنی:** رکاب دَ زین هغه زوړند حصې ته وائی په کوم کښې چه سوریدونکې خپله پښه ایږدی. او غرزمعنی هم رکاب دې (٢) په دې اعتبارسره دا دواړه مترادف دی.

یا بعض حضراتو په دواړوکښې فرق خودلې دې چه رکاب خو دَ اوسپنې یا دَ لرګی وی او غرز صرف دَ څرمنې وی.

او دَ بعض حضراتو په نزد غرز دَ اوښ دَ پاره او رکاب دَ فرس دَ پاره وی.(٣)

[٢٧٠٨] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَدْخَلَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ وَاسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ قَائِمَةً أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ [ر: ١٤٤٣]

## تراجم رجال

دا بعینه هم هغه سند دې چه اوس ((باب سهام الفرس)) کښې تیرشویدې.

**تنبیه:** دَ حدیث باب مکمل تشریح کتاب الحج کښې راغلې ده. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث دَ باب ترجمه سره مناسبت دَ حدیث په دې جمله کښې دې ((اذا ادخل رجله فی الغرز)) او رکاب هم دَ غرزپه معنی کښې شامل دې نو امام بخاری رحمه الله غرز سره رکاب هم یوځای کړو یا ئی دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه دا دواړه مترادف دی.(۵)

## ۵۴- بَاب: رُكُوبِ الْفَرَسِ الْعُرْيِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ امام بخاری رحمه الله مقصد دَ دې ترجمه نه دا دې که په اس باندې زین نه وی او دَ هغه شا برېنډه وی اود زین نه بغیر سرې په دې سوروی نو په دې کښې هیڅ مضائقه نشته، دا ضروری نه دی چه هم دَ زین سره به سوریږی بلکه په برېنډه شا سوریدل خود اس دَ سوریدونکی په مهارت دلالت کوی.

---

١) (شرح ابن بطال (ج۵ص ٧٠)-
٢) (المعجم الوسيط (ج١ص٣٦٨) مادة "ركب"-
٣) (فتح البارى(ج۶ص۶۹) وعمدة القارى(ج ١٤ص١٥٨)-
٤) (انظر كتاب الحجج باب قول الله تعالى ﴿ياتوك رجالا.....﴾-
۵) (عمدة القارى(ج ١٤ص١٥٨) وفتح البارى (ج۶ص۶۹)-

د لفظ "عري" تحقيق: "عري" د عين مهمله ضمه او راء په سكون سره دې، د دې معنى بربنډه شا او بغيرزين نه ده.

نو د "فرس عري" معنى بربنډه شا او بغيرزين اس.

او د "عري" لفظ هم څاروو سره خاص دې ځکه چه سړى ته "عري" نشى ونيلې بلکه عريان ورته وائى (١)

د دې کلمې په ضبط کښې دونم احتمال ابن التين رحمه الله دا بيان کړېدې چه په حديث کښې دا لفظ د راء په کسره او ياء په تشديد سره دې يعنى "عَرِيّ" دې.

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: ((وليس في كتب اللغة ما يُساعده))(٢) د لغت کتابونو د هغه د قول موافقت نه کوى.

[٢٧٠] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ (٣) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى فَرَسٍ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِي عُنُقِهِ سَيْفٌ [ر: ٢٤٨٤]

## تراجم رجال

١- عمرو بن عون: دا عمرو بن عون بن اوس سلمى واسطى بصرى رحمه الله دې.(٤)

٢- حماد: دا حماد بن زيد بن درهم ازدى بصرى رحمه الله دې. د دوى حالات ((كتاب الايمان باب ﴿وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا...﴾)) لاندې تيرشوى دى.(٥)

٣- ثابت: دا مشهورتابعى حضرت ابومحمدثابت بن اسلم بنانى رحمه الله دې. د دوى حالات ((كتاب العلم باب القرءة والعرض على المحدث)) په ذيل کښې تيرشوى دى.(٦)

٤- انس: دا مشهورصحابى رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې د دوى حالات ((كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه)) کښې تيرشوى دى.(٧)

قوله: قال: استقبلهم النبى صلى الله عليه وسلم على فرس عرى ما عليه سرج وفى عنقه سيف: حضرت انس رضي الله عنه فرمائى چه د خلقو په وړاندې د يو بربنډ اس په شا سور شو، په هغې زين نه وو او د هغوى صلى الله عليه وسلم په سټ کښې توره زوړنده وه.

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٥٨) وفتح البارى (ج ٦ ص ٧٠)-
٢) (فتح البارى (ج ٦ ص ٧٠)-
٣) (قوله: عن انس رضي الله عنه الحديث مرتجريجه فى كتاب الهبة باب من استعار من الناس من الفرس-
٤) (د دوى د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب ماجاء فى القبلة.....-
٥) (كشف البارى (ج ٢ ص ٢١٩)-
٦) (كشف البارى (ج ٣ ص ١٨٣)-
٧) (كشف البارى (ج ٢ ص ٤)-

تنبیه: حدیث باب ماقبل کښې خوخل تیر شوی دی او هم هلته دَ دې متعلقه بحثونوهم ذکر شوې دې په دې وجه مونږ نورتشریحات نه کوو خود بعض فوائدو ذکر کول به دَ فائدې نه خالی نه وی.

**دَباب دَ حدیث نه مستنبط فائدې:** ① دَ حدیث نه یوه فائده دا مستنبط شوه چه هغوی ﷺ دَ حدنه زیات متواضع وو او هغوی ﷺ دَ اس دَ سوریدو یوماهر وو خکه چه دَ بربنړ اس په شا باندې سورلی هغه سړې کولې شی چه همیشه دَاس سورلی کوی او په هغې کښې مهارت لری(۱)

② دوئمه فائده دا مستنبط شوه چه دَ سور دَ پاره دا مناسب او ضروری دی چه دَ اس دَ سوریدو مشق کوی دې دَ پاره که ناڅاپی څه مصیبت راشی نو چه دَ هغې دَ مقابلې دَ پاره دَ اول نه تیار وی.(۲)

**دحدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث دَ باب دَ ترجمه سره مناسبت واضح دې اوهغه دَ حدیث په دې جمله کښې دې ((استقبلهم النبی صلی الله علیه وسلم علی فرس عری)) (۳)

## ۵۵-بَاب: الْفَرَسِ الْقَطُوفِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری دلته دا فرمائیل غواړی چه په مزه تلونکی اس باندې سورلی کول جائز او مشروع ده.

**دَ کلمه "قطوف" تحقیق:** "قطوف" دَ باب ضرب او نصر نه دې، دَ دې معنی په روتلونکې دې.

لکه چه ونیلې کیږی ((قطفت الدابة يقطف قطافا: اذا ابطات))(۴)

[۲۷۲۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۵) أَنَّ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَزِعُوا مَرَّةً فَرَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ كَانَ يَقْطِفُ أَوْ كَانَ فِيهِ قِطَافٌ فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ وَجَدْنَا فَرَسَكُمْ هَذَا بَحْرًا فَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ لَا يُجَارَى [ر: ۲۴۸۴]

## تراجم رجال

۱- عبدالاعلی بن حماد: دا عبدالاعلی بن حماد بن نصر باهلی ذهلی رحمه الله دی (۶)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۷۹) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۸)-
۲) (حواله بالا وشرح ابن بطال (ج۵ص۷۰)-
۳) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۸)-
٤) (فتح الباری (ج۶ص۷۰) والمعجم الوسیط (ج۲ص۷٤۶) مادة قطف-
۵) قوله: عن انس بن مالک رضی الله عنه: الحدیث مرتخرجه فی کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس
۶) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوگوریٔ کتاب الغسل باب الجنب یخرج ویمشی فی الاسواق وغیره-

۲-یزید بن زریع: دا بومعاویه یزید بن زریع تیمی بصری دی.(۱)

۳-سعید: دا سعید بن ابی عروبه ابوالنصریشکری بصری رحمه الله دی (۲)

۴-قتاده: دا قتاده بن دعامه بن قتاده سدوسی بصری رحمه الله دی.

۵-انس: دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دی، دَ دې دوارو حضراتو حالات ((کتاب الایمان باب من الایمان ان یحب....)) لاندې راغلی دی. (۳)

اودَ حدیث باب تشریحات دَ ماقبل څوخایونوکښې تیریشوی دی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ باب دَ ترجمه سره دَ حدیث مناسبت دې جمله کښې دې ((کان یقطف اوکان فیه قطاف))(۴)

او کلمه دَ "او" دلته دَ شک دَ پاره ده چه راوی ته شک کیږی چه حضرت انس رضی الله عنه یقطف فرمائیلی که قطاف.(۵)

**فائده:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث شریف نه داخبره مستنبط شوه چه بادشاه په کمتر خاروی باندې سورلی اوکړی نو.په دې کښې هیڅ حرج نشته، دې دَپاره چه په هغې مشق اوکړی، برابر ئې کړی اودَ هغې تادیب اوکړی اودا دَ تواضع دَ قبیل نه ده.(۶)

## ۵۶-بَاب: السَّبْقِ بَيْنَ الْخَيْلِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې باب دَ ترجمه نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصددا دې که چرې دَ جهاد دَ تیاری دَ پاره دَ اسونو دَ زغلولو مقابله اوکړیشی نو په دې کښې څه حرج نشته او دَ دې فعل مشروعیت دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه ثابت او منصوص دی.(۷)

**دَ کلمه "سبق" وضاحت:** دَ"سبق" سین مهمله فتحه اودَ باء په سکون سره سبق یسبق نه مصدردې دَ کوم معنی چه مقابله ده، او همدغه معنی دلته مراد ده.

اوکه چرې دا کلمه دَ باء دَ فتحه سره وی یعنی "سبق" نودَ دې معنی دَ هغه شرط ده چه په وړاندې کیدو باندې ایخودې کیږی.(۸)

---

۱) (دَ دوی د حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الوضوء باب غسل المنی وفرکه.... -
۲) (دَ دوی د حالاتودَ پاره اوګوریٔ کتاب الغسل باب اذاجامع ثم عاد ومن دارعلی....-
۳) (کشف الباری (ج۲ص۳-۴)-
۴) (عمدة القاری(ج۱۴ص۱۵۹)-
۵) (حواله بالاوفتح الباری (۶ص ۷۰)-
۶) (شرح ابن بطال(ج۵ص ۷۱)-
۷) (عمدة القاری(ج۱۴ص.۵۹)وفتح الباری(ج۶ص ۷۱)-
۸) (حواله بالا ومختارالصحاح مادة سبق-

[۲۷۴۳] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ(۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَجْرَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ضُمِّرَ مِنَ الْخَيْلِ مِنَ الْحَفْيَاءِ إِلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ وَأَجْرَى مَا لَمْ يُضَمَّرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَكُنْتُ فِيمَنْ أَجْرَى قَالَ عَبْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ قَالَ سُفْيَانُ بَيْنَ الْحَفْيَاءِ إِلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ خَمْسَةُ أَمْيَالٍ أَوْ سِتَّةٌ وَبَيْنَ ثَنِيَّةَ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ مِيلٌ [ر: ۴۱۰]

## تراجم رجال

۱- قبیصه: دا ابوعامر قبیصه بن عقبه بن محمد کوفی رحمه الله دې. دَدوی حالات ((کتاب الایمان باب علامة المنافق)) کښې تیرشوی دی.(۲)

۲- سفیان: دا مشهور امام حدیث حضرت سفیان بن سعید ثوری کوفی رحمه الله دې دَ دې حالات هم "کتاب الایمان" په مذکوره باب کښې تیرشوی دی. (۳)

۳- عبیدالله: داعبیدالله بن عمر العمری رحمه الله دې.(۴)

۴- نافع: دا ابوعبدالله نافع مولی ابن عمر العدوی رحمه الله دې.(۵)

۵- ابن عمر: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب الایمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس)) کښې تیرشوی دی.(۶)

**تنبیه:** دَ حدیث باب بعض تشریحات (کتاب الصلاة) کښې راغلې دی.اودَ بعض فوائدو ذکر انشاء الله دَ څوصفحونه پس مونږ ذکر کوو.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَباب دَ ترجمې دَ حدیث شریف سره مناسبت دَ حدیث دې دووجملوکښې دې ((اجری النبی صلی الله علیه وسلم ماضمر....))او((واجری مالم یضمر))څکه چه ((اجراء)) دَ مسابقت معنې ته شامل ده.

**قوله:** قال عبدالله: حدثنا سفیان قال: حدثنی عبیدالله:

**عبدالله نه مراد څوک دې؟:** دلته د عبدالله نه مراد ابن الولید عدنی رحمه الله دې، او بعض نسخوکښې چه کوم دلته ابوعبدالله راغلې دې هغه سهوه او غلط دې. (۷)

---

۱) (قوله: عن ابن عمر رضی الله عنهما الحدیث مر تخریجه فی کتاب الصلاة باب هل یقال: مسجد بنی فلان؟

۲) (کشف الباری(ج۲ص۲۷۵)-

۳) (کشف الباری(ج۲ص۲۷۸)-

۴) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت-

۵) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب العلم باب من اجاب السائل باکثرمما ساله-

۶) (کشف الباری(ج۱ص۶۳۶)-

۷) (شرح الکرمانی(ج۱۲ص۱۴۷)-

حافظ ابن حجر فرمائی:

((فعبدالله هو: ابن الولید العدنی کذا رویناه فی جامع سفیان الثوری من روایته عنه)) (۱)

یعنی دلته دَ عبدالله نه ابن الولید عدنی مراد دې، دغه شان مونږ ته روایت شویدې، جامع سفیان کښې سفیان نه دَ عبدالله په روایت کښې.

بیا دوئمه خبره دا ده که دَ عبدالله به ځائ ابو عبدالله اووئیلې شی نو دا ممکنه نه ده ځکه چه دَ امام بخاری رحمه الله سماع دَحضرت سفیان ثوری رحمه الله نه ناممکن ده، دَ دې وجه دا ده چه دَ امام بخاری رحمه الله ولادت ۱۹۴ھ کښې دې او سفیان ثوری رحمه الله دَ هغه نه ډیر وړاندې ۱۶۱ھ کښې وفات شوې وو.

**دَمذکوره تعلیق مقصد:** دَ ذکر شوی پورتنی تعلیق مقصد دا دې چه امام بخاری رحمه الله دا بیان کول غواړی چه سفیان ثوری رحمه الله په دې روایت کښې دَ خپل شیخ عبیدالله نه دَ تحدیث تصریح کړیده، په خلاف دَ ړومبی روایت چه هغه عنعنه سره مروی دې، نو علامه عینی رحمه الله فرمائی: (واراد البخاری بهذا تصریح الثوری عن شیخه بالتحدیث بخلاف الروایة الاولی فانها بالعنعنة)[۲]

**دَمذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق دَ امام ثوری رحمه الله په (جامع) کښې موصولاً نقل کړېشوې دې. لکه څنګه چه اوس دَ حافظ صاحب په کلام کښې تیرشو.(۳)

**قوله:** قال سفیان: بین الحفیاء الی ثنیة الوداع خمسة امیال......: دَحضرت سفیان ثوری رحمه الله دا قول دَ سابقه سند سره موصول دې یعنی ((سفیان عن عبیدالله عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنه)) (۴)

## ۵۷- بَاب: إِضْمَارِ الْخَيْلِ لِلسَّبْقِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله خودا فرمائیلی دی چه امام بخاری رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره کړیده، چه سنت خودا دی چه په مقابله کښې به دوه اسونه وړاندې کړې کوم چه مانده کړې شوی دی لیکن که دَ هغو اسونومقابله اوکړیشی دَ کوموچه اضمار نه دې کړیشوې نو په دې کښې هم څه حرج نشته، فرمائی:

(اشارة الی ان السنة فی المسابقة ان یتقدم اضمار الخیل وان کانت التی لاتضمر لاتمتنع المسابقة علیها)[۵]

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۷۲)-

۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۹)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۷۲)-

٤) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۵۹)-

۵) (فتح الباری (ج۶ص۷۱)-

خوعلامه عينى رحمه الله دَ باب ترجمه مقصد دا سې بيان کړيدې. ((اى هذا باب فى بيان اضمار الخيل لاجل السبق هل هو شرط ام لا؟))(۱)
يعنى داباب دَ مقابله په غرض دَ اسونو دَ اضماريه بيان كښې دې(مقابله كښې شريك) دَ اس اضمار كول شرط دې كه نه.
اود دې جواب چه دَ باب په حديث كښې ذكر دې چه دَ مقابلې دَ اس دَ پاره اضمار شرط نه دې دَ دې نه بغير هم مقابلې كولې شي. (۲)
**دَ اضمارمطلب او معنى**: اضمار كه دَ باب افعال نه وى يا تفعيل نه، دَ دې معنى اس مانده كول او اوږد جوړول دى، لكه چه وئيلى شى اضمرالفرس وضمره.(۳)
**دَ اضمارطريقه**: په اضمار كښې اول داوى چه څاروى باندې ښه خوراك څښاك اوكړې او چاقوى ئې، دينه پس هغه په بنده كمره كښې ساتى او په هغه باندې كپړا اچولې شى دَ دې نتيجه دا وى چه په هغه ښه خوله راشى او په مزه مزه دَ هغه اوبه او وابنه كمولې شى چه كله پرې ښه خوله شى نو دَ هغه دَ بدن فالتوغوښه ختمه شى او ښه تكړه او مضبوط او تيز شى، اود دې اضمار موده دَ اهل عربو په نزد څلويښت ورځې وى. (۴)
په ظاهره دا كار تعذيب ښكارى ليكن دا په مسابقت كښې استعمالولو دَ پاره اود جهاد دَ تيارى دَ پاره كول جائز دى. (۵)

[۲۷۱۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ (۶) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضَمَّرْ وَكَانَ أَمَدُهَا مِنَ الثَّنِيَّةِ. إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ وَأَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ سَابَقَ بِهَا قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ أَمَدًا غَايَةً فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ [ر: ۴۱۰]

## تراجم رجال

۱- <u>احمدبن يونس</u>: دااحمدبن عبدالله بن يونس تميمى يربوعى رحمه الله دې، دَ نيكه په نسبت مشهور دې دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب من قال: ان الايمان....)) لاندې تيرشوى دى. (۷)
۲- <u>ليث</u>: داامام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهيمى رحمه الله دې، دَدوى حالات

---

۱) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٥٩)-
۲) (المتوازى (ص ١٥٥)-
۳) (مصباح اللغات (ص ٤٩٩) مادة ضمر والمعجم الوسيط (ج ١ص ٥٤٣) مادة ضمر-
٤) (شرح ابن بطال (ج ٥ص ٧١) المعجم الوسيط (ج ١ص ٥٤٣)مادة ضمر-
٥) (شرح ابن بطال (ج ٥ص ٧١) وشرح الكرمانى (ج ١٢ص ١٤٧)-
٦) (قوله: عن عبدالله رضى الله عنه: الحديث مرتخرجه فى كتاب الصلاة باب هل يقال: مسجدبنى فلان؟-
٧) (كشف البارى (ج ٢ص ١٥٩)-

((بدء الوحی)) دَ دریم حدیث په ذیل کښې راغلی دی. (۱)

۳- نافع: داابوعبدالله نافع مولی ابن عمر رحمه الله دې. (۲)

۴- عبدالله: دامشهورصحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې، دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب الایمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس)) لاندې تیرشوی دی.(۳)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دلته په امام بخاری رحمه الله باندې دا اعتراض شویدې چه دَ باب دَ ترجمه سره دَ حدیث مطابقت نشته دې ځکه چه ترجمه خو هغوی دَ اضمار الخیل قائم کړیده اوِ چه کوم حدیث شریف ئې ذکر کړیدې په هغې کښې دَ خیول مضمرة ذکر نشته. بلکه دَ خیول غیرمضمرة ذکردې.(۴)

دَ دې اعتراض شراحو مختلف جوابونه ورکړی دی:

① علامه ابن بطال رحمه الله دا جواب ورکړیدې چه امام بخاری رحمه الله خو ترجمه دَ اضمار قائم کړیده او روایت ئې دا ذکر کړیدې ((سابق بین الخیل التی لم تضمر)) دې دَ پاره چه مکمل حدیث طرف ته اشاره اوشی ځکه چه پوره حدیث داسې دې ((ان الرسول صلی الله علیه وسلم سابق بین الخیل التی ضمرت، وبین الخیل التی لم تضمر)) (۵)

په حدیث کښې دَ دواړه قسم مقابلوذکر دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله یوه حصه ذکر کړه ځکه چه دینه باقی حصې طرف ته هم اشاره کیږی. (۶)

② علامه کرمانی رحمه الله دا جواب فرمائیلې دې چه دَ خیول مضمرة مقابله خو عادةً معروف ده، پاتې شو خیول غیرمضمرة نو په دې کښې دااحتمال او اعتقاد کیدیشی چه دَ دې مقابله جائزنه وی ځکه چه د هغې په زغلولو کښې مشقت او خطره ده. دَ حدیث نه چه دَ دې جواز واضح شوچه په دې کښې هم څه جرح او مضائقه نشته.(۷)

**قوله:** قال ابو عبدالله: امدا غاية: ﴿فطال عليهم الامد﴾: دَ ابوعبدالله نه مراد امام بخاری رحمه الله دې اودا عبارت صرف دَ "مستملی" په نسخه کښې موجود دې.(۸)

امام بخاری دلته دَ حدیث لفظ((الامد)) تفسیرفرمائی چه دَ((امد)) معنی غایت او انتهاء ده.

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۳۲٤)-

۲) (دَ دوی حالات دَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب من اجاب السائل باکثر مماساله-

۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۳۷)-

٤) (عمدة القاری(ج۱٤ص۱۵۹) وشرح ابن بطال(ج۵ص۷۱)-

۵) (شرح ابن بطال (ج۵ص۷۱)-

۶) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱٤۷) وفتح الباری(ج۱٤ص۱۶۰)-

(۷) حواله بالا-

۸) (عمدة القاری(ج۱٤ص۱۶۰)-

او هغوی چه کوم تفسیر دلته ذکر کړېدې هغه د ابوعبدالله په (کتاب المجاز) کښې ذکر کړېشوې تفسیردې. (۱)

**د اسونو د مقابله شرعی حیثیت او د دې مختلف صورتونه:** په حدیث باب کښې د دې خبرې صراحت دې چه د اسونو زغلولو مقابه جائزده. بیا په دې کښې تفصیل داسې دې چه دا مقابلې یا خو به د عوض سره وی یعنی په دې کښې څه انعام وغیره هم وی یا بلاعوض، د امت د فقهاؤ په دې کښې څه اختلاف نشته که دا مقابلې بغیرد څه عوض او انعام نه وی نو جائز دی. د عوض سره د مقابلې تفصیل وړاندې راځی. البته په دې کښې اختلاف دې چه دا مقابلې په کومو امورواو څارووکښې جائزدی؟

امام مالك او امام شافعی رحمهما الله مذهب خودا دې چه دامقابلې صرف "خف، حافر او نصل" کښې کیدیشی. (۲) د "خف" نه مراد اوښ او هاتهی "حافر"نه مراد اس خر او قچر او "نصل" نه مراد غشی وروِل یعنی مقابلې په دې دریو څیزونوکښې منحصردی نور په یو څیز کښې هم مقابله جائزنه ده. (۳)

او بعض علماؤ دا مقابلې صرف د اسونوپورې خاص کړی دی یعنی مقابله صرف د اسونو جائزده نور د هیڅ څیز مقابله کول جائزنه دی. (۴)

او د امام عطاء رحمه الله مذهب دا دې چه په ټولوڅیزونو کښې مقابله جائزده. (۵)

د حضرت سعید بن مسیب رحمه الله نه دکاترې غورزولوپاره کښې تپوس اوکړېشو نو وئې فرمائیل چه په دې کښې هیڅ حرج نشته (۶)

او که مسابقه د عوض سره ده لکه مراهنة هم وئیلې شی نود دې دا لاندینی مختلف صورتونه دی:

① چه عوض وی او د انعام په توګه وی او د مقابله کونکونه علاوه د بل چاد طرف نه وی لکه بادشاه یا بل څوك سړې، نودا صورت بالاجماع جائزدې که انعام صرف د ګټلو والا د پاره وی یاد مقابلې د ټولو ګسانود پاره وی یاد بعض د پاره وی. (۷)

علامه ابن التین رحمه الله فرمائی:

---

۱) (حواله بالا-

۲) (فتح الباری (ج۶ص۷۲) وعمدة القاری (ج١٤ص١۶٠) واستدلوا فی ذلک بما روی عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسبق الا فی نصل اوخف اوحافر. رواه الترمذی رقم (۱۷۰۰)و ابوداؤد رقم(٢٥٧٤) والنسائی رقم (۳۶۱۵) وایضًا انظرالاحسان بترتیب صحیح ابن خبان کتاب السیرباب السبق رقم (۳۶۷۱)-

۳) (المرقاة (ج۷ص۳۱۹)-

٤) ( حواله بالا-

۵) (حواله بالا-

۶) (المرقاة لعلی القاری (ج۷ص۳۲۰)-

۷) (تکملة فتح الملهم (ج۳ص۳۸۹)-

((انه صلى الله عليه وسلم سابق بين الخيل على حلل اتته من اليمن فاعطى السابق ثلاث حلل، واعطى الثانى حلتين، والثالث حلة، والرابع دينارًا، والخامس درهما، والسادس فضة، وقال: بارك الله فيك، وفى كلكم، وفى السابق والفسكل))(١)

نبى كريم ﷺ دَ كپړې په يوڅو جوړو باندې چه دَ يمن نه دَ هغوى ﷺ دَپاره راغلې وې داسونو زغلولومقابله اوکړه. نو اول راتلونکى ته ئى درې جوړې ورکړې ،دوئم ته دوه جوړې، دريم ته يوه جوړه څلورم ته يو دينار پنځم ته يو درهم او شپږم ته ئې چاندى دَ انعام په توګه ورکړل او ارشاد ئى اوفرمائيلو چه الله تعالى دې تا ته او په ټولوکښې برکت واچوى په اول راتلونکى اس کښې هم او په اخرى پاتې کيدونکى اس کښې هم.

دَ امام مالک رحمه الله باره کښې ابن قدامه رحمه الله "المغنى" کښې دا نقل کړى دى چه مقابله دې صرف دَ بادشاه دَ طرف نه وى او چه دَ نور چا دَ طرف نه دا مقابلې وى نو جائزنه دى.(٢) دَ مالکيه مشهور مذهب دا دې چه هر متبرع سړې دا مقابلې کولې شى.(٣)

②که چرې مال دَ يو طرف نه وى، مثلاً فريقين دا اووائى چه که ته زما نه وړاندې شوې نو تاته به دومره مال درکوم او که زه تانه وړاندې شوم نو زما دَپاره به هيڅ نه وى اوبالعکس. دا صورت هم دَ نورو په نزد جائز دې البته امام مالک رحمه الله دا صورت هم په جوارئى کښې شميرلوسره ناجائزګرځولې دې.(۴)

ليکن دَ مالکيه په کتابونوکښې دې صورت ته هم جائز وئيلې شويدې.(۵) صحيح خبره همدغه ده چه ائمه اربعه ددې دوئم صورت په جوازباندې متفق دى.(۶)

③که چرې مال دَ دواړو طرفونه وى، مثلاً فريقين داسې اووائى "ان سبقتنى فلك على كذا وان سبقتك فلى عليك كذا" که ته مانه وړاندې شوې نو ستا به په ماباندې دومره وى او که چرې زه تانه وړاندې شوم نو په تابه زما دومره وى. دا صورت په اجماع باندې حرام دې. ځکه چه دا هم هغه جوارى ده دَ کوم نه چه شريعت منع کريده.(۷)

④چه فريقين په مقابله کښې څوک دريم سړې داخل کړى همدغه دريم سړى ته محلل وائى اودَ دې صورت دا دې چه دا دوه کوم چه اصل فريقين دى هغه دَ مال يو مقدار راوباسى او دريم هيڅ مال هم ورنه کړى او هغه دواړه دې دريم سړى ته اووائى که چرې ته زمونږ دَ دواړو نه وړاندې اووتلې نو زمونږ دَ دواړو ټول مال ستا او که مونږ دواړه تانه وړاندې شو نو په

---

١) (عمدة القارى (ج١٤ص١٥٩)-
٢) (المغنى لابن قدامة(ج٩ص٣٦٩)-
٣) (تكملة فتح الملهم (٣ص٣٩٠) واوجز المسالک(ج٦ص٧٣)-
٤) (عمدة القارى (١٤ص١٦١) وفتح البارى (ج٦ص٧٣)-
٥) (ردالمختار كتاب الحظر والاباحة، فصل فى البيع (ج٥ص٢٨٥) ومسائل شئ (ج٥ص٥٣)-
٦) (تكملة فتح الملهم (ج٣ص٣٩٠)-
٧) (حواله بالا وعمدة القارى (ج١٤ص١٦١)-

تاباندې زمونږ د پاره هيڅ هم لازم نه دی.
او که هغه دريم سړې دې دواړو نه چه اصل فريق دی وړاندې اووتلو نو د ټول مال حقدار به هغه وی او که هغه دواړه د دې محلل نه وړاندې شو نو دوه صورتونه شو: که هغه دواړه په يو ځای د دې محلل نه وړاندې شو نو چاته به د دې دوئم نه هيڅ هم نه ملاويږي
او که دا دواړه د محلل نه يو بل پسې وړاندې شو نو د دې دواړونه چه په خپل ملکرې باندې وړانديوالې اوکړو هغه به د ده د مال مستحق وی او دا دوئم به د اولنی د مال حقدار نه وی. (۱)
د دې څلورم صورت حکم د حنفيه په نزد هغه دې چه کوم امام محمد رحمه الله بيان کړيدې.
((ادخال الثالث انما يكون حيلة للجواز، اذا كان الثالث يتوهم منه ان يكون سابقا ومسبوقا،فاما اذا كان يتيقن انه يسبقهما لامحالة، او يتيقن انه يصير مسبوقا فلايجوز)) (۲)
د فريقينو خپل ځان سره دريم کس يوځای کول د جواز د پاره حيله په هغه صورت کښې جوړيدشی چه کله د دريم باره کښې دا ګمان وی چه هغه به د ټولونه وړاندې اوځی يا به روستوپاتې کيږی. او که د دې دريم باره کښې دا يقين وی چه هغه به د دې دواړونه لازمی توګه باندې وړاندې اوځی يا دوی ته په دې باره کښې دا يقين وی چه هغه به د دې دواړونه شاته پاتې کيږی نو جائزنه دی.
د جواز دا صورت په دې شرط سره چه دريم سړی باره کښې دا ګمان وی چه هغه به د دې دواړو نه وړاندې اوځی يابه روستو پاتې کيږی، دا د امام ابوحنيفه، احمد، شافعی، اوزاعی، اسحاق، سعيدبن مسيب او زهری رحمهم الله مذهب دې. (۳)
او د امام مالک رحمه الله (۴) اوجابر رحمه الله (۵) قول دادې چه محلل سره هم دا صورت جائزنه دې. (۶)
د جمهورو مستدل د دې څلورم صورت په جواز باندې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه هغه حديث دې کوم چه امام ابوداؤد (۷) او امام احمد رحمه الله (۸) نقل کړی دی چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه روايت کوی:

**قوله: قال: من ادخل فرسا بين فرسين، يعني هو لايأمن ان يسبق فليس بقمار، ومن ادخل فرسا بين فرسين، وقد امن ان يسبق فهوقمار.** (۹)

---

۱) (عمدة القاری (۱٤ص ۱٦۱) وتكملة فتح الملهم (ج۳ص ۳۹۰)-
۲) (الفتاوى الهندية (ج۵ص ۳۲٤)-
۳) (المغنی لابن قدامة (ج۹ص ۳۷۲)-
٤) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱٦۱) والمدونة الكبرى-
۵) (المغنی لابن قدامة (ج۹ص ۳۷۲)-
٦) (تكملة فتح الملهم (ج۳ص ۳۹۰)-
۷) (سنن ابی داؤد ابواب الجهاد باب فی المحلل رقم (۲۵۷۹)-
۸) (مسندالامام احمد (ج۲ص ۵۰۵)-
۹) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱٦۱) ومشكوة المصابيح (ج۲ص ۱۱۳۸) رقم (۳۸۷۵)-

هغوى ﷫ فرمائيلي دي که يو سړي د دوو اسونو په مينځ کښې خپل اس شامل کړي يعنې د چاباره کښې چه دا يقين نشته چه هغه به وړاندې شي نو دا قمار يعنې جواري نه ده، اوکه يو سړي د دوو اسونو په مينځ کښې خپل اس شامل کړي د چاباره کښې چه دا يقين وي چه هغه به وړاندې شي نو دا جواري ده.

نو د دې پورتني حديث نه دا ثابت شو چه چرې محلل د وړاندې وتلوگمان نه وي نو دا صورت د جوارئي نه دې، البته که د محلل د وړاندې وتلويقين وي نو دا يقيناً جوارگردې او جمهور د دې جواز قائل هم نه دی. والله اعلم.

## ۵۸- بَاب: غَايَةِ السَّبْقِ لِلْخَيْلِ الْمُضَمَّرَةِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاري ﷫ د دې ترجمه نه مقصد دا خودل دی چه د خيل مضمره غايت اوانتهاء به د منډې او مقابلې د پاره زيات وي او د غيرمضمره په مينځ کښې چه کله مقابله کولې شي نو د هغې د پاره چه کوم غايت مقرروی هغه به کم وي. (١)

او د دې وجه ظاهره ده ځکه چه مضمره به تردير وخته پورې په منډه باندې قادروی په خلاف د غيرمضمره چه هغه زر ستړې کيږي. اوکه هغه د خپل طاقت نه زيات اوزغلوې نو په هغه کښې د ده د ضرر او هلاکت پوره انديښنه ده.

نو د باب په حديث کښې دا راغلی دی چه د خيول مضمره غايت حضور ﷺ د مقابلې په دوران کښې تقريباً شپږ ميله ايخودی دې او د غيرمضمره غايت ئې تقريباً يو ميل ايخودې دې. په دې کښې همدغه حکمت دې کوم چه اوس مونږ ذکر کړو. (٢)

٢٧٥٥: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (٣) قَالَ سَابَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي قَدْ أُضْمِرَتْ فَأَرْسَلَهَا مِنَ الْحَفْيَاءِ وَكَانَ أَمَدُهَا ثَنِيَّةَ الْوَدَاعِ فَقُلْتُ لِمُوسَى فَكَمْ كَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَالَ سِتَّةُ أَمْيَالٍ أَوْ سَبْعَةٌ وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضَمَّرْ فَأَرْسَلَهَا مِنْ ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ وَكَانَ أَمَدُهَا مَسْجِدَ بَنِي زُرَيْقٍ قُلْتُ فَكَمْ بَيْنَ ذَلِكَ قَالَ مِيلٌ أَوْ نَحْوُهُ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ مِمَّنْ سَابَقَ فِيهَا [ر: ٤١٠]

## تراجم رجال

١- **عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندي ﷫ دې. د هغوی مختصر حالات ((کتاب الايمان باب امورالايمان)) کښې تيرشوي دي. (٤)

---

١) (فتح الباري (ج٦ص٧١)-
٢) (عمدة القاري (ج١٤ص١٦٠) وشرح ابن بطال (ج٥ص٧٢)-
٣) (قوله: عن ابن عمر رضي الله عنهما: الحديث مرتخريجه في كتاب الصلاة باب هل يقال: مسجد بني فلان؟
٤) (کشف الباري (ج١ص٦٥٧)-

۲-معاویه: دا ابوعمرومعاویة بن عمروالازدی رحمه الله دی. (۱)

۳-ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهیم بن محمد بن الحارث الفزاری رحمه الله دی. (۲)

۴-موسی بن عقبه: دا موسی بن عقبه بن ابی عیاش اسدی مدنی رحمه الله دی. (۳)

۵-نافع: دا عبدالله نافع مولی ابن عمر رحمه الله دی. (۴)

۶-ابن عمر: دا مشهورصحابی رسول، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب الایمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی السلام علی خمس)) لاندې تیر شوی. (۵)

تنبیه: دَ حدیث باب تشریح په تیرو شوو بابونوکښې راغلې ده.

فائده: دَحدیث باب نه دا فائده مستنبط شوه چه کله دَ اسونوپه مینځ کښې مقابله کوئی نودَ مقابلې انتهاء او غایت دې معلوم وی. نورداچه اسونه دې په رفتاراوطاقت کښې یوشان وی اوداچه دَخیول مضمره سره غیرمضمره مقابله مه کوئی، په دې دَ امت دَ علماؤ اجماع ده (۶)

## ۵۹-بَاب: نَاقَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دَ ترجمة الباب مقصد: دلته امام بخاری رحمه الله دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ اوښې قصواء ذکرکول غواړی. (۷)

قوله: قَالَ ابْنُ عُمَرَ أَرْدَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ عَلَى الْقَصْوَاءِ:

حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت اسامه بن زید بن حارثه په قصواء اوښه باندې خپل شاته سور کړو.

قوله: وَقَالَ الْمِسْوَرُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ: او حضرت مسور رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه قصواء پخپله نه ده ناسته.

دَپورتنودواړو تعلیقاتو تخریج: دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما تعلیق امام بخاری رحمه الله موصولاً کتابِ المغازی کښې نقل کړیدی. (۸)

اودَ حضرت مسور بن مخرمه رضی الله عنه تعلیق دَ امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ابوداؤد رحمه الله هم

۱) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الاذان باب اقبال الامام علی الناس عنه تسوية الصفوف-

۲) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الجمعة باب القائلة بعد الجمعة-

۳) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب اسباغ الوضوء-

٤) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب العلم باب من اجاب السائل باکثرمماساله-

۵) (کشف الباری (ج۱ص۶۳۶)-

۶) (شرح ابن بطال (ج۵ص۷۲)-

۷) (عمدة القاری(ج۱٤ص ۱۶۱)-

۸) (انظرالصحیح للبخاری کتاب المغازی باب حجة الوداع رقم (٤٤۰۰)-

موصولا ذکر کړيدې. (۱)

**د پورتنو تعليقاتو ذکرکولومقصد**: امام بخاری رحمه الله دلته د باب په ذیل کښې دوه تعليقات ذکر کړی دی. يو د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما او دوئم د حضرت مسوربن مخرمه رضی الله عنه، او په دواړوکښې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ناقة "قصواء" ذکر راغلې دې. مقصد دا چه د هغوی صلی الله علیه وسلم يوه ناقه وه، چه د هغې نوم قصواء وو.

**باب سره مناسبت**: د دې تعليقاتومناسبت هم د باب د ترجمه سره واضح دې چه باب "ناقة النبی صلی الله علیه وسلم" قائم کړيشوې دې. او په دواړو تعليقاتوکښې د حضور صلی الله علیه وسلم د ناقة قصواء ذکر دې.

[۲۷۱۷/۲۷۱۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا (۲) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ كَانَتْ نَاقَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهَا الْعَضْبَاءُ

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن محمد: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دې د دوی حالات ((کتاب الایمان باب امور الایمان)) کښې تیرشوی دی. (۳)

۲- معاويه: دا ابوعمرومعاويه بن عمروالازدی رحمه الله دې (۴)

۳- ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهيم بن محمدبن الحارث فزاری رحمه الله دې. (۵)

۴- حميد: دابوعبيده بن ابی حميد الطويل رحمه الله دې. د دوی حالات ((کتاب الایمان باب خوف المؤمن من ان يحبط عمله وهولايشعر)) کښې تيرشوی دی. (۶)

۵- انس: دا مشهورصحابی حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. د دوی حالات ((کتاب الایمان باب من الایمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه)) کښې تيرشوی دی. (۷)

---

۱) (انظر الصحيح للبخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب رقم (۲۷۳۱-۲۷۳۲) وابوداؤد فی سننه ابواب الجهاد باب فی صلح العدو رقم (۲۷۶۵-۲۷۶۶) وابواب السنة باب فی الخلفاء رقم (٤٦٥٥)-

۲) (قوله: انسارضی الله عنه:الحديث اخرجه البخاری ايضًا کتاب الجهاد باب ناقة النبی صلی الله عليه وسلم رقم (۲۸۷۲) وکتاب الرقاق باب التواضع رقم(۶۵۰۱) وابوداؤد فی سننه ابواب الادب باب فی کراهية الرفعة فی الامورقم(٤٨٠٢-٤٨٠٣) والنسائی فی سننه کتاب الخيل والسبق والرمی باب السبق رقم (۳۶۱۸)

۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۷)-

٤) (د دوی د حالاتودپاره اوګورئ کتاب الاذان باب اقبال الامام على الناس عندتسوية الصفوف-

۵) (د دوی د حالاتودپاره اوګورئ کتاب الجمعة باب القائلة بعدالجمعة-

۶) (کشف الباری (ج۲ص۵۷۱)-

۷) کشف الباری (ج۲ص٤)-

[۲۸۷۲] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ (۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَةٌ تُسَمَّى الْعَضْبَاءَ لَا تُسْبَقُ قَالَ حُمَيْدٌ أَوْلَا تَكَادُ تُسْبَقُ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ فَسَبَقَهَا فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ حَتَّى عَرَفَهُ فَقَالَ حَقٌّ عَلَى اللَّهِ أَنْ لَا يَرْتَفِعَ شَيْءٌ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ طَوَّلَهُ مُوسَى عَنْ حَمَّادٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۶۱۳۶]

## تراجم رجال

۱-مالك بن اسماعيل: دا ابوغسان مالك بن اسماعيل بن زياد النهدى رحمه الله دي.(۲)

۲-زهير: دا زهير بن معاويه بن حديج جعفى كوفى رحمه الله دي. دَ دوى مفصل حالات ((كتاب الايمان باب الصلاة من الايمان)) لاندې تيرشوى دى اودَ سند باقى رجال په تيرشوى سند كښې راغلى دى. (۳)

**قوله:** قال: كان للنبى صلى الله عليه وسلم ناقة تسمى العضباء لاتسبق:

حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه د نبى كريم ﷺ يوه اوښه وه، هغې ته به ئې عضباء وئيله، هغې سره په مقابله كښې به يوه اوښه نه وړاندې كيده. يعنى غضباء نومې اوښه نبى كريم سره وه او هغه به هميشه دَ منډې په مقابله كښې وړاندې وه او نورو اوښويه دَ هغې مقابله نشوه كولې.

**قوله:** قال حميد: اولاتكادتسبق: حميد: راوى وائى يائې دا اووئيل چه څوك دَ دې نه وړاندې نه شو تلې.

كلمه "او" دَ شك دَپاره ده، يعنى حميد الطويل ته شك شويدې چه حضرت انس رضی الله عنه ((لاتسبق)) اوفرمائيل يا ((لاتكادتسبق)) او په نورو رواياتوكښې بغيردَ شك نه هم ((لاتسبق)) دې.(۴)

**قوله:** فجاءاعرابى على قعود، فسبقها: يواعرابى په يوځوان اوښ باندې سور راغلو او دَ هغه اوښ د عضباء نه وړاندې شو.

يعنى دَ اعرابى اوښ سره دَ عضباء مقابله اوشوه نودَ اعرابى اوښ اوګټله اودَ عضباء نه وړاندې شو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ماته دَ ډير تلاش او تتبع نه باوجود دَ هغه اعرابى نوم معلوم نه شو ليكى: ((ولم اقف على اسم هذا الاعرابى بعد التتبع الشديد)) (۵)

---

۱) (قوله: عن انس رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه انفافى الحديث السابق-
۲) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعر الانسان-
۳) (كشف البارى (ج۲ص۳۶۷)-
۴) (فتح البارى (ج۶ص ۷۴)-
۵) (حواله بالا-

د "قعود" معنی: قعود — بالفتح على القاف — هغه خوان اوښ ته وائی په کوم چه سورلی کيدیشی يعنی هغه سور په خپل ځان باندې قابوکولې شی اود دې کم نه کم عمر دوه کاله دې او چه کله د شپږو کالو عمر ته اورسی نو هغې ته جمل وائی او قعود مذکر اوښ ته وائی او مؤنث ته قلوص وائی. (۱)

ابوعبيده رحمه الله فرمائی چه په اوښانوکښې قعود هغه ته وائی چه د خپل څرونکی په هر حاجت کښې پکار راځی. (۲)

**قوله: فشق ذلك على المسلمين، حتى عرفه:** نوهغه په مسلمانانوباندې سخت اولګيده کوم چه نبی کريم ﷺ معلوم کړلو. يعنی د اعرابی اوښ چه کله د نبی کريم ﷺ د اوښې نه وړاندې شو نو دا اوړاندې کيدل په مسلمانانوباندې ډير سخت اولګيدل، چه د هغوی ﷺ اوښه ولې روستو پاتې شوه اود هغوی دا څيز حضور ﷺ محسوس کړو چه زما د اوښې په مقابله کښې روستوپاتې کيدل په مسلمانانو باندې ګران تيرشو (۳) او هغوی ﷺ د دې مسلمانانود مخونود آثارونه معلومه کړه، د (كتاب الرقاق) په روايت کښې دا الفاظ دی ((فلما رأى مافى وجوههم)) (۴)

**قوله: فقال: حق على الله ان لايرتفع شئ من الدنيا الاوضعه:** نونبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په الله باندې دا حق دې چه کوم څيز په دنياکښې اوچت وی هغه ښکته کړی. مطلب دا چه د دنيا په هرڅيز کښې د کمال نه پس زوال دې. هغه هم د الله تعالى ذات مبارك دې چاته چه زوال نشته ګنی عادة د الله په ټولوڅيزونوکښې دا دی چه هغه د پوره کيدلو نه پس په زوال کښې کيږی يو څيز هم همشه کامل او مکمل نشی پاتې کيدې او آخر کمزورې او نقصانی کيږی، د دې واضح مثال انسان دی چه په شروع کښې وړوکې شان وی، په مزه مزه لوئيږی، په ځوانئی کښې خپل کمال ته اورسی نو بيا چه کله د بوډاوالی طرف ته د هغه سفرشروع کيږی نو په کمال کښې نقصان راځی او آخر يوه ورځ هغه بدن کوم چه به ترو تازه اوسيدلو فناکيږی. ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ۝﴾ (۵)

**قصواء او غضباء د يوې اوښې دوه نامې دی که جدا جدا؟:** په دې کښې اختلاف دې چه دا کوم د حضور ﷺ د اوښونومونه بيان کړيشوی دی دا جدا جدا وو که هم د يوې ناقه مختلف نومونه دی.

د علامه حربی رحمه الله وينا ده چه دا هم د يوې ناقه مختلف نومونه دی، ورسره فرمائی چه

---

۱ ) (مختار الصحاح مادة قعد-

۲ ) (حواله بالا-

۳ ) (ارشاد السارى )ج۵ص ۸۰)-

٤ ) (صحيح البخارى كتاب الرقاق باب التواضع (۶۵۰۱)-

۵ ) (الرحمن:۲۶-۲۷-

قصواء، عضباء او جدعاء سره د حضور ﷺ اوښه يادولې شي. (١)
د بعض نورو حضراتو وينا ده چه داد جداجدا اوښو نامې دى، عضباء جداده، قصواء جدا (٢)
د اختلاف سبب: په اصل کښې دلته د اختلاف سبب دا دې چه د سيرت په کتابونوکښې د حضور ﷺ په اوښوکښې د يوې نوم عضباء، د دونمې نوم جدعاء، دريمې نوم صلماء او د څلورمې نوم مخضرمه راغلې دې. (٣) اودا ټول د غوږ په صفاتوکښې دى، عضباء هغه اوښې ته وائي د کومې چه غوږونه شليدلې وى. جدعاء معنى غوږ پريشوې. صلماء معنى هغه اوښه د کومې چه دواړه غوږونه پرې وى او د ناقه مخضرمه معنى هغه اوښه ده د کومې د غوږ غاړه چه پرې وى.
اوس دلته دوه احتماله دى:
① په دې کښې هر يو صفت جدا جدا دې يعنې يوه اوښه داسې وه چه د هغې غوږشليدلې وو په دې وجه هغې ته عضباء اوئيلې شو د بلې غوږپريشوې وو نو هغې ته ئې جدعاء وئيل او د دريمې دواړه غوږونه پريشوى وو نو هغه ئې په صلماء سره يادولوله او د څلورمې د غوږ غاړه پرې وه نو هغې ته به ئې مخضرمه وئيل (٤)
② داټول صفتونه د يوې اوښې وو، اوس چه چاته څنګه ښه ښکاريده او خيال ئې راتلو هم هغه نوم سره ئې اوښه يادوله. همدغه رائې د علامه حربى رحمه الله هم ده. (٥)
د علامه حربى د رائې تائيد د دې روايت نه هم کيږى کوم چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه نقل کړيدې فرمائى چه کله رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه د يوکاردپاره اوليګلونو حضرت على رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ په اوښه قصواء باندې سور شو ((انه رکب (اى على) ناقة رسول الله صلى الله عليه وسلم القصواء)) همدغه روايت د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه هم مروى دې په دې کښې د قصواء په ځائ عضباء مروى دې، بعض نورو حضراتو هم په دې روايت کښې جدعاء صفت ذکر کړيدې. نو دا د خبرې تصريح ده چه دا درېواړه صفتونه هم د يوې اوښې دى ځکه چه قصه هم يوه ده. نوعلامه قسطلانى رحمه الله فرمائى ((فهذا يصرح ان الثلاثة صفة ناقة واحدة لان القصة واحدة)) (٦)
او امام بخارى رحمه الله رائې همدغه معلوميږى چه هغه د دې خبرې قائل دې چه دا ټول په ټول صفات هم د يوې ناقه دى ځکه په ترجمة الباب کښې هغه د ناقه مفرد لفظ سره ذکر کړيدې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ((افرد الناقة فى الترجمة اشارة الى ان العضباء والقصواء واحد)) (٧)

---

١) (فتح البارى (ج٦ص ٧٤) وشرح القسطلانى (ج٥ص٨١)-
٢) (فتح البارى(ج٦ص ٧٤)-
٣) (زادالمعاد فى هدى خيرالعباد (ج١ص ١٣٤) وشرح القسطلانى (ج٥ص٨١)-
٤) (ارشادالسارى (ج٥ص٨١)-
٥) (حواله بالا-
٦) (حواله بالا-
٧) (فتح البارى (ج٦ص٧٣)-

**تنبیه:** قصواء هغه اوښې ته وائی د کومې چه غوږپرې شوی خودا خبره په ذهن کښې یاد ساتئی چه د نبی کریم ﷺ د دې مذکوره اوښې غوږ پرې نه وو بلکه دا د هغې نوم وو.(۱)

**قوله: طَوَّلَهُ مُوسَى عَنْ حَمَّادٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**دَ نسخو اختلاف:** داتعلیق د "مستملی" په نسخه کښې عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله د حدیث نه پس راغلې دې یعنی د باب رومبې حدیث کوم چه مسندی روایت کړیدې. د ابوذر د روایت نه علاوه په نورو نسخوکښې عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله روایت زهیر بن معاویه رحمه الله د روایت نه پس دې. (۲)

**راجح کومه نسخه ده؟:** اوس سوال دا پیدا کیږی چه کله دا تعلیق د مستملی په نسخه کښې عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله د روایت نه پس ذکر دې او په نورو نسخو کښې سوا د ابوزر د زهیرد روایت نه پس ذکر دې نو راجح کومه نسخه ده؟ د دې جواب دا دې چه دلته راجح مستملی نسخه ده اود دې وجه داده چه دا د موسی بن اسماعیل په طریق ابوداؤد کښې موجود ده، د دې سیاق زهیربن معاویه عن حمید نه طویل نه دې،او د ابواسحاق فزاری په طریق باندې بهر حال طویل دې. (۳)

**دَمذکوره تعلیق تخریج:** د موسی بن اسماعیل تبوذکی دا تغلیق موصولاً امام ابوداؤد رحمه الله په خپل سنن کښې (ابواب الادب) کښې ذکر کړیدې.(۴)

**دَمذکوره تعلیق ذکرکولومقصد:** معلومیږی داسې چه امام بخاری اول د ابواسحاق فزاری رحمه الله په روایت کړې نو نقل کړیدې ځکه چه په دې کښې حمیدالطویل د حضرت انس رضی الله عنه نه د سماع تصریح کړیده بیا موسی بن اسماعیل تعلیق ذکر کولو سره د دې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه همدا حدیث البنانی په طریق باندې مطولاً هم مروی دې، بیا چه کله هغه ته هم د حمید په طریق دا روایت مطولاً ملاؤ شو نو هغه ئی هم ذکر کړو. (۵) والله اعلم

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د باب د ترجمه سره د حدیث د باب مناسبت په دې توګه دې چه باب ((ناقة النبی صلی الله علیه وسلم)) قائم کړیشویدې، کوم کښې چه عضباء وغیر هم شامل دی، د کوم ذکر چه د باب په ذیل کښې نقل کړیشوؤ په احادیثوکښې دې. (۶)

## باب الغزو علی الحمیر

**دَ نسخو اختلاف:** داخبره زمونږ په پاکستانی نسخوکښې نشته (۷) صرف مستملی دا باب

---

۱ ) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱٤۸)-

۲ ) (فتح الباری (ج۶ص۷۳)وارشادالساری (ج۵ص۸۰)-

۳ ) (حواله بالا-

٤ ) (الحدیث اخرجه ابوداؤدابواب الادب باب فی کراهیة الرفعة فی الامور رقم (٤۸۰۲)-

۵ ) (فتح الباری (ج۶ص۷۳)-

۶ ) (عمدة القاری (ج۱٤ص۶۲)-

۷ ) (انظر الصحیح للبخاری (ج۱ص٤۰۲)-

او هغه هم بغیرد حدیث نه خپله نسخه کښې ذکر کړیدې.
نسفي په خپل روايت کښې دا باب ورانديني باب سره يو ځاۍ ذکر کړيدې ((باب الغزوة على الحمير وباب بغلة النبي صلى الله عليه وسلم)) اودَ بخاری شریف دَ شراحونه هم چادې طرف ته توجو نه ده ورکړې بهر حال دا باب په دواړو صورتو کښې دَ اشکال نه خالی نه دې.
البته دَ مستملی دَ نسخې په اعتبار سره خبره داسې جوړيدیشي چه ترجمه امام صاحب قائم کړه او په څه مناسبت سره ئې حديث دَ لاندې راوړلودَ پاره خالی پریخودو کیدیشي چه دَ هغوی اراده همدغه وه چه دَ حضرت معاذ رضي الله عنه هغه حديث کوم چه ((باب اسم الفرس والحمار)) لاندې تیرشو دا به ئې دَ ترجمه لاندې داخلولو يعني ((كنت ردف النبي صلى الله عليه وسلم على حمار يقال له: عفير)) (۱)
خو په دې حديث کښې دَا احتمال دې چه هغوی ﷺ په خرياندې سورلی دَ حضرپه حالت کښې کړې وی او دا هم احتمال دې چه دَ سفرپه حالت کښې سورلی کړې وی، داسې دَ دې حضراتو په نزد څوك چه دَ مطلق او عام په مينځ کښې فرق نه کوی نو دَ ترجمه مقصد به حاصل شی. (۲)
او که دَ نسفی نسخې ته اوکتې شی نو په هغې کښې صرف دَ بغله ذکر دې دَ خردَ سره څه ذکر نشته، نو په دې وجه دا صورت هم دَ اشکال نه خالی نه دې.
اوس دَ دې دوئم اشکال خودا جواب ورکړې کیدیشي چه امام صاحب یا خو حمير او بغله ذکرکړواودَ بغله حدیث ذکر کولونه پس دَ حمیردپاره ځاۍ پریخودو. یا دا اووایه چه دَ خر حکم به دَ قچرنه اخستې شی. (۳)

## ۶۰- بَاب: بَغْلَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْضَاءِ

قَالَهُ أَنَسٌ [ر: ۴۰۸۲] وَقَالَ أَبُو حُمَيْدٍ أَهْدَى مَلِكُ أَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً بَيْضَاءَ [ر: ۱۴۱۱]

**دَ ترجمة الباب مقصد**: دلته امام بخاری رحمه الله دَ نبی اکرم ﷺ دَ سپین قچرذکرکول غواړی.(۴)

**قوله: قَالَه انس رضي الله عنه:**

**دَ مذکوره تعليق تخريج**: په دې عبارت کښې امام بخاری رحمه الله دَ حضرت انس رضي الله عنه دې مشهور حديث طرف ته اشاره کړیده کوم چه دَ غزوه حنین متعلق دې. دا تعليق امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام مسلم رحمه الله هم موصولاً نقل کړيدې. (۵)

---

۱) (انظر الصحيح للبخاری كتاب الجهاد باب اسم الفرس والخمار رقم(۲۸۵۶)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص ۷۴)-
۳) (فتح الباری (ج۶ص ۷۴)-
٤) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٦٢)-
۵) (انظر الصحيح للبخاری كتاب المغازی باب غزوة الطائف رقم (٤٣٣٧) والصحيح لمسلم كتاب الزكاة باب اعطاء المؤلفة قلوبهم على الاسلام وتصبر من قوى ايمانه رقم (١٠٤٤)-

**قوله: وقال ابوحميد: اهدى ملك ايلة للنبى صلى الله عليه وسلم بغلة بيضاء:** او حضرت ابوحميدساعدى رضي الله عنه فرمائي چه د ايله بادشاه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته يو سپين قچر په هديه كښې وركړې وو.

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** داتعليق امام بخارى رحمه الله نه علاوه امام مسلم رحمه الله او ابوداؤد رحمه الله هم موصولاً نقل كړيدې. (١)

**دَ مذكوره تعليقاتومقصد:** ددې تعليقاتو مقصد بالكل واضح دې چه كوم باب قائم شويدې دې كښې ((بغلة النبى صلى الله عليه وسلم)) ذكر دې اوهم دَ دې امر اثبات دوارو تعليقاتو كښې هم دې.

[٢٧٤٨] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ الْحَارِثِ (٢) قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَسِلَاحَهُ وَأَرْضًا تَرَكَهَا صَدَقَةً [ر: ٢٥٨٨]

## تراجم رجال

١- **عمروبن على:** داابوحفص عمروبن على بن بحرباهلى رحمه الله (٣)

٢- **يحيى:** دا امام يحيى بن سعيد القطان رحمه الله دې دَ ده حالات ((كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه)) لاندې تيرشوى دى. (٤)

٣- **سفيان:** دا مشهور امام حديث ابوعبدالله سفيان بن سعيدثورى رحمه الله دې، دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب علامة المنافق)) لاندې راغلى دى (٥)

٤- **ابواسحاق:** داابواسحاق عمروبن عبدالله سبيعى رحمه الله دې، دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب الصلاة من الايمان)) په ذيل كښې تيرشوى دى. (٦)

٥- **عمروبن الحارث:** داام المؤمنين حضرت جويريه رضي الله عنها رور حضرت عمروبن الحارث رضي الله عنه دې. (٧)

---

١) (الصحيح للبخارى كتاب الزكاة باب خرص التمر رقم (١٤٨١) وكتاب الجزية والوادعة باب اذا وادع الامام مالك القرية رقم (٣١٦١) ومسلم كتاب الفضائل باب معجزات النبى صلى الله عليه وسلم رقم (٥٩٤٨) وابوداؤد ابواب الخراج باب احياء الموات رقم (٤٠٧٩)-

٢) (قوله: عمروبن الحارث رضى الله عنه: الحديث مرتخرجه فى كتاب الوصايا، باب الوصايا-

٣) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الرجل يؤضئ صاحبه-

٤) (كشف البارى (ج٢ص٦)-

٥) (كشف البارى(ج٢ص٢٧٨)-

٦) (كشف البارى (ج٢ص٣٧٠)-

٧) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الزكاة باب الزكاة على الزوج والايتام فى الحجر-

**تنبیه:** حضرت عمروبن الحارث رضی الله عنه ددې حدیث مکمل تشریح (کتاب الوصایا) کښې تیره شویده.

**د حدیث د ترجمت الباب سره مطابقت:** د حدیث د باب ترجمه سره مناسبت د حدیث شریف په دې جمله کښې دې. ((ماترك النبی صلی الله علیه وسلم الابغلته البیضاء.....)).

[۲۷۰۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ(۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا أَبَا عُمَارَةَ وَلَّيْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنْ وَلَّى سَرَعَانُ النَّاسِ فَلَقِيَهُمْ هَوَازِنُ بِالنَّبْلِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَأَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذٌ بِلِجَامِهَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ [ر:۲۷۰۹]

## تراجم رجال

۱- **محمدبن المثنی:** دا ابوموسی محمدبن المثنی بن عبیدعنزی رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات ((کتاب الایمان باب حلاوة الایمان)) لاندې تیرشوی دی، اود سند نور رجال یعنی یحیی بن سعید، سفیان او ابواسحاق د تذکرې حواله په پورتنی سندکښې اوس تیرشوی دی.(۲)

۵- **البراء:** دامشهورصحابی حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دې، د دوی حالات ((کتاب الایمان باب الصلاة من الایمان)) په ذیل کښې شوی دی.(۳)

**یوسوال اود هغې جواب:** دلته یو سوال دا پیداکیږی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په جنګ حنین کښې په کوم قچر باندې سوروو، آیا دا هم هغه قچردې چه د ایله بادشاه هغوی صلی الله علیه وسلم ته په هدیه کښې پیش کړې وو که بل دې؟

نود دې جواب دا دې چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په کوم قچرباندې سور وو دا هغه قچر نه دې کوم چه د ایله بادشاه پیش کړې وو، خکه چه د ایله بادشاه چه کوم قچر هدیه کړې وو او هغوی صلی الله علیه وسلم ته ئې پیش کړې ووهغه دغزوه تبوك په موقع وو اودحنین واقعه ددې نه ډیره وړاندې وه.(۴)

او په کوم قچرچه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په غزوه حنین کښې سوروو هغه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته فروة بن نفاثه–بضم النون، بعدهافاء خفیفة، ثم مثلثة–(۵) په هدیه کښې پیش کړې وو. د مسلم شریف روایت دې چه حضرت عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنه فرمائی ((ورسول الله صلی الله علیه وسلم علی

---

۱) (قوله: عن البراء رضی الله عنه: الحدیث مرتخرجه فی باب من قاد دابة غیره فی الحرب-

۲) (کشف الباری (ج۲ص۳۷۵)-

۳) (کشف الباری (ج۲ص۳۷۵)-

٤) (فتح الباری (ج۶ص۷۵)-

۵) (شرح النووی علی مسلم (ج۲ص۹۹)-

بغلة له بيضاء اهداها له فروة بن نفاثة الجذامى)) (۱) يعنى رسول الله ﷺ په خپل سپين قچرباندې سور وو کوم چه هغوی ﷺ ته فروه بن نفاثه جذامی په هديه کښې ورکړې وو.
نبی اکرم ﷺ په غزوه حنين کښې په بغله بيضاء باندې سوروو که په شهباء: اوس دلته دوئم سوال دا پيدا کيږی چه نبی کريم ﷺ په غزوه حنين کښې په کوم قچر باندې سور وو د هغې رنګ څنګه وو؟ ځکه چه دَ بخاری شريف په رواياتو کښې دَ بيضاء يعنی سپين ذکر دې او دَ مسلم شريف په اکثرو رواياتوکښې هم بغلة بيضاء (۲) ذکر دې. البته يو روايت کوم چه حضرت سلمة بن الاکوع ﷺ نه مروی دې په هغې کښې ((البغلة الشهباء)) مروی دې. (۳) دغه شان علامه ابن سعد رحمه الله "طبقات" کښې يو ځائ کښې دا ذکر کړی دی چه نبی کريم ﷺ خپل سپين قچر دلدل باندې شو "وركب بغلته البيضاء دلدل" (۴) او هم په دې باب کښې دَ يوڅو صفحونه پس دا ليکی چه هغوی ﷺ په خپل ((بغلة شهباء)) باندې سور وو ((وهو على بغلة له شهباء)) (۵)
دَ دې تعارض درې جوابونه دی:
① علامه عينی رحمه الله فرمائی چه ممکن دی هغوی ﷺ اول په يوقچرباندې سور شوې وی هغې نه کوز شوې وی په بل سور شوې وی. (۶)
② او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه صحيح روايت دَ مسلم دې يعنی حضرت عباس بن عبدلمطلب ﷺ هغه حديث چه اوس تيرشو. (۷)
غالبًا دَ حافظ صاحب نظر په دې روايت نه دې تيرشوې کوم چه مونږ اوس دَ حضرت سلمة بن الاکوع ﷺ په حواله سره بيان کړو ځکه چه هغه هم دَ مسلم روايت دې. دَ دې دَ پاره هم د مسلم يو روايت راجح او صحيح او دوئم مرجوح ګرځول په پوهه کښې نه راځی او سره د دې چه د هغې شاهد او متابع هم موجود وی، ځکه دَ ابن سعد هغه روايت کوم کښې چه ((على بغلة له شهباء)) الفاظ وارد شوی دی هغه دَ حضرت عباس ﷺ نه مروی دی.
او دَ علامه عينی دَ جواب مدار په دې باب باندې دې چه دلته هغه قچر مراد واخلئی، يو بيضاء او بل شهباء او مطلب دا وی چه هغوی ﷺ په غزوه حنين کښې په دوو قچرو وار په

---

۱) (انظر الصحيح المسلم (ج۶ص۱۰۰) کتاب الجهاد والسير باب غزة حنين رقم (۴۶۱۲)-
۲) (انظر الصحيح السلم کتاب الجهاد والسير باب غزوة حنين رقم (۴۶۱۲) وايضًا انظر شرح معانی الاثارللطحاوی (ج۲ص۱۷۷)-
۳) (صحيح مسلم کتاب الجهاد والسير باب غزوة حنين رقم (۴۶۱۹)-
۴) (طبقات ابن سعد (ج۱ص۱۵۰)-
۵) (حواله بالا(ص۱۵۵)-
۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۵۷)-
۷) (فتح الباری (ج۶ص۷۵)-

وار سور شوي وو.

④ دا جواب هم ورکولې شي چه دَ شهباء او بیضاء نه مراد هم یو قچر وی ځکه چه دَ لغت په اعتبار سره په دې الفاظوکښې څه خاص فرق نشته، دَ دې دپاره چه بیضاء خو ښکاره سپین ته وائی لیکن دَ شهب معنی هم دا ده چه بیاض سره لږ غونډې تور والې هم وی، امام محمد رازی رحمه الله فرمائی ((الشهبة فی الالوان: البیاض الغالب علی السواد)) (۱)

بهرحال دلته راجح جواب دَ علامه عینی رحمه الله معلومیږی.

**تنبیه:** دَ حضرت براء بن عازب رضی الله عنه مذکوره حدیث تشریح ماقبل کښې ((**باب من قاد دابة غیره فی الحرب**)) کښې تیره شویده.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث دَ ترجمه دَ باب سره مناسبت دَ حدیث په دې جمله کښې دې: ((**والنبی صلی الله علیه وسلم علی بغلته البیضاء**)) (۲)

## ٦١- بَاب: جِهَادِ النِّسَاءِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه ګنګوهی رحمه الله دَ دې باب دَ ترجمه دوه مقصده بیان کړی دی:

① امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه کښې دا بیان کړی دی چه دَ ښځو جهاد څه څیز دې؟ اودَ هغوی د جهاد نوعیت ئی اوخودلو چه د هغوی جهادحج کول دی.

② دَ ښځو په جهادکښې دَ شرکت جواز بیانول مقصد دې چه ښځې په جهاد کښې شریك کیدې شی.په اول صورت کښې خو مطلب واضح دې اود دونم صورت وضاحت داسې دې چه د سوال تپوس کونکې حضرت عائشې رضی الله عنها په جهاد کښې دَ شرکت غوښتنه اوکړه نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم هیڅ نکیر اونه کړونودَهغوی صلی الله علیه وسلم نکیر نه کول د دې خبرې تقریردې چه ښځې په جهادکښې شرکت کولې شی اودَ هغوی شرکت فی الجهاد جائزدې.

خودا خبره دې ښکاره وی چه دا اجازت مشروط دې که دَ فتنې اندیښنه وی نو بالکل اجازت نشته اوکه دَفتنې اوفساداندیښنه نه وی نوښځې په جهادکښې شرکت کولې شی.(۳)

[۲۷۲۰-۲۷۲۱] **حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ إِسْحَاقَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا (۴) قَالَتْ اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ جِهَادُكُنَّ الْحَجُّ وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بِهَذَا**

## تراجم رجال

۱- **محمد بن کثیر:** دا ابوعبدالله محمدبن کثیرعبدی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب

---

۱) (مختار الصحاح ماده "شهب"-

۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱٦۳)-

۳) (لامع الدراری (ج ۷ص ۲۳٤)-

٤) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الحج باب فضل الحج المبرور-

العلم باب الغضب في الموعظة والتعليم.....)) كښې تيرشوى دى.(۱)

۲- سفيان: دامشهورامام حديث سفيان بن سعيدثورى رحمه الله دې، دَ دوى حالات ((كتاب الايمان باب علامة المنافق)) كښې تيرشوى.(۲)

۳- معاويه بن اسحاق: دا ابوالازهر معاويه بن اسحاق بن طلحه بن عبيدالله القرشى التيمى رحمه الله دې.

دې دَ خپل پلار اسحاق، عمران، موسى(دا دريواړه دَ ده ترونه دى) دَ خپلې ترور عائشه، ام الدرداء، عروة بن الزبير، سعيد بن جبير، ابوبرده بن ابوموسى او ابراهيم تيمى رحمهم الله وغيره نه دَ حديث روايت كوى.

اودَ هغه نه دَ هغه دوه دَ تره ځامن اسحاق، طلحه اودَ هغې وريرونه صالح بن موسى او دَهغوى آزادكړيشوې غلام يزيدبن عطاء الاعمش،اسرائيل،سفيان ثورى، شريك، شعبه، حسن بن عمرو فيمى او ابوعوانه رحمهم الله وغيره نه حديث روايت كوى. (۳)

① امام احمد رحمه الله او امام نسائى رحمه الله فرمائى ((ثقة)) (۴)

② امام ابن سعد رحمه الله فرمائى ((وكان ثقة)) (۵)

③ امام عجلى رحمه الله فرمائى ((كان ثقة)) (۶)

④ ابن حبان رحمه الله هغه په (كتاب الثقات) كښې ذكركړيدې.(۷)

⑤ امام ابوحاتم او يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائى ((لاباس به))(۸)

⑥ امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى ((هو ثقة)) (۹)

⑦ علامه ذهبى رحمه الله هم هغه ثقه ګرځولې دې. (۱۰)

تاسو دَ معاويه بن اسحاق باره كښې دَ ائمه جرح او تعديل اقوال اوكتل چه دې ټولو حضراتو ثقه او معتمدګرځولې دې. ليكن امام ابوزرعه رحمه الله دَ دې ټولودَ رائې نه جدا هغه نه ضعيف ونيلى دى فرمائى ((شيخ واه)) (۱۱)

---

۱ ) (كشف البارى(ج۳ص۵۳۶)-

۲ ) (كشف البارى (ج۲ص۲۷۸)-

۳ ) (دَ شيوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۸ ص ۱۶۰-۱۶۱)-

٤ ) (تهذيب الكمال(ج۲۸ص۱۶۱)-

۵ ) (طبقاته (ج۶ص۳۳۹)-

۶ ) (تعليقات تهذيب الكمال(ج۲۸ص۱۶۱) وتهذيب التهذيب(ج۱۰ص۲۰۲)-

۷ ) (الثقات لابن حبان(ج۷ص٤۶۷)-

۸ ) ( تعليقات تهذيب الكمال(ج۲۸ص۱۶۱) وتهذيب التهذيب(ج۱۰ص۲۰۲)-

۹ ) (تاريخ الدارمى (ص۱۷۱)رقم (۶۱۳)-

۱۰ ) (الكاشف (ج۲ص ۲۷٤)-

۱۱ ) (تهذيب الكمال (ج۲۸ص۱۶۱)-

خود دې تولو اقوالو د تشیق نه پس امام ابوزرعه رحمه الله د قول طرف ته به التفات نشی کولې ځکه چه دا د هغوی ذاتی رائې ده.

بیا معاویه بن اسحاق صرف د بخاری شریف راوی نه دې بلکه هغه نه امام نسائی رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله هم روایت اخستې دې اودا هم د یوقسم توثیق او تعدیل دې.

دونمه خبره دا دې چه امام بخاری هم د هغوی نه صرف د باب همدغه روایت اخستې دې او د هغه متابعت ئې د حبیب بن ابی عمره په ذریعه ذکر کړیدې. په دې وجه په امام بخاری باندې هیڅ اعتراض نه واریدیږی.(۱)

همدغه وجه ده چه علامه ذهبی رحمه الله چرته د هغه ترجمه په (میزان الاعتدال) کښې ذکر کړې نو هلته ئې د "صح" علامت هم لګولې دې. (۲)

د دې مطلب دا دې چه د هغوی باره کښې معتمد قول د توثیق دې. (۳)

۴- **عائشه بنت طلحه:** دا ام عمران عائشه بن طلحه التیمیه رحمها الله ده. (۴)

۵- **عائشه:** دا ام المؤمنین حضرت عائشه بن ابی بکر الصدیق رضی الله عنهما ده. د دوی حالات ((بدء الوحی)) د دونم حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی. (۵)

**قوله: قالت: استاذنت النبی صلی الله علیه وسلم فی الجهاد، فقال: جهادکن الحج:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه په جهادکښې د شرکت کولو اجازت اوغوښتلو نو هغوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ستاسو ښځو جهاد حج دې.

**د ښځودپاره جهاد واجب نه دې:** د باب حدیث په دې خبره دلالت کوی چه جهاد په ښځوباندې واجب نه دې او نه هغه آیت مبارک ﴿اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ د عموم لاندې داخل دې په دې د امت د علماؤ اجماع ده. (۶)

**د ښځودپاره حج د جهاد نه ولې افضل دې؟:** په حدیث باب کښې په دې خبره هم دلالت دې چه ښځې جهاد د عبادت ذریعه جوړولې شی او په دې کښې شریك کیدلې شی لکه چه د جهاد د شرکت په سوال باندې د نکیر نه کولو نه معلومه شوه، لیکن افضل د ښځودپاره حج د بیت الله دې، د دې وجه دا ده چه ښځې د اهل قتال نه نه دی اونه د هغوی په جهاد باندې قدرت حاصل دې. اود ښځې د پاره د دې نه افضل بل څیز نشته چه هغه په ستر کښې اوسی او د سړو سره د ګډوډ کیدو او اجتماع نه پرهیز اوکړی همدغه د دوی په حق کښې غوره دی.

---

۱) (هدی الساری (ص ٤٤٤)-
۲) (میزان الاعتدال (ج ٤ ص ١٣٤)-
۳) (حاشیة سبط ابن العجمی علی الکاشف (ج۲ص۲۷۵)-
٤) (د هغوی د حالات د پاره اوګوری کتاب الحج باب فضل الحج المبرور-
۵) (کشف الباری (ج۱ص۲۹۱)-
۶) (شرح ابن بطال (ج۹ص۷۵)-

نو چه کله خبره دغه ده چه د ښځود پاره غوره او عام حالاتوکښې هم ستر او د سرو سره د ګډون کیدو نه بچ کیدل دی نود جهاد باره کښې ستاسو څه خیال دې په خلاف د حج، چه د حج په دوران کښې د ښځودپاره د سړو نه احتراز او اجتناب کول ممکن او آسان دی نو په دې وجه حج د هغوی د پاره د جهاد نه غوره دې. (۱)

**قوله: وقال عبدالله بن الوليد: حدثنا سفيان عن معاوية بهذا:** دا تعليق امام سفيان ثوری رحمه الله په (جامع) کښې موصولاً ذکر کړيدې. (۲)

[۲۷۸۴] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بِهَذَا وَعَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ (۳) -عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَهُ نِسَاؤُهُ عَنِ الْجِهَادِ فَقَالَ نِعْمَ الْجِهَادُ الْحَجُّ [ر:۱۴۴۸]

**قوله: حدثنا قبيصة حدثنا سفيان عن معاوية بهذا:** دا حدیث د حضرت عائشه رضي الله عنها يو بل سند دې کوم کښې چه د امام بخاری شيخ قبيصه دې. (۴)

## تراجم رجال

۱-**قبيصه:** دا ابوعامر قبيصه بن محمد سوائی کوفی رحمه الله دې. د دوی حالات ((كتاب الايمان باب علامة المنافق)) کښې تيرشوی دی (۵)

۲-**سفيان:** دا مشهورامام حديث حضرت سفيان ثوری رحمه الله دې، د دوی حالات هم "كتاب الايمان" په مذکوره باب کښې تير شوی دی.(۶)

۳-**معاويه:** دا معاويه بن اسحاق رحمه الله د دوی حالات په وړاندینی حدیث کښې تیرشو.

۴-**حبيب بن ابي عمرة:** داحبيب بن ابی عمرة رحمه الله دې.(۷)

۵-**عائشه بنت طلحه:** سابقه سند اوګورئی (۸)

۶-**عائشه:** سابقه سند اوګورئی (۹)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۷۵-۷۶)-
۲) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۴) وفتح الباری (ج۶ص۷۶)-
۳) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحديث مرتخريجه فی كتاب الحج باب الحج المبرور
٤) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۴)-
۵) (كشف الباری (ج۲ص۲۷۵)-
۶)كشف الباری (ج۲ص۲۷۸)-
۷) (د دوی د حالاتودپاره اوګورئ كتاب الحج باب فضل الحج المبرور-
۸) (حواله بالا-
۹) (كشف الباری (ج۱ص۲۹۱)-

**د مذکوره تعلیق تخریج:** حبیب بن ابی عمرة رحمه الله دا تعلیق د قبیصه په طریق سره موصول دې.(۱) اوحبیب بن ابی عمره رحمه الله دا تعلیق ابونعیم رحمه الله "المستخرج" کښې او اسماعیلی موصولاً نقل کړیدې.(۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دباب د ترجمه سره د باب د احادیثومناسبت په دې معنی دې چه نبی ﷺ حج د ښځو د پاره جهاد ګرځولې دې. (۳)

## ۶۲-بَاب: غَزْوِ الْمَرْأَةِ فِي الْبَحْرِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله مقصد د دې ترجمه نه هغه اختلاف طرف ته اشاره کول دی چه د جمهورو او امام مالک رحمه الله په مینځ کښې دې. (۴)

امام مالک رحمه الله د ښځو سمندری جنګ کښې شرکت ناخوښوی او منع ګرځوی خو د جمهوروپه نزد ښځې چه څنګه د زمکې په جنګ کښې حصه اخستې شی دغه.شان په سمندری جنګ کښې هم شرکت کولې شی. (۵)

[۲۶۳۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ هُوَ الْفَزَارِيُّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا(۶) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَةِ مِلْحَانَ فَاتَّكَأَ عِنْدَهَا ثُمَّ ضَحِكَ فَقَالَتْ لِمَ تَضْحَكُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي يَرْكَبُونَ الْبَحْرَ الْأَخْضَرَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَثَلُهُمْ مَثَلُ الْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا مِنْهُمْ ثُمَّ عَادَ فَضَحِكَ فَقَالَتْ لَهُ مِثْلَ أَوْ مِمَّ ذَلِكَ فَقَالَ لَهَا مِثْلَ ذَلِكَ فَقَالَتْ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ أَنْتِ مِنْ الْأَوَّلِينَ وَلَسْتِ مِنْ الْآخِرِينَ قَالَ قَالَ أَنَسٌ فَتَزَوَّجَتْ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ فَرَكِبَتْ الْبَحْرَ مَعَ بِنْتِ قَرَظَةَ فَلَمَّا قَفَلَتْ رَكِبَتْ دَابَّتَهَا فَوَقَصَتْ بِهَا فَسَقَطَتْ عَنْهَا فَمَاتَتْ [ر:۲۶۳۶]

## تراجم رجال

۱- عبدالله بن محمد: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دې د دوی حالات ((کتاب الایمان باب امور الایمان)) لاندې تیرشوی دی.(۷)

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱۴ص ۱۶۴)-
۲) (تعلیق التعلیق (ج۳ص ۴۴۱)-
۳) (عمدة القاری (ج ۱۴ص ۱۶۴)-
۴) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲۳۵)-
۵) (حواله بالا والتمهید (ج۱ص ۲۳۳)-
۶) (قوله: انساً رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی اوائل کتاب الجهاد باب الدعاء بالجهاد.....-
۷) (کشف الباری (جج ۱ص ۶۵۷)-

۲- معاویه بن عمرو: دا ابوعمرو معاویه بن عمروالازدی رحمه الله دی. (۱)
۳- ابواسحاق: دا ابواسحاق ابراهیم بن محمدبن الحارث فزاری رحمه الله دی. (۲)
۴- عبدالله بن عبدالرحمن الانصاری: دا ابوطواله عبدالله بن عبدالرحمن بن معمرين حزم رحمه الله دي (۳)
۵- انس: دا مشهورصحابی خادم نبی، حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دي. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب من الایمان ان یحب لاخیه مایحب لنفسه)) په ذیل کښې تیرشوی. (۴)

**قوله: قال: انس: فتزوجت عبادة بن الصامت فرکبت البحر مع بنت قرظة:** ابوطواله فرمائي چه حضرت انس رضی الله عنه فرمائیلي چه حضرت ام حرام رضی الله عنها دَ حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه سره نکاح اوکړه اوبیا هغه بنت قرظه سره په سمندر کښې سوره شوه.

تنبیه: دَحضرت ام حرام رضی الله عنها حالات (کتاب الجهاد) په اول او دَ هغې دَ خاوند حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه حالات ((کتاب الایمان باب بلاترجمة)) لاندې تیرشوی دی. (۵)

**قوله: بنت قرظه:** دا دَ حضرت معاویه بن ابی سفیان رضی الله عنهما بی بی محترمه فاخته بنت قرظه رضی الله عنها ده، بعض حضراتو دَ هغې نوم کنود ښودلې دې. (۶) دَ هغې پلار قرظه بن عبد عمرو بن نوفل بن عبدمناف دې، لکه چه خلیفه بن خیاط په خپل تاریخ کښې دَ هغې تصریح کړېده.
او بعض حضراتو ته دا وهم شویدې چه هغوی حضرت فاخته دَ حضرت قرظه بن کعب الانصاری رضی الله عنه لور ګرځولې ده. (۷)
او بلاذری په خپل تاریخ کښې ذکر کړې دی چه قرظه بن عبد عمرو په حالت دَ کفر کښې مړدې او دَ هغه لور (فاخته) رویت ثابت دې، دَ هغې دَ رور مسلم بن قرظه رضی الله عنه هم، چه دَ حضرت عائشه رضی الله عنها دَ طرف نه جنګیدلو او په جنګ جمل کښې شهید شو. (۸)
دا دَحضرت معاویه رضی الله عنه سره دَاسلام رومبنی بحری جنګ کښې شریکه وه. کمافی حدیث الباب.
تنبیه: دَحدیث باب تول تشریحات دَ (کتاب الجهاد) په شروع کښې ((باب الدعاء بالجهاد

---

۱) (دَ دوی دَحالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الاذان باب اقبال الامام علی الناس عنه تسویة الصفوف-
۲) (دَ دوی دَحالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الجمعة باب القائلة الجمعة-
۳) (کشف الباری)ج۲ص۲)-
٤) (کشف الباری)ج۲ص۲)-
۵) (کشف الباری (ج۲ص۴۸)-
۶) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۶۵) وفتح الباری(ج۶ص۷۶)-
۷) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۶۵) وفتح الباری(ج۶ص۷۷)-
۸) (حواله بالا-

والشهادة.....)) په ذيل کښې راغلى دى، البته دلته دَ حديث باب سند سره متعلق دوه بحثونه مونږ ذکر کوو.

**بحث اول** دَ دې حديث په سند کښې دى ((حدثنا ابواسحاق هوالفزارى عن عبدالله بن عبدالرحمن الانصارى)) دَ ټولو روايتونوسنه دغه شان دي چه دَ ابواسحاق او عبدالله په مينځ کښې بل راوى نشته.(۱)

ليکن ابومسعود رحمه الله په (اطراف) کښې دا دعوى کړيده چه دَ دې دواړو په مينځ کښې يو راوى زائده بن قدامه ساقط شويدې. حافظ جمال الدين مزى رحمه الله هم دَ هغه دا قول برقرار ساتلې اودَ ابومسعود رحمه الله دَقول دَ تائيددپاره ئې دا فرمائيلى چه مسيب بن واضح رحمه الله دا حديث ((عن ابى اسحاق الفزارى، عن زائدة، عن قدامة)) په طريق باندې نقل کړيدې.(۲)

دَ علامه ابومسعود رحمه الله او حافظ مزى رحمه الله دا دعوى دَ بعض وجوهاتو په بنا صحيح نه ده

① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَ حافظ مزى رحمه الله دَ ابومسعود رحمه الله قول برقرار ساتل اودَ هغې تائيد دَ مسيب بن واضح په روايت سره کول صحيح نه د ى،هم دَبخارى شريف روايت صحيح دې. (۳) دَ دې وجه دا ده چه مسيب بن واضح ضعيف دې اودَ يوضعيف راوى دَ روايت په بنا دَ صحيح بخارى روايت غلط نشى ګرځولې کيدې.(۴)

② همدغه روايت امام احمد په خپل (مسند) کښې دَ ((معاوية بن عمروعن ابى اسحاق)) په طريق نقل کړيدې په دې کښې هم دَ دې دواړو په مينځ کښې بله واسطه نشته، نه دَ زائده او نه دَ بل چا.(۵)

③ ابوعلى جيانى رحمه الله او ابومسعود رحمه الله باندې کولو سره فرمائى ((تتبعت طرق هذا الحديث عن ابى اسحاق الفزارى فلم اجد فيها زائدة)) يعنى ابوسحاق نه مروى دَ دې حديث ټول طرق تتبع ما کړيده نو په دې کښې په يو کښې زائده موجود نه دې موندلې.(۶)

④ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ما دَ ابواسحاق فزارى کتاب (السير) کښې دا حديث اوکتلو نو په هغې کښې هم زائده نه وو. (۷)

⑤ همدغه روايت حافظ ابونعيم رحمه الله هم "المستخرج" کښې په دې سندسره نقل کړيدې. ((حدثنا ابن المقرئ ثنا ابوعروبة ثنا المسيب بن واضح، عن ابى اسحاق عن ابى طوالة عن انس رضى الله عنه))

---

۱ ) (فتح البارى (ج ص۷۷)-
۲ ) (تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف (ج۱۳ص۷۳)-
۳ ) (النکت الظراف(ج۱۳ص۷۳)-
٤ ) (فتح البارى (ج۶ص۷۷)-
۵ ) (مسند امام احمد(ج۳ص۲۶۵)-
۶ ) (النکت الظراف (۱۳ص۷۳)-
۷ ) (حواله بالا-

دې كښې هم زائده نشته.(۱)

دَ دې ټول تفصيل حاصل دا شو چه دَ ابومسعود رحمه الله دا دعوی چه دَ صحيح بخاری په روايت كښې ابواسحاق اوعبدالله الانصاری په مينځ كښې يوراوی زائده بن قدامه ساقط شويدې صحيح نه ده او هم دَ صحيح بخاری روايت صحيح دې.

**ابومسعود ته دا وهم ولې اوشو؟**: دَحافظ ابن حجر رحمه الله په قول ابومسعود مشقی رحمه الله ته دا وهم څكه شويدې چه معاويه بن عمرو څنگه دا حديث دَ ابواسحاق نه اخستې دې،دغه شان

دَ((زائدة عن ابی طواله)) په طريق سره ئې هم حاصل كړيدې.

ابومسعود: مشقی رحمه الله دا گنړلی دی چه دا روايت دَ معاويه په نزد((عن ابی اسحاق عن زائدة)) طريق نه دې خوخبره داسې نه ده، بلكه معاويه سره دا روايت دَ ابواسحاق او زائده دواړونه دې. معاويه بن عمرو دا روايت بيانولو سره كله دَ دواړو ذكر كوی اوكله دَ هريو نه جدا روايت بيانوی.

امام احمد رحمه الله په خپل (مسند)كښې معاويه بن عمرو دَ دې حديث تخريج او هلته دَ زائده په روايت باندې دَ ابواسحاق روايت معطوف كړيدې، نودَ معاويه بن عمرو دا روايت اول ((ثنا معاوية بن عمرو ثنا زائدة ثنا عبدالله بن عبدالرحمن بن معمر الانصاری)) په سند سره بيان كړو(۲) بيادَ دې نه پس همدغه روايت ((ثنا معاوية بن عمرو ثنا ابواسحاق عن عبدالله بن عبدالرحمن بن معمر)) په سندسره ذكركړو.(۳)

او اسماعيلی دا حديث ((ابی خيثمة عن معاوية بن عمرو عن زائدة)) په طريق سره نقل كړيدې او صرف زائده ئې ذكر كړيدې.

ابوعوانه هم دا روايت په خپل "صحيح" كښې ((عن جعفر الصائغ عن معاوية)) په طريق سره نقل كړيدې. بهرحال دَ دې ټول تفصيل نه به په تاسو دا خبره واضحه شوی وی چه دَ صحيح بخاری په روايت كښې څه راغلی دی هم هغه صحيح دی. (۴) والله اعلم.

**دوئم بحث**: حديث باب سره دَ حضرت انس رضی الله عنه نه درې كسان روايت كوی. اسحاق بن ابی طلحه، محمد بن يحيی بن حبان او ابوطواله عبدالله بن عبدالرحمن الانصاری.

اوس سوال دا پيدا كيږی چه دا حديث دَ مسند انس رضی الله عنه نه دې،يامسند ام حرام رضی الله عنها نه؟ دَ دې وجه داده چه دا روايت كله ابو اسحاق دَحضرت انس رضی الله عنه نه روايت كړونودې الفاظ دادی ((كان رسول الله صلی الله عليه وسلم يدخل علی ام حرام))(۵)

---

۱ ) (حواله بالا-

۲ ) (مسنداحمد (ج۳ص ۲۶۴)-

۳ ) (مسنداحمد (۳ص۲۶۵)-

٤ ) (فتح البارى (۶ص۷۷)-

٥ ) (الحديث اخرجه لبخاری كتاب الجهاد والسير باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء رقم (۲۷۸۸-۲۷۸۹)-

اود ابوطواله الفاظ داسې دي ((دخل رسول الله صلی الله علیه علی ابنة ملحان)) (۱)
دَ دې دوارو یعنی ابواسحاق او ابوطواله دَ کلام نه دا معلومیږی چه داحدیث دَ مسند انس رضی الله عنه نه دې.

محمدبن یحیی خپل روایت داسې بیانوي ((عن انس عن خالته ام حرام)) (۲) دَ ده کلام په دې خبره واضح دلالت کوی چه دا حدیث دَ مسندحرام نه دې او همدغه معتمد خبره ده. کیدیشې چه حضرت انس رضی الله عنه په دې موقع حاضر نه وو نو هغوی په حدیث کښې بیان شوې واقعه د خپلې ترور حضرت ام حرام رضی الله عنها نه واوریده، همدغه حدیث دَ ام حرام رضی الله عنها نه عمیر بن الاسود هم روایت کړیدې کوم کښې چه ښکاره دا ذکر دی چه دا حدیث دَ مسانید ام حرام نه دې، عمیر بن اسود فرمائی ((فحدثتنا ام حرام انها سمعت النبی صلی الله علیه وسلم یقول: اول جیش من امتی......)) (۳)
دَ دې بحث خلاصه اوس دا شوه چه دَ حدیث دَ شروع حصه مسند انس رضی الله عنه نه ده او دَ خوب چه کومه واقعه ده هغه دَ مسند ام حرام نه ده. چونکه حضرت انس رضی الله عنه په دې موقع موجود نه وو په دې وجه هغوی ذکر شوې پورتنئی واقعه دَ خپلې ترور حضرت ام حرام رضی الله عنها نه اخستې ده.
**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث دَ باب دَ ترجمه سره مناسبت واضح دې او هغه داسې چه دَ ((غزو المراة فی البحر)) باب قائم کړیشویدې او په حدیث کښې هم دَ حضرت ام حرام او فاخته بنت قرظه په ((غزوة البحر)) کښې دَ حضرت معاویه رضی الله عنه په امارت کښې دَ شرکت ذکر دې. (۴)

## ۶۴- بَاب: حَمْلِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ فِي الْغَزْوِ دُونَ بَعْضِ نِسَائِهِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی که سړې دَ خپلو ښځو نه بعضې په جهاد کښې دَ خدمت وغیره په غرض بوځی اوباقی بونه ځی نو په دې کښې هیڅ بدیت نشته. (۵) لیکن علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دلته دَ یو قید اضافه کول ضروری دی او هغه دا چه دَ دې ښځو په منیځ کښې به خسنړې هم کوی (قرعه اندازی) لکه چه دَ باب په حدیث کښې ذکر دی. (۶)

---

۱) (صحیح البخاری کتاب الجهادوالسیر باب غزوالمراة فی البحر رقم (۲۸۰۰،۲۸۷۷)-
۲) (صحیح البخاری کتاب الجهاد والسیر باب فضل من یصرع فی سبیل الله رقم (۲۷۹۹-۲۸۰۰)-
۳) (صحیح البخاری کتاب الجهاد والسیر باب ماقیل فی قتال الروم رقم (۲۹۲۴) وانظر لهذا البحث کله فتح الباری (ج۶ص۷۷) والنکت الظراف علی الاطراف (ج۱ص۲۶۲) و (ج۱۳ص۷۳)-
۴) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۴)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۵)-
۶) (حواله بالا-

[۲۷۴۳] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُونُسُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ كُلٌّ (۱) حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيثِ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ فَأَيَّتُهُنَّ يَخْرُجُ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقْرَعَ بَيْنَنَا فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيهَا سَهْمِي فَخَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ [ر: ۲۴۵۳]

## تراجم رجال

۱- حجاج بن منهال: دا ابو محمدحجاج بن منهال انماطی بصری رحمه الله دي. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باما جاء ان الاعمال بالنیة والحسبة....)) لاندې تیر شوی دی. (۲)

۲- عبدالله بن عمر: دا عبدالله بن عمر نمیری رحمه الله دي. (۳)

۳- یونس: دا یونس بن یزیدبن ابی الجاد ایلی رحمه الله دي. دَ دوی مختصرحالات ((بدء الوحی)) دَ پنځم حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی. (۴)

۴- زهري: دا امام محمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دي. دَ دوی مختصرحالات "بدء الوحی" دَ دریم حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی. (۵)

۵- عروه بن الزبیر: دا جلیل القدر تابعی حضرت عروه بن زبیر رحمه الله دي. دَ دوی مختصر حالات ((بدء الوحی)) دَ دوئم حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی. (۶)

۶- سعید بن المسیب: دا مشهور تابعی حضرت سعید بن المسیب رحمه الله دي. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب من قال ان الایمان هوالعمل)) لاندې تیرشوی دی. (۷)

۷- علقمه بن وقاص: داعلقمه بن وقاص بن محصن لیثی رحمه الله دي. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باما جاء ان الاعمال بالنیة او الحسبة)) کښې تیرشوی دی. (۸)

---

۱) قوله: عن حدیث عائشة رضی الله عنها: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الهبة باب هبة المراة لغیر زوجها..
۲) (کشف الباری (ج۲ص ٧٤٤)-
۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الشهادات باب اذا عدل رجل رجلا.....-
٤) (کشف الباری (ج۱ص۴۶۳) وانظر کشف الباری (ج۳ص۲۸۲)-
۵) (کشف الباری (ج۱ص ۳۲۶)
۶) (کشف الباری (ج۱ص ۲۹۱)
۷) (کشف الباری (ج۲ص۱۵۹)-
۸) (کشف الباری (ج۲ص ۷٤۱)-

۸- عبیدالله بن عبدالله: داعبیده بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دی. دَ دوی څه حالات ((بدء الوحی)) پنځم حدیث لاندې او مفصل حالات ((کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر؟)) کښې تیرشوی دی. (۱)

۹- عائشه: دا حضرت عائشه ام المؤمنین عائشه بن ابی بکرٍ الصدیق رضی الله عنها ده. دَ دوی حالات ((بدء الوحی)) دَ دوېم حدیث لاندې راغلی دی. (۲)

تنبیه امام بخاری رحمه الله دلته دَ باب لاندې چه کوم حدیث ذکر کړیدې، هغه دَ حضرت عائشې رضی الله عنها مشهور حدیث ((حدیث الافك)) دې. دَ دې حدیث مکمل تشریح ((کتاب المغازی)) کښې راغلی ده. (۳)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث باب دَ ترجمه سره مطابقت ظاهر دې او په دې کښې تصریح ده چه عائشه رضی الله عنها نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل ځان سره بوتلې وه، هغه نی دَ خسرې راویستو نه پس بوتلې وه. (۴)

## ۶۴- بَاب: غَزْوِ النِّسَاءِ وَقِتَالِهِنَّ مَعَ الرِّجَالِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ دې خبرې احتمال دې چه دَ امام بخاری رحمه الله غرض دَ باب دَ ترجمه نه دابیان کول وی چه ښځې خوَد غزوې دپاره اووتلې لیکن هغوی به جنګ نه کوی نو دَعبارت تقدیر به دا وی ((وقتالهن مع الرجال، ای هل هوسائغ لو اذا خرجن فی الغزو اقتصرن علی ماذکر من مداواة الجرحی ونحو ذلك؟)) اودَ ښځو سړو سره جنګ کول آیا دا شائع دی یا که ښځې دَ سړودپاره دَ غزوې دپاره اووتلې نودَ زخمیانو مرهم پټئی یا دَ دې قسم په نور خدمت باندې به اقتصار کوی؟ (۵)

[۲۷۲۴] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ (۶) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَلَقَدْ رَأَيْتُ عَائِشَةَ

---

۱) (کشف الباری (ج ۱ص۴۶۶) و)ج ۳ص ۳۷۹)-
۲) (کشف الباری (ج ۱ص ۲۹۱)-
۳) (کشف الباری کتاب المغازی باب حدیث الافک (ص ۳۳۲)-
٤) (فتح الباری(ج ۶ص ۷۸)-
۵) (فتح الباری (ج ۶ص ۷۸)-
۶) (قوله: عن انس رضی الله عنه: الحدیث اخرجه البخاری ایضاً کتاب الجهادوالسیر باب المجن ومن يترس بترس صاحبه، رقم (۲۹۰۲) وکتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم باب مناقب ابی طلحه رضی الله عنه رقم (۳۸۱۱) وکتاب المغازی باب ﴿اذهمت طائفتان منکم ان تفشلا....﴾ رقم (۴۰۶٤) ومسلم کتاب الجهاد باب غزوة النساء مع الرجال رقم(۴۶۸۳)

بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ وَأُمَّ سُلَيْمٍ وَإِنَّهُمَا لَمُشَمِّرَتَانِ أَرَى خَدَمَ سُوقِهِمَا تَنْقُزَانِ الْقِرَبَ وَقَالَ غَيْرُهُ تَنْقُلَانِ الْقِرَبَ عَلَى مُتُونِهِمَا ثُمَّ تُفْرِغَانِهِ فِي أَفْوَاهِ الْقَوْمِ ثُمَّ تَرْجِعَانِ فَتَمْلَآنِهَا ثُمَّ تَجِيئَانِ فَتُفْرِغَانِهَا فِي أَفْوَاهِ الْقَوْمِ [۲۷۴۶، ۳۶۰۰، ۳۸۳۷]

## تراجم رجال

۱-ابومعمر: دا ابومعمرعبدالله بن عمروبن ابی الحجاج منقری رحمه الله دي.

۲-عبدالوارث: داعبدالوارث بن سعیدبن ذکوان تمیمی بصری رحمه الله دي، دَدې دواړو حضراتو حالات (کتاب العلم باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: اللهم علمه الکتاب) کښې تیرشوی دی(۱)

۳- عبدالعزیز: دا عبدالعزیز بن صهیب بنانی بصری رحمه الله دي. دَ دوی مختصر حالات ((کتاب الایمان باب حب الرسول صلی الله علیه وسلم من الایمان)) کښې راغلی دی. (۲)

۴-انس: دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دي، دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب من الایمان ان یحب لاخیه مایحب لنفسه)) په ذیل کښې تیرشوی دی. (۳)

**قوله:** قال لما کان یوم احد انهزم الناس عن النبی صلی الله علیه وسلم: حضرت انس رضی الله عنه دَ جنګ احدپه ورځ چه کله خلقو ماتې اوخوړله او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه خواره شول.

دلته حضرت انس رضی الله عنه په جنګ احد کښې دَ مسلمانانو دَ ماتې سره مخ کیدلو طرف ته اشاره اوفرمائیله، دَ کتاب المغازی په روایت کښې نور تفصیل ذکر دې.کوم چه مصنف رحمه الله دلته مصنف دَ اختصار په غرض سره حذف کړیدې. (۴)

**قوله:** قال ولقد رایت عائشة بنت ابی بکر و ام سلیم، وانهما لمشمرتان: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی ما حضرت عائشه او ام سلیم رضی الله عنهما اوکتلې چه هغوی خپلې پینځې اوچتې کړې وې.

حضرت ام سلیم رضی الله عنها دا مشهوره انصاری صحابیه اودَ حضرت انس رضی الله عنه مورده.(۵)

((مشمرتان)) دَ باب تفعیل نه اسم فاعل، تثنیه مونث صیغه ده، وئیلی شي ((شمرالثوب من ساقیه)) یعنی هغې کپړې دَ پنډونه اوچتې کړې.(۶)

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۳۵۶-۳۶۱)-
۲) (کشف الباری (ج۲ ص۲)-
۳) (کشف الباری (ج۲ص ٤)-
٤) (دَ تفصیل دَپاره اوګورئ کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۳۰)-
۵) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب الحیاء فی العلم-
۶) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٢٦) ومصباح اللغات مادة شمر-

((اری خدم سوقهما)) ما دَ هغې دَ پنډو پانزيب ته کتل. ((خدم)) بفتح الخاء المعجمة والدال المهملة
-دَخدمة جمع ده اودَ دې معنې خلخال يعنې پازيب.(۱)
او سوق جمع دَ ساق په معنى دَ پنډئی. (۲)

**يوسوال اود هغې جواب:** دلته سوال دا پيدا کيږي چه حضرت عائشه رضي الله عنها خودَ حضرت انس رضي الله عنه دَ پاره نامحرم وه نودَ حضرت انس رضي الله عنه دَ پاره دَ ام المؤمنين رضي الله عنها پنډئی طرف ته کتل څنګه جائزشو؟ علامه نووي رحمه الله دَ دې سوال دوه جوابونه فرمائيلى دى:

① دا ((نهي عن النظرالی الاجنبيات)) نه وړاندې واقعه ده، ځکه چه حضرت انس رضي الله عنه دَ غزوه احد قصه بيانوى او هغه وخت پورې اجنبياتو طرف ته دَ کتلو نهى او ممانعت نه وو نازل شوې.

② حضرت انس رضي الله عنه داخو په حديث کښې نه دى فرمائيلى چه ما دَ هغې پنډئی ته په قصد سره کتلى وو، دَ هغه دا خبره په دې باندې محمول ده چه دا نظر کوم پريوتلې وو ناڅاپى او غير اختيارى توګه باندې وو. (۳)

**قوله:** تنقزان القرب: هغوى به مشکيزې ډکې اوړلې.
مطلب دا چه مشکيزې به دَ اوبونه دومره ډکې وې چه دَ هغې نه به اوبه توئيدلې. پورته چه کومه ترجمه مونږ نقل کړه، دا دَ حضرت انور شاه صاحب رحمه الله ده. (۴)

**"تنقزان" معنى او ضبط:** ((تنقزان)) تثنيه مؤنثه غائبه صيغه ده اودا کلمه شارحينو په دوه شان ضبط کړيده ①يوچه دَ تاء دَ فتحه سره وى نودَ دې باب به ((نصر)) وى اودَ دې معنى دَ ټوپونو او دانګلو به وى.(۵)
ليکن په دې صورت کښې دَ ((القرب)) نصب مشکل دې. ځکه چه ((النقز)) فعل لازم دې او هغه ((القرب))کښې دَ نصب عمل نشى کولې.
دَ دې اشکال جواب صاحب ((تلويح)) داورکړې چه ((القرب)) ((منصوب على نزع الخافض)) دې يعنى ((تنقزان بالقرب)) (۶)

② چه دادَ تاء په ضمه سره وى نو دَدې باب ((افعال)) راځى، او په هغه صورت کښې "القرب" نصب صحيح دې، مطلب به دا وى چه هغه به دَ سير دَ شدت دَ وجه مشکيزې خوزولې.(۷)

---

۱) (جامع الاصول (ج۸ص۲۴۰) وفتح البارى (ج۶ص۷۸) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۶۶)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۶۶)-
۳) (شرح النووى على مسلم (ج۲ص۱۱۶) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۶۷)-
۴) (فيض البارى (ج۳ص۴۳۴)-
۵) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۶۶) وفتح البارى (ج۶ص۷۸)-
۶) (حواله بالا-
۷) (حواله بالا-

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په بعض اصول کښې ضمه د تاء صراحت دې. (۱)
البته قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه بعض شیوخ ،،القرب،، مرفوع لولی په داسې طریقه چه ،،القرب علی متونهما،، جمله اسمیه بغیر د واو ده (۲)
اوعلامه خطابی رحمه الله فرمائی چه زما خیال دا دې چه صحیح لفظ ((تزفران)) دې او ((زفر)) وائی درنه مشکیزه اوچتولوته، د دې وجه دا ده چه وړاندینی باب په روایت کښې امام بخاری رحمه الله "تزفر" لفظ نقل کړیدې. (۳)
خو دا خبره منلې شویده چه دا کلمه که د تاء په فتحه سره وی اوکه ضمه سره، دا د سیرۍ سرعت نه کنایه ده. (۴)

**قوله: وقال غیره: تنقلان القرب علی متونهما:** اود ابومعمر رحمه الله نه علاوه بل چا وئیلی دی چه هغه دواړو به په خپله شاباندې مشکیزې راوړلې.

**دَ مذکوره تعلیق مطلب او مقصد:** دَ ابوذر، کشمیهنی او حموی په نسخوکښې همدا رنګ دی، دا حدیث هم هغه شان په هغه سنداومتن سره امام بخاری رحمه الله په کتاب المغازی غزوه احد (۵) لاندې ذکر کړیدې.په دې کښې رواتو هیڅ اختلاف نه دې کړې بلکه ټولو((تنقزان)) نقل کړیدې. (۶)

او په ((غیره)) کښې ضمیر مجرد او ابومعمر طرف ته راجع دې اودَ غیر نه مراد جعفر بن مهران دې. (۷)

اوس دَ پورتنی عبارت مطلب دا شو چه عبدالوارث نه حدیث باب روایت کونکی ټولو حضراتو هم((تنقزان)) وئیلې دې خوجعفر بن مهران په خپل روایت کښې ((تنقلان))نقل کړیدې، او دا خبره خو دَ چا نه هم پټه نه ده ((تنقزان)) په صورت کښې چه کوم اشکال وړاندې کیدل هغه دَ ((تنقلان)) په صورت کښې نه راځی ځکه چه دا فعل متعدی دې او معنی ئې هم واضح ده. (۸)

**دَمذکروه تعلیق تخریج:** مذکوره تعلیق امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کښې دَ عبدالله بن

---

۱ ) (عمدة القاری(ج ۱٤ص ۱۶۶)وقدجاء هذااللفظ بضم التاء روایة باب مناقبابی طلحه رضی الله عنه من کتاب مناقب الانصاررقم (۳۸۸) وباب ﴿اذهمت طائفتان منکم ان تفشلا...﴾ من کتاب المغازی رقم (٤۰۶٤)
۲) فتح الباری (۶\۷۸) وعمدة القاری (۱٤\۱۶۷) والنهایة (۵\۱۰۶)_
۳ ) (اعلام الحدیث للخطابی (ج۲ص۱۳۸۵)-
٤ ) ( فتح الباری (ج۶ص۷۸)-
۵ ) (الصحیح للبخاری (ج ص) کتاب المغازی باب ﴿اذهمت طائفتان...﴾ رقم (٤۰۶٤)-
۶ ) (تعلیق التعلیق (ج۳ص٤٤۲)-
۷ ) (حواله بالا-
۸ ) (صحیح مسلم کتاب الجهاد والسیر باب غزوة النساء مع الرجال رقم (٤۶۸۳)-

عبدالرحمن الدارمى په واسطه سره، ابويعلى موصلى رحمه الله خپل مسند كښې او اسماعيلى رحمه الله د جعفر بن مهران په واسطه سره بعينه د حديث باب سند سره نقل كړيدې. (١)

**قوله: ثم تفرغانه فى افواه القوم، ثم ترجعان، فتملانها، ثم تجيئان فتفرغانه فى افواه القوم....:** بيا به دوارو اوبه د قوم په خلو كښې اړولې، بيا به واپس كيدلې او مشكيزې به ئې راډكولې راوړلې او بيا به ئې اوبه د قوم په خلوكښې اړولې.

«تفرغانه» د باب افعال نه دې، د دې معنى راغورزولو او اړولو ده.او ضمير منصوب ماء طرف ته راجع دې چه د قرب په لفظ سره مفهوم كيږى اوس مطلب دا شوچه هغه دواړو به هغه اوبه چه په مشكيزوكښې وې دخلقوپه خلوكښې ورغورزولې او وراړولې.(٢)

اودابوذر په نسخه كښې «تفرغانها» دې، په دې صورت كښې ضمير منصوب «القرب» طرف ته راجع به وى. (٣)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه ابن المنير اسكندرانى رحمه الله د باب د ترجمې په الفاظو باندې اعتراض كولو سره فرمائى چه امام بخارى رحمه الله خو ترجمه قائمه كړيده «غزو النساء وقتالهن مع الرجال» اود باب په مينځ كښې چه كوم حديث ذكر كړيدې په هغې كښې د سر نه د غزوې يا د قتال ذكر نشته، په دې وجه د ترجمه او حديث په ذيل كښې مناسبت موجود نه دې، فرمائى «بوّب على غزوهن وقتالهن، وليس فى الحديث انهن قاتلن» (٤)

او بيا هغوى پخپله د دې اعتراض جواب وركولو سره دوه مناسبتونه ذكر كوى:

① چه دا اوونيلې شى چه ښځو د مجاهدينو او غازيانو كوم اعانت او امداد كولو هم دغه د هغوى جهاد وو (٥)

د دې جواب تائيد د مختلفو احاديثونه كيږى. د ابوداؤد شريف روايت دې. حشرج بن زياد د خپلې نيا ام زياد رضى الله عنها نه روايت كوى:

«انها خرجت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فى غزوة خيبر سادس ست نسوة، فبلغ رسول الله صلى الله عليه وسلم، فبعث الينا، فجئنا، فراينا فيه الغضب، فقال: مع من خرجتن وباذن من خرجتن؟ فقلنا: يارسول الله خرجنا نغزل الشعر، ونعين به فى سبيل الله ومعنا دواء للجرحى ونناول السهام، ونسقى السويق.....» (٦)

يعنى هغوى د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره غزوه خيبر ته اووتلې، هغه د شپږو ښځو نه شپږمه ښځه وه،

---

١) (تعليق التعليق (ج٣ص٤٤٢) وفتح البارى (ج٦ص٧٨)-
٢) (عمدة القارى (ج١٤ص١٦٧) وشرح القسطلانى ء (ج٥ص٨٤)-
٣) (ارشادالسارى (ج٥ص٨٤)-
٤) (المتوازى (ص١٥٦) وعمدة القارى (ج١٤ص١٦٦) وفتح البارى (ج٦ص٧٨)-
٥) (حواله بالا-
٦) (سنن ابى داؤد ابواب الجهاد باب فى المراة والعبد يحديان من الغنيمة رقم (٢٧٢٩)-

نو رسول الله ﷺ ته خبره اورسيدله نو هغوى ﷺ زمونږ د راغوښتلو دپاره سړي راوليګلو نو مونږ په خدمت کښې حاضرې شو. مونږ د هغوى ﷺ په مخ مبارك باندې غصه اوليدله، وې فرمائيل تاسو ښځې دچاسره اودَ چا په اجازت راوتلي ئې؟ مونږ وئيل يا رسول الله! مونږ په دې وجه راوتلې يو چه سپرسى به تارونه كوواودې په ذريعه به دَ الله تعالى دَلارې مدد كوو او مونږ سره دَ زخميانو دپاره دوائى ده او مونږ به غشي نيسو او ستوان به پرې څكوو.

په دې حديث كښې دا راغلى دى چه مونږ به غشو ورونكوته غشي نيسو او دا خبره ښكاره ده چه غازى ته څه وركونكوته دَ هغې په مثل اجر او ثواب به ملاويږى. (١)

دَ دې جواب تائيد دَ حضرت ربيع بن معوذ ﷺ دَ حديث نه هم كيږى چه راتلونكى باب نه پس په باب كښې راځى. چه ((كنا مع النبى صلى الله عليه وسلم وندداوى الجرحى.....))(٢)

دغه شان په مسلم شريف كښې دَ حضرت ابن عباس ﷺ حديث دې ((وقد كان يغزوبهن، فيداوين الجرحى.....)) (٣) رسول الله ﷺ به غزواتو كښې ښځې هم ځان سره بوتلې چه دَ زخميانو خيال به ئى ساتلو او مرهم پټنى وغيره به كولې. (٤)

② يا كه دا اووئيلې شى چه دغه صحابياتو رضى الله عنهن كله دَ زخميانو دَ خيال كولو فريضه پوره كوله او په هغوى به ئې اوبه وغيره څكولې نو بعض وخت دَ دې امورو پوره كولو په دوران كښې دَ خپل ځان دَ حفاظت او بچ ساتلو هم ضرورت پيښيدلو او همدغه احتمال غالب دې په دې وجه هغوى ته دَ قتال نسبت كړيشوې دې. (٥)

دَ دې احتمال تائيد دَ دې روايت نه كيږى كوم چه حضرت انس ﷺ بيان كړيدې، دَ صحيح مسلم روايت دې:

((ان ام سليم اتخذت يوم حنين خنجرا، فكان معها، فراها ابوطلحة فقال: يا رسول الله هذه ام سليم معها خنجر فقال لها رسول الله صلى الله عليه وسلم : ما هذا الخنجر؟ قالت: اتخذته ان دنا منى احد من المشركين بقرت به بطنه)) (٦)

ام سليم ﷺ په غزوه حنين كښې يو خنجر لاس كښې نيولې وو، چه هم هغې سره وو، حضرت ابوطلحه (چه دَ ام سليم خاوندوو) هغې ته اوكتل نو رسول الله ﷺ ته ئى عرض اوكړو. دا ام سليم ده، دَ چا په لاس كښې چه خنجر دې. نورسول الله ﷺ ام سليم ﷺ ته اوفرمائيل چه دا خنجر تاڅه له راخستې دې؟ نو هغې اووئيل چه څوك مشرك ماله نزدې راغلو نو په دې خنجر به زه دَ هغه خيټه اوشلوم.

---

١ ) (عمدة القارى (ج١٤ص ١٦٦)-

٢ ) (صحيح البخارى كتاب الجهاد باب مداواة النساء الجرحى فى الغزو رقم (٢٨٨٢)-

٣ ) (صحيح مسلم كتاب الجهاد والسير باب النساء الغازيات يرضخ لهن....رقم ( ٤٦٨٤)-

٤ ) (فتح البارى (ج٦ص٧٨)-

٥ ) (حواله بالا المتوازى (ص١٥٦) وعمدة القارى (ج١٤ص ١٦٦)-

٦ ) (صحيح مسلم كتاب الجهاد والسير باب غزوة النساء مع الرجال رقم(٤٦٨٠)-

د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د حکومت په زمانه کښې مشهور جنګ، جنګ يرموک کښې ښځو جنګ اوکړو، کله چه روميانو په مسلمانانو باندې سختې حملې اوکړې او هغوى د مسلمانانو په لښکر کښې رانوتل نو روميانو ښځې په تورو اووهلې، په دې موقع د قريشو ښځو ډير په بهادرئ سره د روميانو مقابله اوکړه او آخر ئې اوتختول. (۱)

## ۶۵-بَاب: حَمْلِ النِّسَاءِ الْقِرَبَ إِلَى النَّاسِ فِي الْغَزْوِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دامام بخارى رحمه الله مقصد د باب د ترجمې نه د دې امر جواز او مشروعيت خودل دى چه ښځې په غزوه کښې سړو باندې اوبه څکولې شى، په دې کښې د حرج څه خبره نشته.(۲)

[۲۷۲۵] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ ثَعْلَبَةُ بْنُ أَبِي مَالِكٍ (۳) إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَسَمَ مُرُوطًا بَيْنَ نِسَاءٍ مِنْ نِسَاءِ الْمَدِينَةِ فَبَقِيَ مِرْطٌ جَيِّدٌ فَقَالَ لَهُ بَعْضُ مَنْ عِنْدَهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَعْطِ هَذَا ابْنَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي عِنْدَكَ يُرِيدُونَ أُمَّ كُلْثُومٍ بِنْتَ عَلِيٍّ فَقَالَ عُمَرُ أُمُّ سَلِيطٍ أَحَقُّ وَأُمُّ سَلِيطٍ مِنْ نِسَاءِ الْأَنْصَارِ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ فَإِنَّهَا كَانَتْ تَزْفِرُ لَنَا الْقِرَبَ يَوْمَ أُحُدٍ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ تَزْفِرُ تَخِيطُ [۳۸۴۳]

### تراجم رجال

۱-**عبدان:** دا عبدالله بن عثمان بن جبله رحمه الله دې.

۲-**عبدالله:** دا عبدالله بن مبارك بن واضح حنظلى رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو حالات "بدء الوحى" د پنځم حديث په ذيل کښې راغلى دى. (۴)

۳-**يونس:** دا ابويزيد بن يزيدبن ابى النجاد ايلى رحمه الله دې. د ده مختصر حالات "بدء الوحى" پنځم حديث (۵) او تفصيلى حالات ((كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا....)) لاندې تيرشوى دى. (۶)

۴-**شهاب:** دا ابوبكر محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. د ده حالات ((بدء الوحى))

---

۱) (ارشاد السارى (ج۵ص ۸٤) وشرح ابن بطال (ج۵ص۷۷)-

۲) (عمدة القارى (ج١٤ص ١٦٩)-

۳) (قوله: ثعلبة الحديث اخرجه البخارى ايضاً كتاب المغازى باب ذكر ام سليط رقم ۴۰۷۱) والحديث من افراده عمدة القارى (ج١٤ص١٧٠)-

٤) (كشف البارى (ج١ص٣٦١-٣٦٢)-

۵) (كشف البارى (ج١ص٤٦٣)-

۶) (كشف البارى (ج٣ص٢٨٢)-

دریم حدیث کښې راغلی دی.(۱)

**۵- ثعلبه بن ابی مالك:** داابویحیی یاابومالك ثعلبه بن ابی مالك عبدالله بن سام القرظی المدنی رضی الله عنه دي. (۲)

دا د بنوقریظه د جمات امام وو او تر آخرعمر پورې په دې منصب باندې وو او د انصارو حلیف وو.(۳)

د هغه پلار عبدالله بن سام ابومالك اصلاً یمنی دېو قبیله "کنده" سره د هغه تعلق وو او یهودی مذهب والا وو، د یمن نه راغلې وو او مدینه منوره کښې آباد شوې وواو د بنو قریظه یوسرې ابن سعید لورسره ئې نکاح اوکړه اوابومال بنو قریظه حلیف جوړشو په دې وجه هغه ته قرظی وائی.(۴)

اوهغه پلارعبدالله بن سام غالباً غزوه بنی قریظه کښې د کفرپه حالت کښې اووژلې شو.(۵)

**حضرت ثعلبه رضی الله عنه صحابی دې که نه؟:** دحضرت ثعلبه رضی الله عنه په صحابی کیدو کښې د محدثینواختلاف دې. ابن سعد، امام ابوحاتم، ابن حبان، عجلی اوداسې نور بعض حضرات هغه ته تابعی وائی.ابن ابی حاتم فرمائی(سالت ابی عن ثعلبة بن ابی مالك؟ فقال: هومن التابعین)(۶)

خو امام یحیی بن معین، حافظ جمال الدین مزی، امام بخاری، ابن عبدالبر، ابن قانع، ذهبی او مصعب بن عبدالله زبیری رحمهم الله وغیره رائې دا ده چه صحابی دې. (۷)

تاسو د فریقینو اقوال اوکتل خو راجح همدغه معلومیږی چه دا صحابی دې.

علامه ابن عبدالبر رحمه الله په قول حضرت ثعلبه قرظی رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښې اسلام قبول کړې وو. (۸)

پخپله د حضرت ثعلبه رضی الله عنه وینا ده، سماك بن حرب رحمه الله د حضرت ثعلبه رضی الله عنه نه روایت کوی چه هغوی فرمائیلی دی: ((کنت غلاما علی عهد النبی صلی الله علیه وسلم))(۹)

په دې وجه راجح همدغه دی چه هغه صحابی دې. او هغوی په حالت اسلام کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلې دې. او ابن ماجه کښې د هغه مرفوع روایت هم موجود دې. (۱۰)

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۳۲۶)-
۲) (تهذیب الکمال (ج٤ص۳۹۷) وطبقات ابن سعد(ج۵ص۷۹)-
۳) (حواله بالا الجرح والتعدیل (ج۲ص ۳۹۰) رقم (۱۸۷۵)-
٤) (طبقات ابن سعد (ج۵ص۷۹)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۷۹) والاصابة (ج۱ص۲۰۱)-
۶) (تهذیب التهذیب (ج۲ص۲۵) وحاشیة سبط ابن العجمی (ج۱ص ۲۸٤)وطبقات ابن سعد [۵ص۷۹ وتعلیقات معجم الصحابة (ج۳ص ۹۲٤)-
۷) (تهذیب الکمال (ج٤ص۳۹۷) والاستیعاب (ج۱ص۱۳۲) وتاریخ البخاری الکبیر (ج۱ص۱۷٤) ومعجم الصحابة (ج۳ص ۹۲٤)والکاشف للذهبی (ج۱ص ۲۸٤)-
۸) (الاستیعاب (ج۱ص۱۳۲)-
۹) (حاشیة سبط ابن العجمی علی الکاشف (ج۱ص ۲۸٤)-
۱۰) اخرج ابن ماجة لثعلبة بن ابی مالک عن النبی صلی الله علیه وسلم کان یخطب قائما خطبتین یفصل بینهما بجلوس وابوبکروعمر رضی الله عنهما کذلک. سنن ابن ماجه: کتاب الرهن، باب الشرب من الاودیة رقم (۲٤۸۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله دَ هغوى صحابى كيدو ته ترجيح وركولو سره ليكى: ((وحديثه من عمر فى صحيح البخارى ومن يقتل ابوه بقريظة ويكون هو بصدد من يقتل لولا الانبات لايمتنع ان يصح سماعه فلهذا الاحتمال ذكرته هنا)) (١)

يعنى دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه په صحيح بخارى كښې دَ هغوى حديث موجود دې او دَ چاپلار چه په بنوقريظه كښې قتل شوې وى او هغه پخپله هم قتل كيدو ته نزدې وى كه دَ انبات معامله نه وه نودَ هغه سماع عن النبى صلى الله عليه وسلم صحيح كيدل ممتنع نه دە،په دې وجه دَ حضرت ثعلبه رضي الله عنه تذكره ما (قسم اول) كښې نقل كړيده.

او حافظ ابن حرج رحمه الله "الاصابة" په قسم اول كښې دَ هغه صحابه كرامو ترجمه او تذكره ليكلې ده د چا رويت او صحبت چه ثابت وى، كه هغه ثبوت په كومه طريقه هم وى. (٢)

مصعب بن عبدالله زبيرى رحمه الله فرمائى((سنه سن عطية وقصته كقصته)) (٣) يعنى حضرت ثعلبه دَ حضرت عطيه رضي الله عنه هم عمر دې اودَ حضرت ثعلبه رضي الله عنه قصه هم دَ عطيه رضي الله عنه دَ قصې په شان ده.(۴)

دا خبره دې واضحه وى چه دَ حضرت عطيه رضي الله عنه په صحبت كښې هيڅ اختلاف نشته. هغه په اتفاق سره صحابى دې

نو حضرت ثعلبه رضي الله عنه به هم صحابى شميرلې شى. حضرت ثعلبه رضي الله عنه دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه، حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت جابر او حارثه بن نعمان رضي الله عنهم وغيره نه دَ حديث روايت كوى.

اودَ هغه نه روايت كونكوكښې دَ هغه ځوئ ابومالك، منظور، زهرى، مسوربن رفاعة، محمدبن عقبه او صفوان بن سليم وغيره شامل دى.(۵)

دا دَ صحيح بخارى،ابوداؤداو ابن ماجه راوى دې.(۶) اودَ هغه په صحاح سته كښې صرف يو مرفوع حديث دې. (٧)

---

١ ) (الاصابة (ج١ص٢٠١)-

٢ ) (الاصابة (ج١ص ٤)-

٣ ) (تهذيب الكمال (ج ٤ص٣٩٧)-

٤ ) (وقصة عطية رواها الائمة الاربعة وهى: عن عطية القرظى قال: كنت فيمن حكم عليهم سعد بن معاذ، فشكوا فى امن الذرية انا اومن المقاتلة؟ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: انظروا فان كان انبت الشعر فاقتلوه والافلاتقتلوه. قال: فاذا عانتى لم تنبت فالقونى فى الذرية فلم اقتل. انظر سنن ابى داؤد ابواب الحدود باب فى الغلام يصيب الحد، رقم (٤٤٠٤-٤٤٠٥) والترمذى ابواب السير باب ماجاء فى النزول على الحكم رقم (١٥٨٤) والنسائى كتاب قطع السارق باب ماجاء البلوغ وذكر السن..... رقم (٤٩٨٤) وابن ماجه ابواب الحدود باب من لايجب عليه الحد رقم (٢٥٤١)-

٥ ) (شيوخ وتلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال(ج ٤ ص٣٩٧-٣٩٨)-

۶ ) (تهذيب الكمال (ج ٤ص٣٩٨)-

٧ ) (تعليقات معجم الصحابة (ج٣ص ٩٢٤) وخلاصة الخزرجى )ص٥٧) حرف الثاء من اسمه ثعلبة-

۶- عمر بن الخطاب: دا خلیفه ثانی امیرالمؤمنین حضرت عمر بن الخطاب العدوی رضی الله عنه دی. دَ دوی مختصر حالات ((بدء الوحی)) په رومبنی حدیث او مفصل حالات ((کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه)) لاندې تیرشوی دی. (۱)

قوله: ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه قسم مروطاً بین نساء من نساء المدینة، فبقی مرط جید: حضرت ثعلبه بن ابی مالک رضی الله عنه فرمائی چه حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه د مدینې منورې په ښځوکښې څادرونه تقسیم کړل، نو یو ښه څادر بچ شو.

مروط — بضم المیم والراء — مرط جمع ده، دَ ورېنې یا رېښمو څادر ته وائی. (۲)

((فقال له بعض من عنده: یا امیرالمؤمنین، اعط هذا ابنة رسول الله صلی الله علیه وسلم التی عندك - یریدون: ام کلثوم بنت علی))

نوحضرت عمر رضی الله عنه سره ناست یو سړی اووئیل امیرالمؤمنین! دا څادر دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم لوربې بی ته ورکړه چه ستاسو په نکاح کښې ده. دَ هغه مراد ام کلثوم رضی الله عنها وه، چه دَ حضرت علی رضی الله عنه لور وه.

حافظ ابن حجر فرمائی ((لم اقف علی اسمه)) دَ هغه قائل نوم ماته معلوم نه شو. (۳)

قوله: ام کلثوم رضی الله عنها: دا دَ حضرت علی او حضرت فاطمه رضی الله عنهما دَ تولونه کشره لور وه او د حضرات حسنین رضی الله عنهما سکه خور اودَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نمسئی وه، په دې وجه په حدیث کښې هغې ته ((بنت رسول الله)) اووئیلې شوه. (۴)

دا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په حیات مبارك کښې پیدا شوه او حضرت عمر په خپل دور خلافت کښې دَ حضرت علی رضی الله عنه نه دَ هغې رشته دَ خپل ځان دپاره اوغوښتله، هغه وخت دا ماشومه وه. (۵)

دَ هغې نکاح حضرت عمر رضی الله عنه سره په کال ۱۷ھ کښې اوشوه. (۶) دَ هغې نه دَ حضرت عمر رضی الله عنه یوه لور رقیه او یو خوئ زید پیداشو. (۷)

دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ شهادت نه پس دَ هغې نکاح عوف بن جعفر بن ابی طالب سره اوشوه، دَعوف دَ انتقال نه پس دَ هغه رور محمدبن جعفر هغې سره نکاح اوکړه، دَ محمد نه پس

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۹) و(ج۲ص ٤٧٤)-
۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۶۸)-
۳) (فتح الباری (ج۶ص۷۹)-
٤) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا والاصابة (ج٤ص٤۹۲) وعمدة القاری (ج۱٤ص ۱۶۸)-
۶) (دَ شیعیت اصلی رو پ(ص۲۷۵)-
۷) (تهذیب الاسماء واللغات (ج۲ص۳۶۵) وسیر اعلام النبلاء (ج۳ص۵۰۱)-

عبدالله بن جعفر سره د هغې نکاح اوشوه. (۱)
دَ حضرت ام کلثوم رضی الله عنها او دَ هغې دَ خوئ زیدبن عمر په یوه ورځ انتقال اوشواوحضرت سعیدبن العاص رضی الله عنه چه په هغه ورځوکښې د مدینې منورې امیر وو دَ دواړو جنازه اوکړه. دا سانحه دَ حضرت معاویه رضی الله عنه دَ خلافت په شروع ورځو کښې اوشوه. (۲)

**قوله: فقال عمر: ام سليط احق، وام سليط من نساء الانصار ممن بايع رسول الله صلى الله عليه وسلم:** نو حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه ام سلیط ډیره حقداره ده، او ام سلیط د انصارو په هغه ښځوکښې ده چا چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس بیعت کړې وو.

**حضرت ام سليط رضي الله عنها:** دا حضرت ام قیس بنت عبیدبن زیادبن ثعلبه النجاریه الانصاریه رضی الله عنها ده. (۳)
او دا هم په خپل کنیت سره مشهوره وه. (۴)
هغې سره اوله نکاح ابوسلیط بن ابی حارثه بن قیس نجاری کړې وه او دَ ابوسلیط نه یو خوئ سلیط او یوه لور فاطمه پیدا شوه نو په دې وجه هغې ته ام سلیط وائي. (۵)
دَ ابوسلیط دَ وفات نه پس دا دَ مالك بن سنان په نکاح کښې راغله اودَ هغه نه حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه پیدا شو. (۶)
هغې ته دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دَ بیعت او غزوه احد، خیبر او حنین کښې یوځائ کیدو شرف حاصل دې. (۷)

**قوله: قال عمر: فانها كانت تزفر لنا القرب يوم احد:** حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه ام سلیط به زمونږ دپاره په جنګ احد کښې مشکیزې راوچتولې او راوړلې. دلته حضرت عمر رضی الله عنه دَ څادر په معامله کښې حضرت ام کلثوم رضی الله عنها په مقابله کښې حضرت ام سلیط رضی الله عنها ته ترجیح ورکولو علت ښائي چه حضرت ام سلیط رضی الله عنها به په غزوه احد کښې زمونږ دَ پاره مشکیزې اوچتولې راوړلې نو په دې وجه دَ دغه څادر زیاته حقداره هغه ده.

**قوله: قال ابوعبدالله: تزفر: تخيط:** ابوعبدالله (امام بخاری) فرمائی چه تزفر معنی هغې به ګنډل.
داجمله صرف دَ مستملی په روایت کښې ده باقی نسخ صحیح بخاری کښې دا توضیحی جمله نشته. (۸)

---

۱) (الاصابة (ج٤ص٤٩٢)-
۲) (حواله بالا وطبقات ابن سعد (ج٨ص٤۶۵) کشف الباری کتاب المغازی (ص٢٤٠)-
۳) (طبقات ابن سعد (ج٨ص٤١٩)-
٤) (عمدة القاری (ج١٤ص١۶٨)-
۵) (عمدة القاری (ج١٤ص١۶٨)-
۶) (فتح الباری (ج٧ص٣۶٧)-
٧) (فتح الباری (ج۶ص٧٩) وعمدة القاری (ج١٤ص١۶٩) وطبقات ابن سعد (ج٨ص٤١٨)-
٨) (فتح الباری (ج۶ص٧٩) وعمدة القاری [١٤ص١۶٩)-

امام بخارى رحمه الله دَ زفر معنى دلته ګنډل بيان کړې دى په دې باندې دَ بخارى شارحينو اعتراض کړې دې. حافظ ابن حجر او علامه عينى فرمائى ((ذلك لايعرف فى اللغة، وانما الزفر: الحمل)) (۱) چه دا په لغت کښې غيرمعروف ده او زفر په حقيقت کښې دَ اوچتولو په معنى کښې دې. او قاضى عياض رحمه الله فرمائى ((غيرمعروف فى اللغة)) (۲) او حضرت شيخ الحديث صاحب هم دَ علامه ګنګوهى رحمه الله په حواله سره (مقدمه لامع) کښې دا تفسيرى جمله دَ امام بخارى رحمه الله دَ اوهامونه ګرځولې ده. (۳)

بيا حضرت ګنګوهى رحمه الله هم پخپله دَ دې توجيه ذکر کړيده، فرمائى چه کيديشى دَ امام بخارى رحمه الله دَ پورته ذکر شوى تفسير وجه دا وى ((تزفر)) معنى دَ هغوى په نزد دا چه حضرت ام سليط رضي الله عنها هغه مشکيزې په هغه حال کښې چه هغه خالى شليدلې وې نو دَ ګنډلو دَپاره به ئې راوچتولې، او دا اوچتول دَ مشکيزودَ اوبوڅکلودَپاره نه وى. (۴)

او په دې توجيه سره دَ امام بخارى رحمه الله دا پورتنۍ تفسيرى جمله بالکل صحيح ګرځى.

او نورو شارحينو حضراتو دَ دې اعتراض جواب دا ارشاد فرمائيلې چه امام بخارى رحمه الله غالبًا دلته دَ ابوصالح کاتب الليث اتباع کړيده، دَ ابوصالح نه تزفر په معنى دَ تخرز مروى دې اودَ خرز معنى ګنډل ده. (۵)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف دَ باب دَ ترجمه سره مناسبت دَ حديث باب په دې جمله کښې دې ((فانها كانت تزفر لنا القرب يوم احد)) (۶)

## ۶۶- بَاب: مُدَاوَاةِ النِّسَاءِ الْجَرْحَى فِي الْغَزْوِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخارى رحمه الله دا بيان کول غواړى چه دَ حضور ﷺ په زمانه کښې دَ جنګ په ميدان کښې ښځو به دَ مجاهدينو دَ اسلام مرهم پټۍ او علاج معالجه کوله او دا ثابت دى. (۷)

په وړاندينى باب کښې خودَ ښځومتعلق يوخدمت يعنى مشکيزې اوچتولو او راوړلو ذکر

---

۱) (انظر فتح البارى (ج۶ص۷۹) وعمدة القارى(ج۱٤ص۱۶۹) وقال ابن بطال: قوله: تزفرلنا القرب يعنى تحمل قال صاحب العين ولافعال (اى اخليل النحوى) زفر الحمل زفرا: نهض به والزفر: القربة، والزوافر: الاماء يحملن القرب(ج۵ص۷۹)-

۲) (شرح القسطلانى (ج۵ص۷۵)-

۳) (مقدمة اللامع (ج۱ص۲٤۳) وايضًاانظر لامع الدرارى (ج۷ص۲۳۶)-

٤) (لامع الدرارى (ج۷ص۲۳۵)-

۵) (ارشاد السارى (ج۵ص۸۵)وعمدة القارى (ج۱٤ص۱۶۸)فتح البارى(ج۶ص۷۹)-

۶) (عمدة القارى(ج۱٤ص۱۶۷)-

۷) (عمدة القارى (ج۱٤ص ۱۶۸)-

وو او په دې باب کښې د هغوی سره متعلق یو بل خدمت یعنی د زخمیانو مرهم پټئی وغیره ذکر دې.

[۲۷۲۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ عَنْ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ(۱) قَالَتْ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْقِي وَنُدَاوِي الْجَرْحَى وَنَرُدُّ الْقَتْلَى إِلَى الْمَدِينَةِ [۲۷۲۷، ۵۳۵۵] .

## تراجم رجال

۱- علی بن عبدالله: دا امام ابوالحسن علی بن عبدالله ابن المدینی رحمه الله دې. د دوی حالات ((کتاب العلم باب الفهم فی العلم)) لاندې تیرشوی دی. (۲)

۲- بشر بن المفضل: دا ابواسماعیل بشر بن المفضل بن لاحق رقاشی رحمه الله دې. د ده تذکره ((کتاب العلم باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: رب مبلغ اوعی من سامع)) لاندې راغلې ده. (۳)

۳- خالد بن ذکوان: دا ابوالحسن خالد بن ذکوان المدنی رحمه الله دې. (۴)

۴- الربیع بنت معوذ رضی الله عنها: دا انصاری صحابیه حضرت الربیع بنت معوذ رضی الله عنها ده. (۵)

**قوله:** قالت: کنا مع النبی صلی الله علیه وسلم نسقی، ونداوی الجرحی ونرد القتلی الی المدینة: حضرت ربیع بنت معوذ رضی الله عنها فرمائی چه مونږ نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره (په یوغزوه کښې شریك وو) په زخمیانو یاندې به مو اوبه څکولې او د هغوی مرهم پټئی به موکولې او کوم خلق به چه شهیدان شو هغه به مو مدینې منورې ته اوچتولو راوړلو.

دباب په حدیث کښې دا راغلی دی، د نامحرم سړی مرهم پټئی اودې قسم نورخیزونه مثلاً د بیمار خیال به موساتلو او موتی (شهداء) د میدان جنګ نه مدینې منورې ته منتقل کول.

**یواعتراض اود هغې جواب:** اوس سوال دا پیدا کیږی چه دا څنګه جائز شو چه ښځې د نامحرم سړو پټئی کوی، څکه چه په دې کښې د پردو سړو او ښځو ګډوډوالې لازم راځی؟(۶)

---

۱) (قوله: عن الربیع..." الحدیث اخرجه البخاری ایضًا کتاب الجهاد باب ردالنساء الجرحی والقتلی رقم (۲۸۸۳) وکتاب الطب باب هل بداوی الرجل المراة والمراة الرجل؟ رقم (۵۶۷۹) ولم یخرجه غیره من الائمة الستة-

۲) (کشف الباری (ج۳ص۲۹۷)-

۳) (کشف الباری (ج۳ص۲۲۲)-

۴) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الصوم باب صولم الصبیان-

۵) (حواله بالا-

۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۸)-

شارحینود دې اعتراض دوه جوابونه لیکلی دی:

① دا احتمال چه مذکوره واقعه دَ حجاب دَ نازلیدلو نه اول وی نو څه حرج نشته. (۱)

② علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه ممکن ده چه صحابیات دَ علاج په دوران کښې سړو له دَ لاس اوړلو نه بغیر علاج کوی، هغه داسې چه دوائی خوصحابیاتو تیاروله او په متاثره حصه باندې هغه دوائی څوك بل سړې یا محرم ښخه لګوی، په دې صورت کښې هم لاس لګول نشی کیدې. (۲)

**دَ حدیث باب نه مستنبط یوه فائده:** دَ باب دَ حدیث نه دا معلومه شوه چه دَ ضرورت او حاجت په وخت کښې اجنبی سړې یا ښځه دَ یو بل علاج معالجه کولې شی، لیکن داخبره دې خامخاپه خیال کښې ساتې چه دَ علاج په دوران کښې دَ متاثره حصې نه دَ نظر یا لاس لګولو وغیره نه تجاوز اونه کړی. صرف هغه متاثره حصې ته دې ګوری او لاس دې اوړی (۳)

دَدې وجه داده چه علاج ضرورت دې اودا قاعده مسلمه ده چه(الضرورات تبیح المحظورات)(۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث مطابقت دَ باب دَ ترجمه سره بالکل واضح دې او هغه دَ حدیث په دې جمله کښې دې: ((ونداوی الجرحی)) چه مونږ به دَ زخمیانو علاج معالجه کوله. (۵)

## ۶۷-بَاب: رَدِّ النِّسَاءِ الْجَرْحَى وَالْقَتْلَى إِلَى الْمَدِينَةِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ دې باب لاندې په میدان جنګ کښې دَ ښځو متعلق یو بل خدمت یعنی میدان جنګ نه زخمیان او شهیدان منتقل کولو بیان کوی. (۶)

په حدیث باب کښې دی چه ښځو به زخمیان راوچتول راوړل. خو چه کوم مقتولین او شهداء وو هغوی به ئی مدینې منورې ته رسول.

[۲۷۲۷] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ خَالِدِ بْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ(۷) قَالَتْ كُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْقِي الْقَوْمَ وَنَخْدُمُهُمْ وَنَرُدُّ الْجَرْحَى وَالْقَتْلَى إِلَى الْمَدِينَةِ [ر:۲۷۲۶]

## تراجم رجال

۱-مسدد: دا مسدد بن مسرهد بم مسربل رحمه الله دې. دَ دوی مختصر تذکره ((کتاب الایمان باب

---

۱) (فتح الباری (ج۱۰ص۱۳۶)-
۲) (ارشاد الساری (ج۵ص۸۵)-
۳) (فتح الباری (ج۱۰ص۱۳۶) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۸) وشرح ابن بطال (ج۵ص۷۹)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص۸۰)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۸)-
۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۶۹)-
۷) (قوله: عن الربیع بنت معوذ رضی الله عنها: الحدیث مرتخریجه انفا فی الباب السابق-

من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه)) لاندې تيره شويده.(١)
دَ سندنورو رجال حواله په تيرشوی باب په سند کښې تيرشو دی.

**قوله: قالت: كنا نغزو مع النبى صلى الله عليه وسلم فنسقى القوم ونرد الجرحى والقتلى الى المدينة:**

**د نرد الجرحى والقتلى معنى اودَ دې احتمالات:** علامه گنگوهی رحمه الله فرمائی :

((ونرد الجرحى والقتلى)) کښې دوه احتماله دی.

① که قتلی نه مراد حقیقی مقتولین او شهداء وی او لفظ ((قتلى)) په حقیقت باندې محمول کړېشی نو هغه واپس کړولو وجه به دا وی چه دَ هغوی تدفین وغیره کښې مشغولیت چونکه په قتال کښې خلل پیدا کولو سبب دې، په دې وجه دا شهداء او مقتولین به ښځو دَ میدان جنگ نه مدينې منورې ته منتقل کول.(٢)

ليکن په دې معنى او احتمال باندې دَ دې روايت په وجه دا اشکال کيږی کوم چه امام احمد، ابوداؤد، ترمذی، نسائی او دارمی رحمه الله وغيره نقل کړی دی، دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی :

((لما كان يوم احد، جاءت عمتى بابى لتدفنه فى مقابرنا، فنادى منادى رسول الله صلى الله عليه وسلم: ردوا القتلى الى مضاجعهم))، (اللفظ للترمذى)(٣)

دَ دې روايت نه معلوميږی چه نبى اکرم صلى الله عليه وسلم شهيدان مدينې منورې ته منتقل کولونه منع فرمائيلې وه او هغوی دَ خپل شهادت ځائ ته واپس کولو حکم ورکړې وو. اودَ باب په حديث کښې ذکرشوې روايت برخلاف شهيدان مدينې منورې ته دَ منتقل کولو ذکر دې؟

حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زکريا کاندهلوی رحمه الله دَ دې اشکال جواب ورکولو سره فرمائی چه بهتر هم دغه ده چه ردالقتلی نه هغوی دَ جنگ دَ ځائ نه قبرونوطرف ته منتقل کول مرادواخستې شی اودَدې تائيد دَشرح القسطلانی دَدې عبارت نه کيږی:((قال السفاقسى: كانوا يوم احد يجعلون الرجلين والثلاثة من الشهداء على دابة، وتردهم النساء الى موضع قبورهم))(٤)

سفاقسی رحمه الله فرمائی چه دَ غزوه احد په موقع صحابه کرامو دوه يا درې شهيدان په يو

---

١) (کشف الباری (ج٢ص٢)-
٢) (لامع الدراری (ج٧ص٢٣٦)-
٣) (الحديث اخرجه الامام احمدفی مسنده (ج٣ص٢٩٧) وابوداؤدفی سننه ابواب الجنائز باب فی الميت يحمل من ارض الى ارض رقم (٣١٦٥)والترمذى فی جامعه ابواب الجهاد باب (فی ماجاء فی دفن القتيل فی مقتله) رقم (١٧١٧)والنسائى فی سننه ابواب الجنائز باب اين يدفن الشهيد؟ رقم (٢٠٠٦-٢٠٠٧) والدارمی فی سننه (ج١ص٣٦) المقدمة باب ما اکرم به النبی صلى الله عليه وسلم فی برکة طعامه رقم (٤٣) والخطيب التبريزی فی مشکاة المصابيح کتاب الجنائز باب دفن الميت الفصل الثانی رقم (١٧٠٤)-
٤) (ارشاد السارى (ج٥ص٨٥) وعزاالعلامة العينى هذاالقول الى ابن التين (ج١٤ص١٦٩)-

ځاروی کیخودل او ښځو به هغه د هغوی قبرونو ته منتقل کول (۱)

او پاتې شو ((الى المدينة)) الفاظ نو علامه قسطلانی رحمه الله په قول دا الفاظ د ابوذر په نسخه کښې نشته.(۲)

اودَ دې په جواب کښې داهم وئیلی شی چه ((الى المدينة)) الفاظوتعلق جرحیٰ سره دې نه چه دَ قتلیٰ نه، اودَ دې توجیه په صورت کښې معنی بالکل صحیح ده. یعنی ښځو به زخمیان مدینې منورې ته منتقل کول نه چه شهیدان.(۳)

یابه دا وئیلې شی چه دَ حضرت ربیع بنت معوذ رضی الله عنها حدیث کوم چه په باب کښې ذکر دې دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دَ ممانعت نه وړاندې دې، یعنی دَ حضور صلی الله علیه وسلم دَ منع کولو نه مخکښې دې ښځو شهیدانِ مدینې منورې ته منتقل کول لیکن روستو هغوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه شهیدان هم دَ هغوی دَ شهادت په ځائ کښې خښ کړئی. دغه شان دَ سنن او بخاری په روایاتوکښې تطبیق کیږی.. (۴)

②دوئم احتمال دا دې چه ((قتلی)) نه هغه زخمیان مراد دې کوم چه مرګ ته نزدې وی، پاتې شو هغه زخمی صحابه کرام دَ چا زخمونه چه په نزدې راتلونکی وخت کښې دَ جوړیدو احتمال وو، هغه ئی هم په میدان جنګ کښې باقی پریخودې وو چه دَ جوړیدو نه پس بیا په جنګ کښې شریك شی. (۵)

خو په دې احتمال باندې دا اشکال کیږی چه که ((قتلی)) نه مراد زخمیان دی نو بیا دَ جدا "جرحی" ذکر کولو څه ضرورت دې؟

دَ دې اشکال په جواب کښې دا وئیلې شی چه په حدیث کښې "جرحی" نه مراد هغه کسان دی چه مرګ ته نزدې نه وی اود هغوی دَ واپس کولو نه دَ هغوی خیموته منتقل کول وی. (۶)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث دَ باب دَ ترجمه سره مطابقت واضح دې، چه دَ حدیث په دې جمله کښې دې. ((وترد الجرحى والقتلى الى المدينة)) (۷)

## ۶۸- بَاب: نَزْعِ السَّهْمِ مِنْ الْبَدَنِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه ابن المنیر اسکندرانی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری دَ یو وهم

(۱) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲۳۶)-
۲) (ارشاد الساری (ج۵ص۸۵)-
۳) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲۳۶)-
٤) (حواله بالا (ص۲۳۷)-
۵) (لامع الدراری (ج۷ص۲۳۷)-
۶) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲۳۷)-
۷) (عمدة القاری (ج١٤ص١۶۹)-

لرې کولو د پاره دا باب قائم کړيدې، چاته دا وهم کيديشي چه شهيدکه په غشي لګيدلې دې نو هغه به د شهيدد بدن نه نشي راويستلې بلکه غشې هم په هغه حالت باندې پريخوديشي لکه څنګه چه هغه د وينو رنګ بدن سره د خنبولو حکم ورکړې شوې دې د پاره چه د قيامت په ورځ هغه هم په هغه حالت کښې د الله تعالى دربارکښې حاضر شى، نو امام بخارى رحمه الله د دې توهم ازاله فرمائى چه داسې څه خبره نشته او حکم هم دغه دې چه کله تاسو،شهيد خښ کړئى نو د هغه زغره وغيره کوزه کړئى او وسله کومه چه د هغه په بدن باندې ده هغه جداکړئى نو غشې به هم راويستې شى. (۱)

د علامه مهلب رحمه الله موقف بل دې هغه فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دلته د انسان د بدن نه د غشى ويستلو جواز بيانوى، کيديشى چه د دې د راويستلو سره د هلاکت او مرګ انديښنه وى او دا خپل ځان پخپله په هلاکت کښې د اچولو برابر نه دى، او د دې کار نه د نفع او صحت اميدهم وى، هم د دې مثل زخم خيرل او دا شلول او په اوسپنه وغيره باندې داغ لګول يعنى هغه ټول کارونه د کومو په ذريعه چه علاج کولې شى.

مقصد دا شو لکه څنګه چه د زخم خيرل، او په بدن باندې د علاج په غرض داغ لګول جائز دى دغه شان د بدن نه غشې ويستل هم جائز دى. (۲)

حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمه الله دې دوئم يعنى د علامه مهلب رحمه الله قول ته ترجيح ورکړيده ځکه چه د باب حديث د هغه سرې متعلق دې د چانه چه غشې د هغه د ژوند په حالت کښې اوويستلې شو اود علامه ابن المنير رحمه الله قول (نزع السهم بعد الموت) سره متعلق دى (۳)

[۲۸۸۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى (۴) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رُمِيَ أَبُو عَامِرٍ فِي رُكْبَتِهِ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ قَالَ انْزِعْ هَذَا السَّهْمَ فَنَزَعْتُهُ فَنَزَا مِنْهُ الْمَاءُ فَدَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ أَبِي عَامِرٍ [۶۰۲۰، ۴۳۰۶]

## تراجم رجال

۱- محمدبن العلاء: دا ابوکريب محمد بن العلاء بن کريب همدانى کوفى رحمه الله دې.

۲- ابواسامه: دا ابواسامه حمادبن اسامه بن زيدقرشى کوفى رحمه الله دې.

۳- بريدبن عبدالله: داابوبرده بريدبن عبدالله بن ابى برده ابى موسى الاشعرى کوفى رحمه الله

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۸۱)-

۲) (شرح ابن بطال(۵ص۸۱)-

۳) (فتح البارى (ج۶ص۸۱)وعمدة القارى (۱۴ص۱۶۹)-

۴) (قوله: عن ابى موسى رضى الله عنه: الحديث اخرجه البخارى ايضًا كتاب المغازى باب غزوة اوطاس رقم (۴۳۲۳) وكتاب الدعوات باب الدعاء عندالوضوء رقم (۶۳۸۳) ومسلم كتاب فضائل الصحابة باب من فضائل ابى موسى وابى عامر الاشعريين رقم (۶۴۰۶)-

دي. دَ دي دريوارو حضراتو تذکره ((کتاب العلم باب فضل من علم وعلم)) لاندې تيره شوې.(۱)

۴-ابوبردة: دا دَ حضرت ابوموسى الاشعرى رضی الله عنه خوئ دې، دَ ده تذکره ((کتاب الايمان باب اى الاسلام افضل؟)) په ذيل کښې راغلې ده.(۲)

۵- ابوموسى: دا مشهور صحابى رسول، حضرت ابوموسى الاشعرى رضی الله عنه دې، دَ هغوى حالات هم د مذکوره باب لاندې تيرشوى دى.(۳)

**قوله: قال: رمى ابوعامر فى رکبته فانتهيت اليه، فقال: انزع هذا السهم، فنزعته:** حضرت ابوموسى اشعرى رضی الله عنه فرمائى چه دَحضرت ابوعامرزنگون په غشي اولگيدو نوزه هغه له لاړم،هغه ماته اووئيل چه دا غشي راوباسه،نوماهغه راوويستلو.

په حديث باب کښې ذکر شوې واقعه دَ غزوه اوطاس سره متعلق ده، دلته امام بخارى رحمه الله دَ ابو موسى اشعرى رضی الله عنه حديث په اختصار سره بيان کړو، همدغه حديث هغوى په کتاب المغازى کښې تفصيل سره نقل کړيدې هلته دَ دې تشريح هم راغلې ده. (۴)

**قوله: حضرت ابوعامر رضی الله عنه:** دا دَ نبى اکرم صلی الله علیه وسلم يو جانثار صحابى، دَ حضرت ابوموسى اشعرى رضی الله عنه محترم تره رضی الله عنه دې.دَ هغه نوم عبيد بن سليم بن حضاربن حرب دې، قبيله اشعرين اودبن زيد سره دَ هغه تعلق دې. (۵)

او على ابن المدينى دَ هغه نوم عبيدبن وهب او ابونعيم اصفهانى رحمه الله دَ هغه نوم عبدالله بن وهب ليکلې چه صحيح نه دې.(۶)

ددوى شميرد نبى اکرم صلی الله علیه وسلم په کبارو صحابه کراموکښې دې، ابن قتيبه دَ هغوى ذکردَ حبشې طرف ته هجرت کونکو کښې کړيدې، لکه دا قديم الاسلام صحابى وو، هغوى نور ليکلى دى چه دې په شروع کښې نابينا وو بيا بينا شو.(۷)

په غزوه حنين کښې چه کله مشرکانو ته شکست اوشو نو په هغوى کښې ډير خلق اوتختيدل او اوطاس ته راغلې وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوى ته ماتې ورکولوډپاره دَ حضرت ابوعامر رضی الله عنه په مشرئى کښې يوه ډله روانه کړه او هم په دې غزوه اوطاس کښې هغه شهيد شو، اودَ هغه دَ شهادت سبب هم هغه غشي جوړشوې ووچه دَ مشهور مشرک دريدبن صمه ځوئ سلمه بن دريد ويشتې وو چه دَ هغه په زنگون کښې اولگيدلو لکه چه دَ باب په حديث

---

۱) (کشف البارى (ج ۳ص ٤۱۷)-
۲) (کشف البارى (ج ۱ص ۶۹۰)-
۳) (حواله بالا-
٤) (انظر کشف البارى کتاب المغازى (ص ۵٤۳)-
۵) (الاستيعاب بهامش الاصابة (ج ٤ص ۱۳۵)والاصابة (ج ٤ص ۱۶۳) واسدالغابة(ج ۶ص ۱۸۳)-
۶) ( الاستيعاب بهامش الاصابة (ج ٤ص ۱۳۵) واسدالغابة(ج ۶ص ۱۸۳)ومعرفت الصحابة (ج ٤ص ۵۱۷)-
۷) ( (الاستيعاب بهامش الاصابة (ج ٤ص ۱۳۵)والاصابة (ج ٤ص ۱۲۳) واسدالغابة(ج ۶ص ۱۸۳)-

شريف كښې هم مذكور دي بيا روستو حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه د هغه د قاتل كار خلاص کړو. (۱)

او بعض حضراتو غښې ويشتونكې دريدبن صمه ګرځولې دې خودا صحيح نه دى ځكه چه دريد هغه وخت كښې ډير بوډا شوې وو د هغه عمر د سلوكالونه زيات شوې وو اود بوډا والى د وجه هغه جنګ كښې شركت نه وو كړې، نو ابن الاثير رحمه الله فرمائى:

((وقيل: ان دريدًا هوالذى قتل اباعامر، وقتله ابوموسى، وذلك غلط، فان دريدًا انما حضر الحرب شيخًا كبيرا ولم يباشر الحرب لكبره)) (۲)

**قوله: فنزامنه الماء، فدخلت على النبى ﷺ فاخبرته، فقال: اللهم اغفر لعبيد ابى عامر:** نود زخم نه اوبه راوتلې او د نبى اكرم ﷺ په خدمت كښې حاضرشو او پوره واقعه ئې عرض كړه نو هغوى ﷺ دعا اوكړه اې الله د عبيد ابوعامر مغفرت نصيب كړه.

((نزا)) د باب "نصر" نه دې د دې مصدر نزوا و نزوانًا دې اود دې معنى راوچتيدل دى خود علامه ابن التين په قول دلته مراد د اوبو راوتل دى.(۳)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث د باب د ترجمه سره مطابقت ظاهر دې او هغه په دې جمله كښې دې ((انزع هذا السهم فنزعته))(۴)

## ۶۹- بَاب: الْحِرَاسَةِ فِي الْغَزْوِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله په قول امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د اسلام د لښكر د حفاظت اود الله تعالى په لاركښې څوكيدارئى كولو فضيلت بيانول غواړى. (۵)

دا هم وئيلى شى چه امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى چه مسلمانانو له غافل نه دى اوسيدل پكار اود خپل حفاظت انتظام كول پكار دى. معلومه نه ده چه دښمن به كله او د كوم طرف نه حمله كوى؟ دې د پاره د حراست او حفاظت ښه اهتمام كول پكار دى.

۲۷۲۹: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ خَلِيلٍ أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا (۶) تَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهِرَ فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ قَالَ لَيْتَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِي صَالِحًا يَحْرُسُنِي اللَّيْلَةَ إِذْ سَمِعْنَا

---

۱) (حواله بالا و كشف البارى كتاب المغازى (ص۵۴۲)-
۲) (اسدالغابة (ج۶ص۱۸۳) تنبيه: ابوعامر اشعرى رضي الله عنه د نوم يو بل صحابى هم دې خوهغه د ابوموسى اشعرى رضي الله عنه رور دې اود هغه نوم هانى يا عبدالرحمن يا عبيد ياعباد بن قيس دې-
۳) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۶۹) وشرح ابن بطال (ج۵ص۸۱)-
۴) (عمدة القارى (۱۴ص۱۶۹)-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۸۱) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۷۰)-
۶) (قوله: عائشه رضى الله عنها: الحديث اخرجه البخارى ايضًا كتاب التمنى ...[بقيه حاشيه په بل مخ...

صَوْتَ سِلَاحٍ فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقَالَ أَنَا سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ جِئْتُ لِأَحْرُسَكَ وَنَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۶۸۰۴]

## تراجم رجال

۱- اسماعيل بن خليل: دا ابوعبدالله اسماعيل بن خليل كوفى رحمه الله دى. (۱)

۲- على بن مسهر: دا ابو الحسن على بن مسهر القرشى الكوفى رحمه الله دى.(۲)

۳- يحيى بن سعيد: دا مشهور تابعى محدث، يحيى بن سعيد الانصارى رحمه الله دې. دَ دوى حالات "کتاب الایمان باب صوم رمضان احسابًا من الایمان" لاندې تیرشوى دى. (۳)

۴- عبدالله بن عامر بن ربيعه: داحضرت عبدالله بن عامر ربيعه رضى الله عنهما دى. (۴)

۵- عائشه رضى الله عنها: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابى بكر الصديق رضى الله عنهما ده،د دوى حالات "بدء الوحى" د دوئم حديث لاندې تيرشوى دى.(۵)

"تقول: كان النبى صلى الله عليه وسلم سهر، فلما قدم المدينة قال: ليت رجلا من اصحابى صالحا يحرسنى الليلة" حضرت عبدالله بن عامر بن ربيعه رضى الله عنه فرمائى چه ما دَ حضرت عائشه رضى الله عنها نه واوريدل هغوى بيان فرمائيلو چه نبى اكرم صلى الله عليه وسلم (يوه شپه) په بيدارئى كښې تيره كړه،مدينې ته په رسيدو باندې هغوى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه كاش زما په صحابه كرامو كښې يو صالح داسې وې چه دَ شپې زمونږ څوكيدارى اوكړى.

**دَ رواياتو په مينځ كښې تعارض اودَ هغې حل:** دَ باب په روايت كښې هم دا راغلى دى چه حضور صلى الله عليه وسلم يوه شپه په بيدارئى كښې تيره كړه، په دې كښې دَ بيدارئى زمانه نه ده بيان كړې. نو دَ حديث ظاهرى مفهوم خوهمدغه دې چه دَ بيدارئى واقعه په مدينه منوره كښې دَ راتلونه وړاندې ده اودَ هغوى صلى الله عليه وسلم قول "ليت رجلا من اصحابى صالحا..." روستو دې.

خو همدغه روايت امام مسلم رحمه الله هم په خپل "صحيح" كښې ذكر كړيدې، په دې كښې ليث عن يحيى بن سعيد په طريق باندې داسې مروى دى: "سهر رسول الله صلى الله عليه وسلم مقدمه المدينة ليلة فقال: ليت رجلا صالحا من اصحابى يحرسنى الليلة" (۶)

---

...بقيه حاشيه] باب قوله صلى الله عليه وسلم:ليت كذاكذا رقم (۷۲۳۱) ومسلم كتاب فضائل الصحابة باب فضل سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه رقم (۶۲۳۰-۶۲۳۲) والترمذى ابواب المناقب باب مناقب سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه رقم(۳۷۵۶)

۱) (دَ دوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب الحيض باب مباشرة الحائض-

۲) (حواله بالا-

۳) (كشف البارى (ج۲ص۳۲۱)وايضًا انظر كشف البارى(ج۱ص۲۳۸)-

۴) (دَ دوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب تقصير الصلاة باب صلاة التطوع على الدواب....-

۵) (كشف البارى (ج۱ص۲۹۱)-

۶) (صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة، باب فضل سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه رقم (۶۲۳۱)-

نو د صحيح مسلم روايت په دې باب كښې صريح دې چه د بيدارئى او قول دواړو زمانه د مدينې منورې د راتلونه پس ده،(۱) د دې دپاره به د مسلم روايت د بخارى د روايت په مقابله كښې راجح وى ځكه صريح په غير صريح باندې راجح وى. د صحيح مسلم چه كوم روايت دې د هغې تائيد د امام نسائى د دې روايت نه كيږى چه هغوى د **ابواسحاق الفزارى عن يحيى بن سعيد** په طريق سره نقل كړيدې.په دې كښې دى: "**كان رسول الله صلى الله عليه وسلم فى اول ما قدم المدينة يسهر من الليل**" (۲)

د امام بخارى رحمه الله د باب حديث د متن متعلق به دا اووئيلې شى چه په دې كښې تقديم او تاخير دې. متن په اصل كښې داسې دې: ((**سمعت عائشة رضى الله عنها تقول: لما قدم النبى صلى الله عليه وسلم المدينة سهر ليلة**))(۳)

دغه شان د ټولو رواياتو په مينځ كښې به تطبيق اوشى ځكه چه حديث يو او راوى هم يوه يعنى حضرت عائشه رضى الله عنها ده. (۴)

**د قدوم مدينه نه څه مراددې؟**: اوس دلته په دې خبره هم پوهه شنى چه په حديث كښې قدوم مدينه نه نبى عليه السلام مدينې ته اولنى تشريف راوړل چه د هجرت نه پس شوى مراد نه دې ځكه چه هغه وخت حضرت عائشه رضى الله عنها حضور اكرم صلى الله عليه وسلم كره نه وه، نه حضرت سعدبن ابى وقاص رضى الله عنه وو، بلكه د يو سفروغيره تشريف راوړل مراد دى. (۵)

د دې دليل هغه روايت دې كوم چه امام احمد په خپل مسند كښې "يزيدبن هارون عن يحيى بن سعيد" په طريق سره نقل كړې دې، د هغې الفاظ دا دى:

"**ان رسول الله صلى الله عليه وسلم سهر ذات ليلة وهى الى جنبه قالت: فقلت: ماشانك يا رسول الله؟....**"(۶)

يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه شپه بيدار پاتې شو او حضرت عائشه د هغوى صلى الله عليه وسلم په اړخ كښې وه، حضرت عائشه فرمائى،ما اووئيل يا رسول الله تاسو ته څه پريشانى ده؟

معلومه شوه چه په حديث كښې قدوم مدينه نه د هجرت نه پس ړومبې قدوم مراد نه دې بلكه دا د يو بلې موقع واقعه ده.

**قوله: اذا سمعنا صوت سلاح، فقال: من هذا؟ فقال: انا سعد بن ابى وقاص جئت لاحرسك فنام النبى صلى الله عليه وسلم**: په دې وخت كښې مونږ د وسلې آواز واوريدو نو نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل دا څوك دى؟ نو جواب وركړيشو زه سعدبن ابى وقاص يم ستاسو د حفاظت د پاره راغلې يم، نو نبى عليه السلام اوده شو.

---

۱ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٧٠) وفتح البارى (ج٦ص ٨٢) وارشادالسارى )۵ص ۸۶)-
۲ ) (سنن النسائى الكبرى (ج۵ص ۶۱)كتاب المناقب سعدبن مالك رضى الله عنه رقم (۸۲۱۷/۳)-
۳ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٧٠)-
٤ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٧٠)-
۵ ) (فتح البارى (ج ١ص ٨٢) وعمدة القارى (ج ١٤ص ١٧٠) وشرح القسطلانى(ج۵ص ۸۶)-
۶ ) (مسندالامام احمدبن حنبل (ج۶ص ١٤١)-

په صحیح مسلم کښې د لیث په طریق کښې دا هم ذکر دی چه رسول الله ﷺ د سعدبن ابی وقاص نه تپوس اوکړو چه ولې راغلې ئی؟ نو هغه جواب ورکړو "وقع في نفسي خوف على رسول الله صلى الله عليه وسلم، فجئت احرسه، فدعاله رسول الله صلى الله عليه وسلم"(۱)
زما په زړه کښې د رسول الله ﷺ متعلق دا اندیښنه پیدا شوه نو زه د هغوی د حفاظت د پاره حاضرشوې یم، نو رسول الله ﷺ هغه ته دعاګانې اوکړې.
**یوسوال اود هغې جوابونه:** اوس دلته یو سوال دا پیداکیږی چه په قرآن کریم کښې خو الله تعالی دا فرمائیلې دی ﴿والله یعصمك من الناس﴾ اوالله تعالی به د خلقو د شر نه د ستاسو ﷺ حفاظت کوی نود الله تعالی د خصوصی حفاظت اونګرانئی کښې د کیدلو باوجود د نور حفاظت څه ضرورت دې؟(۲)
علامه ابن بطال رحمه الله د دې پورتنی سوال باره کښې جواب ورکړیدې چه په حدیث کښې دا مذکوره واقعه د قرآن کریم د دې پورتنی آیت نه وړاندې ده. حدیث (۳) کښې راغلی دی چه کله دا پورتنې آیت نازل شو نو نبی کریم ﷺ د شپې خپل حفاظت پریخودې وو.(۴)
علامه ابن بطال رحمه الله د قول خلاصه دا ده چه په حدیث باب اودغه شان نورو احادیثوکوم کښې چه نبی اکرم ﷺ د حفاظت او نګرانئی ذکر کړیدې هغه په دې پورتنی آیت سره منسوخ دی. (۵)
خو علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه د باب حدیث ته د منسوخ وئیلو هډو ضرورت نشته ځکه چه په آیت مبارك کښې څه داسې خبره نشته چه د حراست او حفاظت نفی کوی لکه چه الله تعالی خپل دین په نورو ادیانو باندې غالب ظاهرولوسره د دې خبرې نفی نه کوی چه قتال اوکړئی او د هغې د پاره لښکر تیار کړئی. (۶)
نوپه دې صورت کښې عصمة نه مراد فتن، ګمراهی اوداځان د ضائع کیدو نه حفاظت دې.(۷)
**د نبی اکرم ﷺ محافظینِ صحابه کرام:** په روایاتوکښې د نبی کریم ﷺ حفاظت کونکی صحابه کرامو تعداد تقریباً د شلو پورې مروی دی. په کوموکښې چه د بعض صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نومونه دا دی:

---

۱) (صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب فضل سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه رقم (۶۲۳۱)-
۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۷۰)-
۳) (وقد روی الترمذی من طریق عبدالله بن شقیق عن عائشه رضی الله عنهاقالت:کان النبی صلی الله علیه وسلم یحرس حتی ینزلت هذه الاية ﴿والله يعصمک من الناس﴾ فاخرج رسول الله صلی الله علیه وسلم رأسه من القبة. فقال لهم: أيهاالناس انصرفوافقد عصمنی الله. الجامع للترمذی کتاب تفسیرالقران باب:ومن سورة المائدة رقم (۳۰٤۶)-
٤) (شرح ابن بطال(ج۵ص۸۲)-
۵) (فتح الباری (ج۶ص۸۲)-
۶) (حواله بالاوعمدة القاری(ج ۱٤ص ۱۷۰)-
۷) (فتح الباری (ج۶ص۸۲)-

حضرت سعدبن معاذ، محمدبن مسلمه، زبیر، ابوایوب الانصاری، ذکوان بن عبدقیس، درع السلمی، محجن بن ادرع، عبادبن بشیر، عباس بن عبدالمطلب او ابوریحانه رضی الله عنهم اجمعین. (۱)

**دَحدیث نه مستنبط فائدې**: علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه دَ حدیث نه دا خبره فائده ورکونکې معلومه شوه چه بادشاه له دَ دښمن دَ حفاظت او دَ خپل بچاؤ دَ پاره حفاظت او څوکیدارئ انتظام کول پکار دی. تاسو دَ رسول الله ﷺ فعل ته اوګورئ سره ددې چه هغوی ته دا خبره معلومه وه چه الله تعالی به دَ هغوی په ذریعه خپل دین پوره کوی اود هغوی په ذریعه به دَ الله تعالی کلمه اوچتوی (او ښکاره خبره ده چه ترکومې دَ رسالت دَ ادائیګئ فریضې کار پوره شوې نه وی نو هغوی ته څوك نقصان نشی رسولې) لیکن نبی علیه السلام دَ خپل حفاظت اهتمام کولو دې دَ پاره چه دښمن ناڅاپی حملې اونه کړی اود حمله نه اود هغې دَ تکلیفونونه حفاظت ممکن شی. (۲)

بله دا خبره هم فائده منده شوه چه خلقو له پکار دی چه هغوی دې پخپله هم دَ خپل بادشاه دَ حفاظت انتظام او اهتمام اوکړی، چه چرته داسې نه وی چه په بې خبرئ کښې دښمن ته دَ څه قسم نقصان رسولو موقع ملاؤ نشي. (۳)

**دَ حدیث دَ باب دَ ترجمه سره مطابقت**: دَ باب ترجمه سره دَ حدیث مطابقت په دې جمله کښې دی. "من یحرسنی اللیلة..."

لیکن په دې دا اعتراض کیږی چه په حدیث کښې خو "الغزوفی سبیل الله" دَ سره نه څه ذکر نشته، په دې کښې مذکوره واقعه خو دَ حضر ده نه چه دَ غزوې او ترجمه غزوة فی سبیل الله ده؟

دَ دې اعتراض په جواب کښې علامه عینی رحمه الله فرمائی چه سفر وی که حضر نبی اکرم ﷺ به همیشه دَ الله تعالی په لار کښې وو، نو په دې وجه دَ دې اعتراض هیڅ معنی نشته. (۴)

۲۷۳۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۵) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ وَالْقَطِيفَةِ وَالْخَمِيصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ لَمْ يَرْضَ قَالَ ابوعبدالله لَمْ يَرْفَعْهُ إِسْرَائِيلُ وَمُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ عَنْ أَبِي حَصِينٍ

---

۱) (شرح القسطلانی (ج۵ص۸۶) وحاشیة السهارنفوری علی صحیح البخاری (ج۲ص۱۰۷۴)-

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۲)-

۳) (حواله بالا-

۴) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۷۰)-

۵) (قوله: عن ابی هریرة رضی الله عنه: الحدیث اخرجه البخاری ایضًا (ج۱ص۴۰۴) کتاب الجهاد نفس الباب الذی نحن فیه رقم (۲۸۸۷) و (ج۲ص۹۵۲) کتاب الرقاق باب مایتقی من فتنة المال رقم (۶۴۳۵) وابن ماجه أبواب الزهد باب فی المکثرین رقم (۴۱۳۵-۴۱۳۶)-

# تراجم رجال

۱- يحيى بن يوسف: دا ابويوسف يا ابوزكريا يحيى بن يوسف بن ابى كريمة الزمى الرقى رحمه الله دي. (۱)

دَ هغوی تعلق دَ خراسان يو کلی "زم" سره وو ليکن روستو هغوی په بغداد کښې استوګنه اختيار کړه. (۲)

دا دَ عبدالله بن ادريس، عبيدالله بن عمروالرقى، عيسى بن يونس، ابو معشرالمدنى، ابوبکربن عياش، خلف بن خليفه، ابولاحوص اوامام وکيع رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت کوی. او دَ هغوی نه روايت کونکوکښې امام بخارى، ابن ماجه، ابوزرعه دمشقى، ابوحاتم رازى، محمدبن اسحاق صنعانى، عثمان بن خرذاذ، عباس الدورى، حنبل بن اسحاق، عبدالله بن حماد آملى، ابوبکربن ابى الدنيا ،محمدبن غالب تمتام، ابوبکربن ابى خيثمه او احمدبن حسن بن عبدالجبار صوفى رحمهم الله وغيره شامل دى. (۳)

ابن ابى حاتم رحمه الله فرمائى "سألت أبي عنه، فقال: كتبنا عنه بالرى قديما ثم كتبنا عنه ببغداد وسألت أحمدبن حنبل عنه، فأثنى عليه، قلت لأبي: ماقولك فيه؟قال: هوعندى صدوق" (۴)

دَ دې عبارت خلاصه دا ده چه ابن ابى حاتم فرمائى ما دَ خپل پلار نه دَ هغه باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اووئيل چه مونږ دَ هغه نه رى او بغداد دواړو ځايونوکښې حديث اوزيدلى دى، امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دَ هغه تعريف کړيدې، ما دَ خپل پلار ابوحاتم نه تپوس اوکړو نو هغوی اووئيل چه هغه زما په نزد صدوق دې.

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى ((هوثقة))(۵)

امام ذهبى رحمه الله هغوى په دې الفاظوسره ياد کړى دى.((الامام الحافظ الحجة ....وكان من كبار المحدثين الرحالة))(۶)

ابن قانع رحمه الله فرمائى ((وكان ثقة))(۷)

او ابن حبان رحمه الله هم هغه په کتاب الثقات کښې ذکر کړيدې. (۸)

په اصحاب اصول سته کښې دَ امام بخارى رحمه الله نه علاوه امام ابن ماجه هم دَ هغه نه روايات

---

۱) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص۶۰) وطبقات ابن سعد (ج۷ص۳۴۸)-

۲) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص۶۰-۶۱) وعمدة القارى(ج۱۴ص۱۷۱)-

۳) (شيوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۳۲ص۶۰-۶۱)-

۴) (تهذيب الكمال(ج۳۲ص۶۱) والجرح والتعديل (ج۹ص۲۴۷)رقم (۱۶۴۸۷/۸۳۲)-

۵) (تهذيب الكمال (ج۳۲ص۶۱) وسيرأعلام النبلاء(ج۱۱ص۳۸)-

۶) (سيرأعلام النبلاء (ج۱۱ص۳۸)-

۷) (تهذيب التهذيب (ج۱۱ص۳۰۸)-

۸) (الثقات لابن حبان (ج۹ص۲۶۲)-

اخستې دى. (١) او په صحيح بخارى كښې د هغوى نه صرف څلور احاديث مروى دى. (٢) دَعباسى خليفه ((واثق بالله)) په دورخلافت كښې بغداد كښې ٢٢٥ﻫ انتقال شو (٣) يو قول ٢٢٩ﻫ هم دې (۴) رحمه الله تعالى رحمة واسعة

٢-ابوبكر: دا ابوبكر عياش الخياط المقبرى رحمه الله دې. (۵)

٣-ابوحصين: دا ابوحصين عثمان بن عاصم الاسدى رحمه الله دې.(۶)

۴-ابوصالح: دا ابوصالح ذكوان السمان رحمه الله دې.دَدوى مختصرذكره((كتاب الإيمان باب امورالإيمان)) لاندې تيره شويده.(٧)

۵-ابوهريره رضي الله عنه: دامشهورصحابى رسول، حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې دَ دوى مفصل تذكره هم ((كتاب الإيمان)) دَ مذكوره باب لاندې راغلې ده. (٨)

**قوله: عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: تعس عبدالدينار والدرهم والقطيفة والخميصة،إن أعطى رضى ، وإن لم يعط لم يرض:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ نبى اكرم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه هغوى فرمائيلى دى دَ دينار غلام، دَ درهم غلام، دَ جاليدار څادر غلام او دَ خميصه غلام هلاك شو،كه چرې هغه ته څه وركولې شى نو خوشحاليږى او كه نه نشى وركولې نو خفه كيږى.

**قوله: قال أبوعبدالله: لم يرفعه إسرائيل ومحمد بن جحادة عن أبى حصين:** امام بخارى رحمه الله فرمائى: اسرائيل (٩) او محمدبن جحاده (١٠) دَ ابوحصين په واسطه سره دا روايت مرفوعاً نه دې بيان كړې.

**دَ پورتنى عبارت مطلب:** په دې عبارت كښې امام بخارى رحمه الله دا بيان كړيدې چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ باب كوم روايت دې دا اسرائيل بن يونس او محمدبن جحاده رحمهما الله موقوفا

---

١ ) (تهذيب الكمال (ج٣٢ص۶٢) اعلم أن العلماة العينى رحمة الله عليه عمدة القارى (ج١٤ص١٧١) عده من أفراد البخارى فحسب ولكن كما ترى أن المزى عده من رجال ابن ماجه أيضًا وهو الصحيح-

٢ ) (تهذيب التهذيب (ج١١ص٣٠٨)-

٣ ) (تهذيب الكمال (ج٣٢ص۶١)-

٤ ) (حواله بالا وسير أعلام النبلاء (١١ص٣٩)-

۵ ) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الجنائز باب ماجاء فى قبر النبى صلى الله عليه وسلم-

۶ ) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب العلم باب أثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم-

٧ ) (كشف البارى (ج١ص۶۵٨)-

٨ ) (حواله بالا(ص۶۵٩)-

٩ ) (دَدوى دَ حالاتو دَ پاره اوګوره كتاب العلم باب من ترك بعض الاختيارمخافةأن يقصر.....-

١٠ ) (دَدوى دَ حالات دَ پاره اوګوره كتاب الإجارة، باب كسب البغى-

نقل کړيدي. په اصل کښې داحديث ابوحصين نه اسرائيل بن يونس، قاضي شريك، قيس بن الربيع، مهربن جحاده او ابوبكر بن عياش رحمهم الله روايت کړيدي.
کوم کښې چه اسرائيل بن يونس او محمدبن جحاده روايت موقوف على ابى هريره ګرځولي دي يعنى حديث ئى د ابوهريره رضي الله عنه قول ګرځولى دې. او ابوبكر بن عياش رحمه الله حديث نه مرفوع وئيلې دي او قاضي شريك او قيس بن الربيع هم د ابوبكر بن عياش په دې خبره کښې ملګرتيا کړې ده چه دا حديث مرفوع دې. (۱)

**راجح موقوف دې که مرفوع؟** اوس سوال دا پيدا کيږى چه د دې حديث حکم څه دې اودا حديث موقوف دې که مرفوع؟
حافظ ابن حجر رحمه الله د دې جواب فرمائى:

((إسرائيل أثبت منهم، ولكن اجتماع الجماعة يقاوم ذلك، وحينئذٍ تتم المعارضة بين الرفع والوقف، فيكون الحكم للرفع.....)) (۲)

اسرائيل د هغوى په مقابله کښې اثبت دې البته د هغه په مقابله کښې يو ډله ده په دې وجه دا ډله د هغه مقابله کولې شى، په داسې صورت کښې به د رفع او وقف معارضه وى او رفع ته به ترجيح ورکولې شى.

وَزَادَنَا عَمْرٌو قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ تَعِسَ وَانْتَكَسَ وَإِذَا شِيكَ فَلَا انْتَقَشَ طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَشْعَثَ رَأْسُهُ مُغْبَرَّةٍ قَدَمَاهُ إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ وَإِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ قَالَ أبوعبدالله لم يرفعه اسرائيل ومحمد بن جحادة عن أبي حصين وَقَالَ تَعْسًا كَأَنَّهُ يَقُولُ فَأَتْعَسَهُمُ اللَّهُ طُوبَى فُعْلَى مِنْ كُلِّ شَيْءٍ طَيِّبٍ وَهِيَ يَاءٌ حُوِّلَتْ إِلَى الْوَاوِ وَهِيَ مِنْ يَطِيبُ [۲۷۰۱]

## تراجم رجال

۱- عمرو: داعمرو بن مرزوق بصرى رحمه الله دې. (۳)

۲- عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار: دا عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار العدوى المزنى رحمه الله دې. (۴)

---

۱) (فتح البارى (ج۱۱ص ۲۵۴)-
۲) (حواله بالا-
۳) (ددوى دحالاتو د پاره اوګورئ كتاب الغسل باب إذاالتقى الختانان-
۴) (ددوى دحالاتو د پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب إذا شرب الكلب فى إناء أحدكم...-

۳-أبيه: "ابيه" نه مراد ابوعبدالرحمن عبدالله بن دينار قرشي عدوى رحمه الله دي. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيرشوى دى.(۱)

۴-ابوصالح: مخكينې سنداوكورئى (۲)

۵-ابوهريرة رضي الله عنه: مخكينې سنداوكورئى (۳)

قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: تعس عبدالدينار وعبدالدرهم وعبدالخميصة:

د دې څيزونود غلامئى مطلب: په حديث شريف كښې راغلى دى چه دَ دينار، درهم او خميصه غلام هلاك شونودَ دې مطلب دا شو چه سړې دَ دې څيزونو حاصلولو او طلب دَ پاره هروخت په كوشش كښې وى، الله تعالى اودَ هغه أحكامات هيركړى اودَ هغه ټول كوشش هم دَ مال زياتى كښې تيرشى نو لكه چه هغه دَ مال، دينار او درهم غلام دې اوهم دَ دې څيزونو په حاصلولوكښې داسې مصروف دې لكه چه هغه بنده اودا څيزونه دَ ده رب دى اودَ دواړو په مينځ كښې دَ آقااو غلام تعلق دې. (۴)

بيا دلته چه دا په حديث كښې دَ دينار، درهم، خميصه او قطيفه ذكر راغلې دې نودَ دې څيزونو تخصيص مراد نه دې بلكه مطلقاً مال مراد دې.

((الخميصة)) هغه څادر ته وائى چه تور وى مربع وى او په دې باندې مختلف قسم كرخې جوړې شوې وى.(۵)

((القطيفة)) مخملى څادر ته وائى اودَ دې جمع قطائف ده. (۶)

قوله: إن أعطي رضي، وإن لم يعط سخط: كه هغه له وركړيشى نو راضى كيږى او كه ورنه كړيشى نو خفه كيږى. مطلب دا چه د حقيقى خالق دَ طرف نه داسې سړى ته انعام وركړيشي، هغه ته بنه مال دولت وركړيشى نو راضى او خوشحاله اوسيږى او كه هم دَ دغه خالق دَ طرف نه ورته كله ناكله دَ ده په رزق كښې تنگي پيدا كړيشى نو دَ خپل خالق نه ناراض كيږى، دَ داسې سړى متعلق دا وينا كول چه د دينار او درهم غلام دې. بالكل صحيح او درست ده. اوپه داسې صورت كښې دَ داسې سړى دَ پاره دَ هلاكت دعا كول هم ضرورى دى ځكه چه هغه په خپل اعمالودَ فانى دنيا حصول موقوف اوساتل اودَ آخرت دَ

---

۱) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۸) و(ج۳ص۱۲۵)-
۲) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۸)-
۳) (حواله بالا (ص۶۵۹)-
۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳)-
(۵) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۷۲)-
۶) (حواله بالا-

همیشه پاتې کیدونکې ژوندد پاره ئې د نعمتونو حاصلولو کوشش پریخودو او د هغې د پاره ئې عمل کول پریخودل.(١)

که غورسره اوکتې شي نو زمونږ په زمانه کښې هم د داسې خلقو کمې نشته چه د الله تبارك وتعالى د طرف نه لږغوندې تکلیف او مشقت باندې سخت غصه کیږي، تقدیر ته خیرې کوي نو د کافرانو نه خو ګیله کول بې ځایه دي، زمونږ د اکثرو مسلمانانو دا حال دې، اوبیا دې کښې هم زمونږ خپل قصور دې،اعمال داسې دی چه په کتلو ورته شرم راځي، اوبیا د الله تعالى د نصرت اودهغه د طرف نه د رزق د زیاتوالى هم امیدواریو. فإلى الله المشتكى.

((تعس وانتكس)):داسې سړې هلاك او برباد شو.

په دې جمله کښې د داسې سړي د پاره خیرې دی چه د مال او دولت غلام جوړشي او هم د هغې شي او خپل خالق او مالك ئې هیرکړو نوداسې سړې هلاك او برباد دې.

**د تعس صرفى اومعنوى تحقيق:** كلمه "تعس" تعسا وتعسًا نه د فعل ماضى مذكر غائب صيغه ده، د دې اكثر استعمال باب ((سمع)) نه كيږي او باب ((فتح)) نه هم استعماليږي.(٢)

د لغت مختلفو امامانو د دې كلمه مختلف معنې بيان كړې دى ليكن د دې ټولو مرجع او حاصل يودې په دې وجه مونږ هم دا اختيار كړه او په ترجمه كښې مو د دې ټولومعنو جامع لفظ "هلاكت" واخستو. (٣)

**د انتكس صرفى اولغوى تحقيق:** او "انتكس" باب "افعال" نه فعل ماضى مذكرغائب صيغه ده. د دې مجرد نكس دې او د نكس معنى په قول د رستمى "سرد لاندې راغورزيدل" مراد دلته هم هلاكت دې.(۴)

((وإذا شيك فلا انتقش)):او چه په هغه كښې چرته ازغې ننوتلو هغه راونه وتلو.

بيا دلته نبى اكرم ﷺ د تاكيد په توګه د هغه سړي د پاره دا جمله هم د خيرو په توګه ارشاد اوفرمائيله چه كه هغه كښې چرته ازغې خښ شي نو هغه ته په نوسى (د ازغى د راويستلو آله) باندې د راويستلو توفيق دې نه وي، چه هغه د دينارونو او درهمونو د طلب او سعى نه منع شي. (۵)

اوكله انتقاش د استعارې په توګه د توبې د پاره هم استعماليږي، په دې صورت كښې به د مذكوره جملې مطلب دا وي چه داسې سړي ته دې د توبې توفيق نه وي. (۶)

---

١ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳) وعمدة القارى(ج ٤ص١٧٢)-

٢ ) (فتح البارى (ج۶ص۸۲)-

٣ ) (فقال العلامة ابن بطال رحمة الله عليه: التعس: ألاينتعش، ولايفيق من عثرته....هذا قول الخليل وقال ابن الأنبارى: التعس: الشر، هذاقول المبرد، وقال غيره: التعس: البعد، وقال الرستمى: التعس أن يخر على وجهه، قال: راتعس ايضاً: الهلاك. شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳)-

٤ ) (قال الرستمى: النكس: ان يخرعلى رأسه شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳)-

۵ ) (حواله بالا واعلام الحديث للخطابى (ج۲ص۱۳۸۸) وتاج العروس (٤ص۳۵۹) مادة نقش-

۶ ) (مصباح اللغات (۹۰۲)مادة نقش-

**قوله**: طوبى لعبد آخذ بعنان فرسه في سبيل الله أشعث رأسه مغبرة قدماه: دَ داسې سړی دپاره دې زيرې او خوشخبري وي چه د الله تعالى په لاركښې د خپل اس واګه نې نيولې وي د هغه د سر ويښته بېر اود هغه قدمونه په خاورو ککړ وي.

په دې جمله کښې نبی اکرم ﷺ د جهاد او داسې اعمالوچه په دنيا او آخرت کښې فائده ورکړي ترغيب ورکړيدې. (١)

**دَ "اشعث راسه" اعراب**: ((أشعث)) مجرور بالفتحه دې ځکه چه دا غيرمنصرف دې او دا لفظ چونکه دَ عبدصفت دې په دې وجه مجرور دې. (٢)

علامه طيبي رحمه الله ((أشعث)) ته منصوب بنابرحال ونيلې دې.(٣)

او ((رأسه)) دَ اشعث دَ فاعل کيدو په وجه مرفوع دې. (۴)

خودَ ابوذر په نسخه کښې ((أشعث)) مرفوع راغلې دې نو علامه کرمانی رحمه الله او بعض نورو دَ دې توجيه داسې کړې چه ((أشعث)) چونکه دَ ((رأسه)) صفت دې نو په دې وجه مرفوع دې او تقدير دَ عبارت داسې دې. ((رأسه أشعث)) (۵)

خو علامه عينی رحمه الله دَ علامه کرمانی رحمه الله او بعضو په دې توجيه باندې رد کړيدې، او فرمائی چه کرمانی او بعضو څه وئيلی دی هغه دَ نحاة په نزد صحيح نه دی او ((رأس)) دَ أشعث فاعل دې او هغه صفت څنګه واقع کيديشی حالانکه موصوف په خپل صفت باندې متقدم نه وی او بعضو چه دَ عبارت کوم تقدير بيان کړيدې دَ هغې نه خو دا لازم راځی چه ((أشعث)) نه پس چه کوم((رأسه)) دې هغه ملغی اوګرځولې شی،(۶)

او دَ ((مغبرة قدماه)) په اعراب کښې هم هغه تفصيل دې کوم چه ((أشعث رأسه))کښې دې.(۷)

**قوله**: إن كان في الحراسة كان في الحراسة، وإن كان في الساقة كان في الساقة: که هغه په څوکې او پهره ورکولوکښې وی نو هم په پهره ورکولوکښې دې وی او که هغه دَ لښکر په آخری حصه کښې وی نو هم دَ لښکر په آخری حصه کښې دې وی.

دا ځايونه دَ داسې مواضعو نه دی چه چرته شرط او جزاء متحد دی ليکن معنی دَ هريو دَ بل نه مختلف ده او تقدير عبارت داسې دې:

---

١ ) (فتح الباری (ج۶ص۸۳) وشرح ابن بطال (ج۵ص۸۳)-

٢ ) (شرح القسطلانی (ج۵ص۷۸)-

٣ ) (حواله بالا وشرح الطيبی (ج۵ص۲۸۸)-

٤ ) (ارشاد الساری (ج۵ص۸۷)-

٥ ) (فتح الباری (ج۶ص۸۳)وشرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۵۹)-

٦ ) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۷۲)-

٧ ) (فتح الباری (ج۶ص۸۳)-

إن كان المهم في الحراسة كان فيها، وإن كان المهم في الساقة كان فيها: (١) يعنى كه دَ لښكر څوكۍ او پهره وركولو دَ وخت تقاضا او مهم وى نو هم په هغې كښې وى او كه مهم او ضرورى دَ لښكر په آخرى حصه كښې موجودګى وى نو هم هلته وى.
او علامه عينى فرمائى چه مطلب دا دې چه هغه سړى ته دَ كوم كار حكم وركولې شى هغه پوره كوى او چه كوم ځائ دې هم اودرولو دَ خپل ځائ نه نه خوزيږى كلك ولاړ وى. كه هغه ته دَ مقدمة الجيش حفاظت وركړيشى نو هم هلته به وى او كه دَ لښكر دَ روستونۍ حصې دَ خيال ساتلو ورته اووئيلې شى نو دَ هغې نه هم انكار نه كوى. (٢)
دلته اوس اووئيلې شو چه دلته دَ جزاء تعظيم او فخامت باندې دلالت دې او مطلب دا دې چه كه هغه په ساتنه او پهره كښې وى نو هغه په يو عظيم كاركښې مشغول دې او مراد دَ دې نه دَ دې لازم دې يعنى داسې سړى له پكار دى چه دَ حراست او ساتنې لوازم پوره كړى او دَ خپل كار اوفرض پوره كولوكښې په پوره چالاكۍ سره مشغول وى. (٣)
او علامه ابن جوزى رحمه الله فرمائى چه مطلب دا دې چه هغه دَ مشهورتيانه بچ كيږى، دَ رفعت او اوچتوالى غوښتونكې نه وى، خپل كار سره كار لرى، نولكه چه دَ نبى اكرم ﷺ مقصد دا دې كه هغه په څوكۍ كښې وى نو په هغې كښې مشغول اوسى او كه دَ لښكر په روستونۍ حصه كښې هغه اولګولې شى نو هم هلته وى يعنى په هر حال كښې خوشحاله وى او چه كومه ذمه وارى هم هغه ته حواله كړيشى هغه پوره كوى. (٤)
**دَ مقدمة الجيش او موخرالجيش دَ تخصيص بالذكر وجه:** په حديث كښې دَ شارحينو مطابق حراست نه مراد مقدمة الجيش يعنى دَ لښكر دَ وړاندينۍ حصې څوكۍ ده، او دَ ساقه نه مراد دَ لښكر آخرى حصه ده. (٥)
نودلته صرف دَ لښكر په دوو حصو باندې اكتفاء شويده او دا دواړه ئې په خاص توګه ذكر كړې نودِ دې تخصيص وجه علامه طيبى رحمه الله او علامه عينى رحمه الله وغيره دا ذكر فرمائيلې دى چه دَ دې دواړو حصو په ساتنه كښې مشقت او تكليف ډير دې، اول خو هغه وخت وى چه كله مسلمان دَ ميدان جنګ نه اوځى نو ښكاره خبره ده چه هم په دې وختونوكښې لښكر ته ډيره خطره وى. (٦)

**قوله:** إن استأذن لم يؤذن له، وإن شفع لم يشفع له: كه هغه اجازت غواړى (دَ چا دَ ملاقات وغيره دَ پاره) نوچه هغه ته اجازت هم ملاؤنشى اوكه هغه دَ چا سفارش اوكړى نو دَ هغه سفارش هم قبول نه كړې شى ـ

---

١) (حواله بالا-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٧٢)-
٣) (فتح البارى (ج ٦ ص ٨٣) وعمدة القارى (١٤ ص ١٧٢) وشرح الطيبى (ج ٩ ص ٢٨٨)-
٤) (فتح البارى (ج ٦ ص ٨٣)-
٥) (شرح الكرمانى (ج ١٢ ص ١٥٦)-
٦) (عمدة القارى (١٤ ص ١٧٢) وشرح الطيبى (ج ٩ ص ٢٨٨)-

په دې جمله کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دا سړې د دنيا او د دنيا د خلقو طرف ته ئه التفات او توجه نه ورکوی، هغه خپل نفس بالکل فنا کړی دې نه د هغه دمال طلب دې اونه د خلقو د نزديکت او شان او شوکت خواهش مند دې. بلکه د هغه شان او شوکت خو الله تعالی سره دې، خلق خود چا باره کښې د هغه سفارش هم نه قبلوی ليکن د الله تعالی په نزد د هغه دا حيثيت دې چه د هغه شفاعت هم قبلولې شی اود هغه باره کښې هم سفارش قبلولې شی.(۱)

**قوله:** وقال: تعسا، کأنه يقول: فأتعسهم الله: اوامام بخاری رحمه الله ونيلې چه په (قرآن مجيد کښې) **تعسا**، ((**فأتعسهم الله**)) الله تعالی دې هغوی هلاك کړی په معنی کښې دې.

د امام بخاری رحمه الله دا پورته ذکرشوې قول صرف د مستملی په نسخه کښې موندلې شی.(۲)

اود امام بخاری رحمه الله دا معروف عادت دې چه په حديث کښې يو لفظ راغلې وی او هغه لفظ په قرآن کريم کښې هم استعمال شوی وی نو د هغې تفسير او توضيح کوی.(۳)

هم د دې عادت مطابق دلته هم امام بخاری رحمه الله د قرآن مجيد د آيت مبارك ﴿**وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ**﴾(۴) کښې وارد لفظ ((**فَتَعْسًا**)) تفسير فرمائی چه دا ((**فأتعسهم الله**)) معنی کښې دې يعنی الله دې هغوی هلاك کړی همدغه تفسير نورو مفسرينو حضراتو نه هم نقل شويدې.(۵)

**قوله:** طوبى فعلى من كل شئ طيب، وهى ياء حولت إلى الواو، وهى من يطيب: طوبی د فعلی په وزن دې، د هرښه څيز دپاره، واو په اصل کښې ياء وه، بيا ياء په واوسره بدل کړو او دا د يطيب نه مشتق دې.

**د لفظ طوبیٰ صرفی اولغوی تحقيق:** دلته امام بخاری رحمه الله د طوبیٰ صرفی او لغوی تحقيق فرمائيلې دې چه دا د فُعلی په وزن ده او د يطيب نه مشتق ده، په دې صورت کښې طيبى کيدل پکار وو خود دې وجه امام صاحب دا خودلې ده چه ياء په واو سره بدله کړېشوه ځکه چه د ياء ماقبل مضموم دې چه د او متقاضی ده، د دې دپاره ياء په واو سره بدله کړې شوه(۶) د طوبی يوه معنی خو د جنت ده او دا هم ونيلې شوی دی چه دا د جنت د يوې ونې نوم دې(۷) خو غالبًا امام بخاری رحمه الله د دې په تفسير کښې ((**من كل شئ طيب**)) راوړلې ارشاد ئی

---

۱) ( عمدة القاری ( ۱٤ص۱۷۲)-
۲) (حواله بالا وفتح الباری (ج۶ص۸۳)-
۳) حواله بالا-
٤) (محمد:۸-
۵) ( عمدة القاری ( ۱٤ص۱۷۲)وفتح الباری (ج۶ص۸۲)-
۶) (ارشاد الساری(ج۵ص۸۷)-
۷) (فتح الباری (ج۶ص۸۳)-

فرمائيلي چه د لفظ عام معنى مراد واخستلي شى نو ډيره به بهتر وى. دغه شان كه جنت وى يا د هغې د يوې ونې نوم يا نور هم څه بنه څيز وى د دې په عموم كښې به داخل شى.
دلته هم امام بخارى رحمه الله د خپل عادت موافق د قرآن كريم آيت مبارك ﴿الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ﴾ (۱) كښې وارد لفظ ((طوبى)) تفسير او توضيح كړيدې.(۲)
**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې ((طوبى لعبد آخذ بعنان فرسه فى سبيل الله)) او ((إن كان فى الحراسة كان فى الحراسة)) په دې دواړو جملوكښې د الله تعالى د لارې ساتنه او پاسبانئى باندې خوشخبرى وركړيشويده.(۳)
**د حراست فى سبيل الله فضيلت باره كښې نورځواحاديث:** د الله تعالى په لاركښې حفاظت او پاسبانى كولو فضيلت په نورو احاديثوكښې هم وارد شويدې كوم چه د امام بخارى رحمه الله په شرطونو خو نه دى البته صحيح ضرور دى، كوم نه چه يو څومونږ په ذيل كښې نقل كوو:
① د حضرت عثمان رضى الله عنه مرفوع روايت دې ((حرس ليلة فى سبيل الله تعالى أفضل من ألف ليلة، يقام ليلها ويصام نهارها))(۴) د الله تعالى په لاركښې يوه شپه څوكئى كول د زرو شپوورځونه بهتراوغوره دى، په كومو شپوكښې نفلونه اداكړيشى اود هغې په ورځوكښې روژې اوساتلې شى.
② حضرت ابوريحانه رضى الله عنه نه مرفوعًا مروى دى ((حرمت النار على عين سهرت فى سبيل الله))(۵) يعنى د دوزخ اُور په هغه سترګه حرام دې چه د الله تعالى په لاركښې رونړه شوې وى.
③ د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما مرفوع حديث دې: ((عينان لاتمسهما النار: عين بكت من خشية الله، وعين باتت تحرس فى سبيل الله)) (۶) يعنى د دوزخ اُور به دوو سترګوسره نه لګى، يوه هغه سترګه چه د الله تعالى د ويرې ژړيدلې وى او دوئمه هغه سترګه كومې چه د الله تعالى په لار كښې د حفاظت او پاسبانئى فريضه پوره كولوسره شپه رونړه كړې وى.
④ حضرت ابن عمر رضى الله عنهما نه مرفوع روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو ((ألاأنبئكم بليلة أفضل من ليلة القدر حارس حرس فى أرض خوف لعله أن لايرجع إلى اهله)) (۷)

---

۱) (الرعد:۲۹-
۲) (فتح البارى (ج۶ص۸۳)-
۳) (حواله بالا وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۷۱)-
۴) (مسندالإمام احمد (ج۱ص۶۱و۶۵)الترغيب للمنذرى (ج۲ص۲۵۰)-
۵) (مسندالإمام احمد (ج۴ص۱۳۴) والمستدرک (ج۲ص۸۳) وقال الذهبى فى تلخيصه للمستدرک: صحيح
۶) (الجامع للترمذى، أبواب فضائل الجهاد، باب ماجاء فى فضل الحرس فى سبيل الله رقم (۱۶۳۹)-
۷) (المستدرک للحاكم (ج۲ص۸۰) كتاب الجهاد باب من رابط يوما وليلة، وكنزالعمال (ج۳ص۳۲۳) ومن أراد الاستزادة فليراجع الترغيب والترهيب للمنذرى (ج۲ص۲۴۸) كتاب الجهاد باب الترغيب فى الحراسة فى سبيل الله تعالى-

آيا زه تاسو ته د داسې شپې باره كښې اونه ښائم چه د ليلة القدر نه هم غوره وي، هغه د هغه څوكئى كونكي (شپه ده) څوك چه په خطرناكه زمكه باندې د سرحدونود حفاظت فريضه پوره كوي، كيديشى چه هغه خپل بال بچ طرف ته واپس رانشي.

## ٧٠-بَاب: فَضْلِ الْخِدْمَةِ فِي الْغَزْوِ

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله د دې باب په ذيل كښې د غازى د خدمت فضيلت بيانول غواړي. كه دا د خدمت كار د وړوكى د لوئ د پاره وي يا د لوئ د طرف نه د وړوكى د پاره پوره كړې وي يا دوه د يوعمر او يو مرتبې كسان د يو بل د پاره كوي.(١)

او د دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله درې احاديث ذكركړې دى. چه تول د حضرت انس رضي الله عنه نه مروى دى. په ړومبنى حديث شريف كښې د لوئ د وړوكى د پاره خدمت كولو ذكر دې په دوئم حديث كښې د دې برعكس دې اوپه دريم حديث كښې د يوشان كسانو د خدمت ذكر دې. لكه څنګه چه به مونږ وړاندې د احاديثو په تشريح كښې انشاء الله بيانوو.(٢)

[٢٧٣١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (٣) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ صَحِبْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ فَكَانَ يَخْدُمُنِي وَهُوَ أَكْبَرُ مِنْ أَنَسٍ قَالَ جَرِيرٌ إِنِّي رَأَيْتُ الْأَنْصَارَ يَصْنَعُونَ شَيْئًا لَا أَجِدُ أَحَدًا مِنْهُمْ إِلَّا أَكْرَمْتُهُ

## تراجم رجال

١- **محمد بن عرعرة:** دا ابوعبدالله محمدبن عرعره رحمه الله دې. د دوى حالات ((كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولايشعر)) لاندې تيرشويدې.(۴)

٢- **شعبه:** دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله دې، د دوى مختصر تذكره ((كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون....)) لاندې تيره شويده.(۵)

٣- **يونس بن عبيد:** داابوعبيده يونس بن عبيدبن ديناربصرى رحمه الله دې د دوى مختصر تذكره ((كتاب الإيمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا...﴾ لاندې تيره شويده.(۶)

۴- **ثابت البناني:** دا مشهور تابعى بزرګ ابومحمدثابت بن بنانى رحمه الله دې.

---

١) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٧٣) وفتح البارى (ج ۶ص ٨٣)-

٢) (حواله بالا-

٣) (قوله: عن انس رضى الله عنه: الحديث أخرجه مسلم، كتاب فضائل الصحابة باب حسن صحبة الأنصار رضى الله عنهم رقم (٦٤٢٨)-

٤) (كشف البارى (ج ٢ص ٥٥٧)-

٥) (كشف البارى (ج ١ص ۶٧٨)-

۶) (كشف البارى (ج ٢ص ٢٢٠)-

دَ دوی تفصیلی حالات ((کتاب العلم باب القراة والعرض علی المحدث)) لاندې تیرشوی.(۱)

۵- انس بن مالك: دامشهور صحابی خادم رسول حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې. دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه...)) لاندې تیره شویده.(۲)

**قوله: قال: صحبت جریربن عبدالله، فکان یخدمني، وهوأکبر من أنس:**

حضرت انس بن مالك رضی الله عنه فرمائی چه زه د جریربن عبدالله رضی الله عنه سره ووم نو هغه به زما خدمت کولو حالانکه هغه دَ حضرت انس رضی الله عنه نه مشروو.

دا دَ سفرواقعه ده همدغه روایت په صحیح مسلم کښې هم دې، هلته دَ سفر تصریح موجود ده. ((خرجت مع جریربن عبدالله في سفر....))(۳)

او دَ حدیث په جمله ((وهوأکبرمن أنس))کښې دوه احتمالات دی:

① دا هم دَ حضرت انس رضی الله عنه قول دې، په دې صورت کښې دلته التفات دې، یعنی ((التفات المتکلم الی الغیبة)) ځکه چه کیدل داسې پکار وو((وهوأکبرمني)) وئیل لیکن التفات کولوسره ئې ((أکبرمن أنس)) فرمائیلې دې په دې صورت کښې به دا جمله حالیه وی. (۴)

② مسلم شریف (۵) روایت ((محمدبن المثنی عن ابن عرعرة)) په طریق کښې دا الفاظ راغلی دی ((وکان جریرأکبرمن أنس)) نوکیدیشی چه دا الفاظ دَ ثابت بنانی وی نو په دې صورت کښې دا جمله معترضه به وی (۶)

**قوله: قال: جریر: إنی رأیت الأنصار یصنعون شیئاً لاأجد أحداً منهم إلاأکرمته:**

حضرت جریر رضی الله عنه فرمائی ما انصار په یوداسې کارکولو اولیدل چه کله به هم هغوی ماسره ملاویږی زه دَ هغوی تعظیم او اکرام کوم.

دَ مسلم شریف په روایت کښې ((إني درأیت الأنصار تصنع برسول الله صلی الله علیه وسلم شیئا)) (۷) دی، نواوس به مطلب دا وی چه ما انصار دَ رسول الله ﷺ په خدمت اوتعظیم کولوسره اولیدل، دَ دې دَپاره چه زه کله چا انصاری صحابی سره ملاویږم نو دَ هغه اکرام کوم. لکه چه دا حضرت جریر رضی الله عنه دَ حضرت انس رضی الله عنه کوم خدمت کړې وود هغې علت ئی بیان کړو، چه دې انصارو حضراتو به دَ نبی کریم ﷺ خدمت کولو اود هغوی به ئې ترحده پورې

---

۱ ) (کشف الباری(ج۳ص۱۸۳)-
۲ ) (کشف الباری (ج۲ص٤)-
۳ ) (الصحیح لمسلم کتاب فضائل الصحابة باب حسن صحبة الأنصار رقم (٦٤٢٨)-
٤ ) (عمدة القاری (ج١٤ص١٧٣)وفتح الباری(ج٦ص ٨٤)-
۵ ) (صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب حسن صحبة الأنصار رقم (٦٤٢٨)-
۶ ) (فتح الباری (ج٦ص ٨٤) وإرشاد الساری(ج٥ص٨٧)-
۷ ) (صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب حسن صحبة الأنصار رقم(٦٤٢٨)-

تعظیم کولو نو مونږ له د دې انصارو خدمت او تعظیم کول پکار دی. (۱)

او حضرت جریر رضی الله عنه چه ،،شیأ،، مبهم ساتلې دی د دې نه مقصود مبالغه ده (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حافظ ابن حجر رحمه الله په امام بخاری رحمه الله باندې اعتراض کولوسره فرمائی چه د باب دا حدیث د هغه احادیثونه دې کوم چه مصنف د هغې په غیرمناسبه موقع ذکر کړی دی، پکار خودا ووچه هغه دا حدیث په مناقبو کښې ذکر کړې وې نه چه په جهاد کښې لیکن هغوی د دې عکس اوکړو چه دا حدیث ئې په جهاد کښې ذکر کړو. (۳)

علامه عینی رحمه الله د دې اعتراض جواب ورکولوسره فرمائی چه دا حدیث بعینه هم په دې سند سره امام مسلم رحمه الله هم ذکر کړیدې او په دې کښې ((فی سفر)) اضافه هم مروې ده. (۴)

نو اوس معلومه شوه چه دا واقعه د خدمت او اکرام سفر دی او سفر عام دې که د غزوې وی او که د غیرغزوې، نو داشان به حدیث په خپل باب کښې واقع وی او مطابقت به هم حاصل شی. (۵)

[۲۷۳۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ بْنِ حَنْطَبٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَيْبَرَ أَخْدُمُهُ فَلَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاجِعًا وَبَدَا لَهُ أُحُدٌ قَالَ هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ ثُمَّ أَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا كَتَحْرِيمِ إِبْرَاهِيمَ مَكَّةَ اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَمُدِّنَا [۳۱۸۷، ۳۸۵۵، ۳۸۵۶، ۵۱۰۵، ۶۰۰۲، ۶۹۰۲، وانظر: ۳۶۴، ۲۰۲۳]

## تراجم رجال

۱- عبدالعزیز بن عبدالله: دا ابوالقاسم عبدالعزیز بن عبدالله القرشی الاویسی رحمه الله دې (۶)

۲- محمد بن جعفر: دا محمدبن جعفر بن ابی کثیر انصاری مدنی رحمه الله دې. (۷)

۳- عمرو بن ابی عمرو: دا عمروبن میسره ابی عمرو رحمه الله دې. (۸)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص ۸۴) وعمدة القاری (ج ۱۴ص۱۷۳)-

۲) فتح الباری (۶\۸۴) وعمدة القاری (۱۴\۱۷۳)

۳) (فتح الباری (ج۶ص ۸۴)-

۴) (مسلم شریف کتاب فضائل الصحابة باب حسن صحبة الأنصار رقم (۶۴۲۸)-

۵) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۱۷۳)-

۶) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب العلم باب احرص علی الحدیث-

۷) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الحیض باب ترک الحائض الصوم-

۸) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب العلم باب الحرص علی الحدیث-

۴-انس بن مالك: مخکینې سند اوګورئې. (۱)

**دحديث ترجمه:** د عمرو بن ابی عمرو رحمه الله نه مروی دی چه هغه د حضرت انس رضی الله عنه نه داسې اوريدلی چه زه د غزوه خيبرپه موقع حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره لاړم، ما به د هغوی صلی الله علیه وسلم خدمت کولو. بيا چه کله نبی اکرم صلی الله علیه وسلم واپس شو اود احدغرښکاره شو نو هغوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل دا هغه غر دې کوم سره چه مونږ محبت کوو او هغه مونږ سره محبت کوی.

دې نه پس حضور صلی الله علیه وسلم د مدينې منورې طرف ته اشاره اوکړه او وئې فرمائيل اې الله! زه د دې دواړو کاڼړې ژنو ميدانونو په مينځ کښې خطه د حرمت والا ګرځوم. لکه څنګه چه حضرت ابراهيم علیه السلام د مکې ښار د حرمت والا ګرځولې وو، اې الله! زمونږ په صاع او زمونږ په مُد کښې برکت اوفرمائې.

د باب دا حديث په ماقبل کښې څو ځل تيرشوې دې او په کتاب المغازی کښې هم د دې څه تشريح راغلې ده په دې وجه مونږ دلته صرف د حديث په ترجمه باندې اکتفا اوکړه.(۲)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله کښې دې: ((خرجت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم الى خيبر أخدمه)) (۳)

او د ترجمة الباب دمقصد لاندې مونږ دا بيان کړې دی چه امام بخاری رحمه الله د باب په ذيل کښې درې حديثونه ذکر کړې دی او په دې کښې په دوئم کښې د وړوکی د لوئ خدمت کول مذکور دی نو اوګورئې دلته حضرت انس رضی الله عنه بحيثيت خادم نبی کريم صلی الله علیه وسلم سره سفرکښې دې او حضرت انس رضی الله عنه صغير(وړوکې) دې او نبی کريم صلی الله علیه وسلم کبير(لوئ) دې.

[۲۷۳۳] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ أَبُو الرَّبِيعِ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ عَنْ أَنَسٍ (۴) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرُنَا ظِلًّا الَّذِي يَسْتَظِلُّ بِكِسَائِهِ وَأَمَّا الَّذِينَ صَامُوا فَلَمْ يَعْمَلُوا شَيْئًا وَأَمَّا الَّذِينَ أَفْطَرُوا فَبَعَثُوا الرِّكَابَ وَامْتَهَنُوا وَعَالَجُوا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ الْمُفْطِرُونَ الْيَوْمَ بِالْأَجْرِ

## تراجم رجال

۱-سليمان بن داود: دا ابوالربيع سليمان بن داود عتکی زهرانی بصری رحمه الله دې، د دوی حالات ((کتاب الإيمان، باب علامة المنافق)) لاندې تيرشوی دی. (۵)

۲-اسماعيل بن زکريا: دا ابوزياداسماعيل بن زکريا الخلقانی الکوفی رحمه الله دې. (۶)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص ٤)-

۲) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۵۲، ۳۱۹)-

۳) (عمدة القاری(ج١٤ص١٧٣)-

٤) (قوله: عن انس رضی الله عنه:الحديث أخرجه مسلم،کتاب الصيام باب أجر المفطر فی السفر إذا تولی العمل رقم ۲۶۲۲) والنسائی کتاب الصيام باب فضل الإفطار فی السفرعلی الصوم رقم (۲۲۸۵)-

۵) (کشف الباری (ج۲ص ۲۷۰)-

۶) (د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب البيوع باب مذکر فی الأسواق-

۳-عاصم: دا عاصم بن سليمان الاحول رحمه الله دي. (۱)

۴-مورق العجلي: دا مورق بن شمرخ عجلى رحمه الله دي. (۲)

۵-انس: سابقه سند اوګورئی. (۳)

**قوله: قال: كنامع النبي صلى الله عليه وسلم:** حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه مونږ دَ نبی اکرم صلى الله عليه وسلم سره وو.

دَ مسلم شريف دَ روايت نه معلوميږی چه دا دَ يو سفرواقعه ده، په دې کښې دی ((كنا مع النبي صلى الله عليه وسلم في سفر فمنا الصائم ومنا المفطر قال: فنزلنا منزلا في يوم حار)) (۴) يعنی مونږ نبی کريم صلى الله عليه وسلم سره يو سفرکښې وو مونږ کښې روژه دار هم وو او بغير روژې والا هم. فرمائی نو مونږ په يومنزل باندې دَ سختې ګرمئی په ورځ کښې ډيره واچوله.

**قوله: أكثرناظلامن يستظل بكسائه:** په مونږ کښې دَ سوری په لحاظ باندې بهتر سړې هغه ووچا چه په خپل څادر سورې کړې وو.
مطلب دا دې چه سخته ګرمی وه، په دې وجه دَ سوری انتظام نه وو، که دَ ډير نه ډير به کيدېشونو هغه دا وه چه کومو صحابه کرامو سره څادر وغيره وو نو هغوی دَ دې په ذريعه باندې دِ سوری انتظام کړې وو.پاتې شو هغه حضرات چا سره چه څادر وغيره نه وو نو هغوی دَ ګرمئی نه دَ بچ کيدلودپاره دَ لاسونو استعمال اوکړو. دَ مسلم شريف روايت کښې دی: ((ومنا من يتقى الشمس بيده)) (۵)

**قوله: وأما الذين صاموافلم يصنعوا شيئا:** اوچه کوم حضرات روژې سره وو نو هغوی هيڅ هم اونه کړل.
ګرمی ډيره زياته وه، معامله هم ډيره اهمه وه يعنی غزوه وه. په دې وجه چه کوم خلق روژې سره وو هغوی برداشت نه کړېشو، کاروغيره نه عاجزشو. (۶)

**قوله: وأما الذين أفطروافبعثوا الركاب، وامتهنوا، وعالجوا:** او چه کومو حضراتو روژه نه وه ساتلې نوهغوی خپل اوښان اوبو له بوتلل او ښه خدمت ئی اوکړو او نورکارونه ئی هم اوکړه.
مطلب دا چه روژه دار حضرات دَ کمزورئی او ستړيوالی په وجه هغوی کار وغيره نه عاجز وو نو په دې وجه ئی اوښانوته اوبه، واښه وغيره څرولو دَ پاره بې روژې حضراتو بوتلل،

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعر الإنسان-
۲) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب كتاب التهجد باب صلاة الضحى فى السفر-
۳) (كشف البارى (ج۲ص٤)-
٤) (صحيح مسلم كتاب الصيام باب أجر المفطر فى السفر.... رقم (۲۶۲۲)-
۵) (حواله بالا-
۶) (فتح البارى (ج۶ص۸٤)-

هغوی د روژه دارو حضراتو هم ښه خدمت اوکړو او نور ټول کارونه ئې هم اوکړه.

**قوله: فقال النبي صلى الله عليه وسلم: ذهب المفطرون اليوم بالأجر:** نو نبی کریم اوفرمائیل نن خو اجر او ثواب روژه دارو یوړلو.

د اجر نه مراد ډیر اجردې او د نبی کریم ﷺ مذکوره ارشاد مطلب دا نه دې چه د رژوه دارو اجر کم شوې وو بلکه مطلب دا دې چه روژه نه ساتونکو حضراتو ته د هغوی د اعمالو اجرهم ملاویږی او د روژه دارو هم ځکه چه هغوی خپل کارونه هم پوره کړل او د روژه دارو ذمه واری ئې هم پوره کړې.(١)

**د رسول الله ﷺ د مذکوره بالا ارشاد سبب:** حضرت مولانا ظهورالباری د رسول الله ﷺ پورته ذکرشوې ارشاد سبب بیانولو سره لیکی:

روژه خوخیرمحض دې او مخصوص او مقبول عبادت دې بیا هم په سفر وغیره کښې په داسې موقعوچه د دې په وجه د اهموکارونو بندیدلو خطره وی نو روژه نه ساتل غوره دی. کومه واقعه چه په حدیث کښې ده په هغې کښې هم دا صورت پیش شوې ووچه د خلقو روژه وه او هغوی د ستړیوالی د وجې څه کارنشو کولې، خو بې روژې خلقو په پوره تیزئی سره ټول کارونه پوره کړل په دې وجه د هغوی ثواب زیات شو.

په اسلام کښې د عبادت نظام د انسان د فطرت مطابق او ډیرپه معقول طریقه باندې قائم دی. دین په فرائضو او واجباتوکښې مدارج قائم کړی دی او د مدارجو چه څوك پوره لحاظ ساتی د الله تعالی په نزد. به د هغه عبادت هم په هغه درجو کښې مقبول وی. په حدیث شریف کښې ځکه وئیلی شوی دی چه روژه نه ساتونکو نن اجر او ثواب یوړلو، حالانکه هغوی یو اهم عبادت پریخودې وولیکن د هغې نه د زیات اهم عبادت په خاطر، نو په دې وجه د ثواب هم زیات حقدار شو. (٢)

**مذکوره بالا حدیث نه مستنبط فائدې:** ① امام ابو عبدالله بن ابی صفرة رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث نه معلومه شوه چه په غزوه کښې د خدمت اجر د روژې د اجر او ثواب نه زیات وی ځکه روژه نه ساتونکی جهاد، طلب علم نور اعمال صالحه او فاضله مثلاً دکمزوری امداد کول یا مسلمانانو ته چه د کوم څیز ضرورت او حاجت وی د هغې په پوره کولوکښې ډیر قوی او طاقتور وی.(٣)

② دا فائده هم راؤ وتله چه په جهاد کښې چرته کوزیدل وی، یا سفرکول وی نو په مجاهدینو باندې واجب دی چه یو بل سره امداد اوکړی. (٤)

③ د حدیث نه دا فائده هم حاصله شوه چه یو شان خلق د یو بل خدمت کولې شی او دا جائز دی او په دې کښې د هیڅ قسم شرم څه خبره نشته. (٥)

---

١) (فتح الباری (ج٦ص ٨٤) وعمدة القاری (ج ١٤ص١٧)-
٢) (تفهیم البخاری (ج٢ص ٩٦)-
٣) (شرح ابن بطال (ج٥ص ٨٤)-
٤) (حواله بالا-
٥) (عمدة القاری (ج ١٤ص ١٧٤)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت دحديث په دې جمله كښې دې. ((فبعثوا الركاب، وامتهنوا وعالجوا)) ځكه چه دا ټول كارونه دَ خدمت نه عبارت دى. دَ **بعث الركاب** مطلب خودادې چه اوښان ئې اوبوڅكولو له بوتله، او ((**امتهنوا**)) معنى ((**خدموا**)) او ((**عالجوا**)) خوراك وغيره پخول او تيارول دى. (١)

## ٧١-بَاب: فَضْلِ مَنْ حَمَلَ مَتَاعَ صَاحِبِهِ فِي السَّفَرِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې باب په ذيل كښې امام بخارى رحمه الله په سفركښې دَ خپل ملګرى سامان وغيره دَ امداد په توګه دَ اوچتولو فضيلت بيانول غواړى. (٢)

[٢٧٣٣] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٣) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ سُلَامَى عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ يُعِينُ الرَّجُلَ فِي دَابَّتِهِ يُحَامِلُهُ عَلَيْهَا أَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ وَكُلُّ خَطْوَةٍ يَمْشِيهَا إِلَى الصَّلَاةِ صَدَقَةٌ وَدَلُّ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ [ر: ٢٥٦٠]

### تراجم رجال

١-**اسحاق بن نصر:** دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر بخارى سعدى رحمه الله دې. اكثر دَ خپل نيكه طرف ته منسوب كيدلو سره اسحاق بن نصر به يادېدلو. (٤)

٢-**عبدالرزاق:** دا ابوبكر عبدالرزاق بن همام صنعانى رحمه الله دې، دَ دوى حالات "كتاب الإيمان، باب حسن إسلام المرء" لاندې تيرشوى دى. (٥)

٣-**معمر:** دامعمر بن راشد ازدى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر تذكره دَ ((بدء الوحي)) شپږم حديث په ذيل كښې تيره شويده. (٦)

٤-**همام:** دا همام بن منبه بن كامل يمانى رحمه الله دې. دَ دوى حالات هم ((كتاب الإيمان باب حسن إسلام المرء)) لاندې تيرشوى دى. (٧)

٥-**ابوهريره رضي الله عنه:** دامشهور صحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

---

١) (حواله بالا-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٧٤)-
٣) قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث قدمر تخريجه فى كتاب الصلح باب فضل الإصلاح بين الناس...
٤) (ذدوى حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده فى الخلوة-
٥) (كشف البارى (ج٢ص ٤٢١)-
٦) (كشف البارى (ج١ص ٤٦٥)-
٧) (كشف البارى (ج٢ص ٤٢٨)-

دَ دوی تفصیلی حالات ((کتاب الإیمان باب أمور الإیمان)) لاندې تیرشوی دی. (١)

**دَ حدیث ترجمه** دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه روزانه دَ انسان په یو یو جوړباندې صدقه واجب ده. که یو سړې دَ چا په سورلئی کښې امداد کوی چه هغه په سورلئی سور کړی یا دَ هغه سامان په هغې باندې کیږدی نو دا هم صدقه ده. ښه او پاکه کلمه هم صدقه ده. هر قدم چه دَ مانځه دَ پاره اوچتولې شی هغه هم صدقه ده او لاره خودنه هم صدقه ده.

**تنبیه** دَحدیث باب څه تشریحات ((کتاب الصلح)) (٢) کښې تیرې شوی دی او هم دَ کتاب الجهاد ((باب من أخذ بالركاب ونحوه)) لاندې به نور تشریحات راځی.

**دَ حدیث دَ ترجمة الباب سره مطابقت**: ترجمة الباب سره دَ حدیث باب مناسبت دَ حدیث په دې ټکړه کښې دې ((يعين الرجل في دابته، يحامله عليها أويرفع عليها متاعه صدقة))

البته دلته کښې اشکال دا دې چه ترجمه خو دَ سفرده اودَ دې لاندې چه کوم حدیث راوړلې شویدې په هغې کښې خو دَ سرنه دَ سفرذکر نشته.

نو دَ دې جواب دا دې چه حدیث مطلق دې اودا خبره خو معلومه ده چه کله په حضرکښې او عام حالاتوکښې دَ چا دَ سامان اوچتولو دا فضیلت وی نو ښکاره خبره ده چه په حالت سفرکښې دَ چا سامان اوچتولو فضیلت خو به په طریقه اولی ډیر وی. دغه شان په ترجمه او حدیث کښې مطابقت حاصلیږی.(٣)

## ٧٢- بَاب: فَضْلِ رِبَاطِ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**دَ ترجمة الباب مقصد**: دَ اسلامی سلطنت او خلافت په سرحدونوباندې پهره ورکولو او خیال ساتل دا دَ اهل اسلام دَ حفاظت یو لویه ښکلې، محفوظ او مضبوطه طریقه ده. امام بخاری رحمه الله دلته دَ دې فعل فضیلت بیانوی. (۴)

**دَ رباط معنی**: الرباط—بكسر الراء وبالموحدة الخفيفة— معنی دا ده چه دَ کافرانودَ شر او فساد نه دَ مسلمانانو دَ حفاظت او صیانت په غرض هغه ځائ او مقام لازَ نیول چه دَ مسلمانانو او کافرانو په مینځ کښې وی (۵) کوم ته چه په عام عرف کښې سرحد وائی.

علامه ابن التین رحمه الله دا شرط هم لګولې دې چه دَ کوم ځائ حفاظت مرابط کول وی اودَ هغه وطن نه وی، همدغه شرط ابن حبیب دَ امام مالک رحمه الله نه هم نقل کړیدې. (۶) یعنی بقول ابن حبیب امام مالک رحمه الله هم دَ ابن التین بیان کړیشوې مذکوره شرط قائل دې.(٧)

---

١ ) (کشف الباری (ج١ص٤٥٩)-
٢ ) (کتاب الصلح باب فضل الإصلاح بين الناس...رقم(٢٧٠٧)-
٣ ) (عمدة القاری(ج ١٤ص ١٧٥) وفتح الباری (ج۶ص۸۵)-
٤ ) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٧٥)-
۵ ) (حواله بالا وفتح الباری (ج۶ص۸۵)-
۶ ) (حواله بالا-
٧ ) (حواله بالا وقدذكر العلامة العينى تعريفات أخرى للرباط ولكن اخترنا أشهرها-

په دې وجه په سلفو صالحينو کښې ډيرو حضراتو په سرحدونو استوګنه اختيار کړې ده (١)
خوحافظ صاحب او علامه عينى د ابن التين دا شرط رد ړې دې د دې دواړو وينا دا ده چه
په دې اطلاق کښې اشکال دې خکه چه بعضې وخت داسې کيږى چه د سړى خپل وطن وى
او هغه هلته ددشمن دفع کولو په نيت اقامت کړې وى (٢)
دې دپاره چه د رباط اجر او ثواب حاصل شى.

**قوله: وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ [آل عمران:٢٠٠]** :اود الله تعالى قول دې: اې د ايمان خاوندانو! صبرکوئى او
کلک اوسيږئ او ملاتړلې اوسيږئى اود الله تعالى نه ويريږئى دې دپاره چه تاسو کامياب شئ.

د امام بخارى رحمه الله عادت دې چه هغه د ترجمة الباب د اثبات د پاره بعض وخت د قرآن
آياتونه پيش کوى، نو دلته هم د هغه عادت مطابق هغه دا مذکوره آيت پيش کړيدې او په
دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره کړيده چه مرابط په قرآنى آيت کښې موجود دې دينه
همدغه د سرحد پهره او ساتنه مراد دى.

د دې آيت مفسرينو حضراتو ډير تفسيرونه کړى دى (٣) خو مصنف عليه الرحمة آيت مبارک
په دې مقام کښې ذکر کړو اود آيت مشهورترين تفسير ئى اختيار کړو کوم چه حسن بصرى
رحمه الله او قتاده رحمه الله نه مروى دې. دا دواړه حضرات د مذکوره آيت په تفسير کښې فرمائى

((اصبروا)) على طاعة الله ((وصابروا)) أعداء الله فى الجهاد ((ورابطوا)) فى سبيل الله.(٤)

**[٢٧٣٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (٥) أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا وَمَوْضِعُ سَوْطِ أَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا وَالرَّوْحَةُ يَرُوحُهَا الْعَبْدُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَوِ الْغَدْوَةُ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا** [ر:٢٦٤١]

## تراجم رجال

١-عبدالله بن منير: دا ابوعبدالرحمن عبدالله بن منير المروزى الزاهد رحمه الله دې.(٦)

٢-ابوالنضر: دا ابوالنضر هاشم بن قاسم ليثى خراسانى رحمه الله دې.(٧)

---

١) (فتح البارى (ج٦ص٨٥)-
٢) بورتنۍ حواله وقد ذكر العلامة العينى تعريفات أخرى للرباط ،لكن أخترنا أهرها)_
٣) (راجع لتلک الأقوال للمفسرين الفتح (ج٦ص٨٥) والعمدة (ج١٤ص١٧٥) وتفسير القرطبى (ج٤ص٣٢٢)
٤) (فتح البارى(ج٦ص٨٥)-
٥) (قوله: عن سهل بن سعد رضى الله عنه: الحديث قدمر تخريجه فى أوائل الجهاد باب الغدوة والروحة.....-
٦) (د دوى دحالاتو د پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الغسل والوضوء فى المخضب.....-
٧) ( د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب وضع الماء عندالخلاء-

۳- عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار: دا عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار مزنى عدوى رحمه الله دي. (۱)

۴- ابوحازم: دا مشهور زاهد ابوحازم سلمة بن دينار مدنى رحمه الله دې. (۲)

۵- سهل بن سعد الساعدى: دا مشهور صحابى رسول حضرت سهل بن سعد الساعدى الانصارى رضي الله عنه دې. (۳)

سمع أبا النضر: په دې عبارت كښې حذف دې اودَ عبارت تقدير په اصل كښې داسې دې. «انه سمع.....» مګرپه ليكلوكښې «أنه» اكثر حذف كولې شى.(۴)

قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: رباط يوم في سبيل الله خير من الدنيا وما عليها: حضرت سهل بن سعد الساعدى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه دَ الله تعالى په لار كښې يوه ورځ پهره وركول دنيا او څه چه په دې كښې دى دَ هغې نه بهتر دى.

قوله: وموضع سوط أحدكم من الجنة خير من الدنيا وما عليها: او په جنت كښې تاسو كښې دَ چا دَ پاره دَ يوې كوړې برابر ځائ دَ دنيا او څه چه په دې كښې دى دَ هغې نه بهتر دى.

**خير من الدنيا ومافيها نه دَ عدول كولووجه:** دَ حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه دَ باب دا حديث دَ «كتاب الجهاد» په شروع كښې هم تير شويدې.(۵) هلته دَحديث په الفاظوكښې «خيرمن الدنيا وما عليها» په ځائ «خيرمن الدنيا ومافيها» راغلې نو «فيها» نه «عليها» طرف ته دَ عدول كولو وجه څه ده؟

علامه عينى فرمائى چه په دې عدول كښې دا فائده ده چه «فيها» كښې معنى دَ ظرفيت او «عليها» كښې دَ استعلاء معنى موندلې شى او دا خبره واضح ده چه استعلاء كښې دَ ظرفيت په مقابله كښې عموم زيات دې او هغه ظرفيت نه قوى هم ده. نو مبالغه كښې دَ زياتوالى دَپاره «فيها» نه «عليها» طرف ته عدول كړې شويدې. (۶)

**دَ جنت كوړې(سوط) برابر ځائ دَ دنيا او مافيهانه بهتر كيدو وجه:** دَباب په حديث كښې ذكر

---

۱) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب إذا شرب الكلب فى إناء أحدكم....-

۲) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه....-

۳) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه....-

٤) (فتح البارى (ج۵ص۸۶)-

۵) (انظر الصحيح للبخارى كتاب الجهاد والسير باب الغدوة والروحة فى سبيل الله....-

۶) (عمدة القارى (ج ١٤ص۱۲۶)-

دی چه په جنت کښې د یوې کوړې برابر ځائ هم د دنیا اوځه چه په دې کښې دی د هغې نه بهتر دې د دې وجه بیانولو سره علامه مهلب رحمه الله فرمائي:

((وصار موضع سوط فی الجنة خیر من الدنیا وما فیها، من أجل أن الدنیا فانیة، وکل شئ فی الجنة وإن صغر فی التمثیل لنا — ولیس فیها صغیر — فهو أدوم وأبقی من الدنیا الفانیة المنقطعة، فکان الدائم خیر أمن المنقطع)) (١)

یعنی د جنت د یوې کوړې برابر ځائ د دنیا او مافیها نه ښکه بهتر دې چه دنیا فانی ده او د جنت هر څیز اګرچه د تمثیل په توګه زمونږ د پاره وړوکې وی خو دهغه ځائ یو څیز سپک او وړوکې نه دې. د همیشه دپاره دې او د ختمیدونکې او منقطع کیدونکې دنیا په مقابله کښې باقی پاتې کیدونکې دې، نو باقی پاتې کیدونکې څیز د منقطع څیز نه بهتر شو.

**د اسلامی سرحدونو د حفاظت په فضیلت کښې نور احادیث:** د اسلامی سرحدونو ساتنه او حفاظت (یعنی رباط) فضیلت کښې خو ډیر احادیث وارد شوی دی(٢)

نو استیعاب خو مقصد نه دې په دې وجه یو څو احادیث مونږ لیکو:

① حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

((رباط یوم ولیلة خیر من صیام شهر وقیامه، وإن مات جری علیه عمله الذی کان یعمله، وأجری علیه رزقه، وأمن الفتّان)).(اللفظ لمسلم) (٣)

د یوې شپې ورځې پهره ورکول د یوې میاشت د قیام او صیام نه بهتر دی او که چرې (په دې دوران) کښې هغه مړشو نو د هغه اعمال چه په دنیاکښې هغه کول، د هغه د پاره جاری وی او په هغه باندې به د هغه رزق جاری کولې شی اوهغه به د شیطان نه محفوظ وی.

② حضرت عثمان رضی الله عنه نه مرفوعا مروی دی:

((رباط یوم فی سبیل الله خیر من ألف یوم فیما سواه من المنازل))(٤)

د الله تعالی په لارکښې د یوې ورځې څوکیدار کول په نورو ځایونوکښې تیرو شوو زرو کالونه بهتر دی.

③ حضرت فضاله بن عبید رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی :((کل المیت یختم علی عمله، إلا المرابط، فإنه ینموله عمله إلی یوم القیامة، ویؤمّن من فتّان القبر)). (اللفظ لأبی داؤد) (٥)

---

١ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص) وعمدة القاری (ج١٤ص١٧٦)-

٢ ) (راجع لتلک الأحادیث الواردة فی فضل الرباط فی سبیل الله: الجامع الأحکام القرآن (ج٤ص ٣٢٤)-

٣ ) (الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب الإمارة باب فضل الربات فی سبیل الله عزوجل رقم (٤٩٣٨) والترمذی فی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل المرابط رقم (١٦٦٥) والنسائی فی کتاب الجهاد فضل الرباط رقم (٣١٦٩-٣١٧٠)-

٤ ) (الحدیث أخرجه الترمذی أبواب فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل المرابطة، رقم (١٦٦٧) والنسائی فی سننه الصغری کتاب الجهاد فضل الرباط رقم (٣١٧١-٣١٧٢) وابن ماجه أبواب الجاهد باب فضل الرباط فی سبیل الله رقم (٢٧٦٦)-

٥ ) (الحدیث رواه أبوداؤد أبواب الجهاد فی فضل الرباط رقم (٢٥٠٠) والترمذی أبواب فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل من مات مرابطا رقم (١٦٢١)-

د هر مړي په اعمالو باندې مهر لګولې شي (بندولې شي) سوا د مرابط نه. د هغه عمل د هغه د پاره د قيامته پورې زياتولې شي او هغه د قبر د فتنې نه په امن او محفوظ كيږي. او د حديث نور تشريحات د ((كتاب الجهاد)) په شروع كښې ((باب الغدوة والروحة في سبيل الله)) او ((باب الحور العين وصفتهن....)) كښې تيرشوى دى.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: د حديث ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې او هغه د حديث د شروع په جمله كښې ((رباط يوم في سبيل الله...)) كښې دې.

## ۷۳-بَاب: مَنْ غَزَا بِصَبِيٍّ لِلْخِدْمَةِ

**د ترجمة الباب مقصد**: حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله فرمائي چه د امام بخارى رحمه الله مقصد د دې ترجمه نه دې خبرې طرف ته اشاره كول دى چه ماشوم د جهاد مخاطب نه دې ليكن د دې باوجود هغه تبعا وضمنا بوتلل جائز دى. (۱)

خو شيخ الحديث حضرت محمدزكريا كاندهلوى رحمه الله فرمائي چه زما په نزد بهتر توجيه دا ده چه داسې اووئيلې شي چه امام بخارى رحمه الله ماشوم د خدمت په غرض د بوتللو د جواز اثبات كوى. دا توهم دفع كولو سره چه د بعض صغار صحابه كرامو باره كښې وارد شوى دى چه كله هغوى په غزوه كښې د شركت د پاره پيش شو نو هغوى ﷺ هغه واپس كړل مثلاً ابن عمر، زيدبن ثابت او اسامه بن زيد رضي الله عنهم اود دې توهم د ردكولو وجه دا ده چه دا حضرات صحابه كرام د قتال د پاره حاضر شوى وو نه چه د خدمت د پاره. نو د هغوى د خدمت د پاره د بوتللو اجازت دې ليكن د قتال په غرض بوتلل جائز نه دى. (۲)

[۲۷۳۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۳) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي طَلْحَةَ الْتَمِسْ غُلَامًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِي حَتَّى أَخْرُجَ إِلَى خَيْبَرَ فَخَرَجَ بِي أَبُو طَلْحَةَ مُرْدِفِي وَأَنَا غُلَامٌ رَاهَقْتُ الْحُلُمَ فَكُنْتُ أَخْدُمُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ كَثِيرًا يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ ثُمَّ قَدِمْنَا خَيْبَرَ فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهُ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيِّ بْنِ أَخْطَبَ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَكَانَتْ عَرُوسًا فَاصْطَفَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فَخَرَجَ بِهَا حَتَّى بَلَغْنَا سَدَّ الصَّهْبَاءِ حَلَّتْ فَبَنَى بِهَا ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ صَغِيرٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آذِنْ مَنْ حَوْلَكَ فَكَانَتْ تِلْكَ وَلِيمَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى صَفِيَّةَ ثُمَّ خَرَجْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ قَالَ فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّي لَهَا وَرَاءَهُ بِعَبَاءَةٍ ثُمَّ يَجْلِسُ عِنْدَ بَعِيرِهِ فَيَضَعُ

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۷۸) وعمدة القارى (ج ۱۴ص۱۷۶)-

۲) (الأبواب و التراجم للكاندهلوى (ج۱ص۱۹۷)-

۳) (قوله: عن انس بن مالك رضي الله عنه الحديث مرتخريجه فى كتاب الصلاة باب ما يذكر من الفخذ-

رُكْبَتَهُ فَتَضَعُ صَفِيَّةُ رِجْلَهَا عَلَى رُكْبَتِهِ حَتَّى تَرْكَبَ فَسِرْنَا حَتَّى إِذَا أَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِينَةِ نَظَرَ إِلَى أُحُدٍ فَقَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ ثُمَّ نَظَرَ إِلَى الْمَدِينَةِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا بِمِثْلِ مَا حَرَّمَ إِبْرَاهِيمُ مَكَّةَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي مُدِّهِمْ وَصَاعِهِمْ [ر: ٣٦٤]

## تراجم رجال

۱- قتيبه: دا شيخ الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد ثقفى رحمه الله دي دَ دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإسلام)) لاندې تيره شويده.(۱)

۲- يعقوب: دا يعقوب بن عبدالرحمن بن محمد اسكندرانى رحمه الله دي. (۲)

۳- عمرو: دا عمرو بن ابى عمرو مولى المطلب بن حنطب رحمه الله دي. (۳)

۴- انس: دا مشهور صحابى رسول ابوحمزه حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه....)) لاندې تيرشوى دى. (۴)

**قوله: أن النبى صلى الله عليه وسلم قال لأبى طلحة: التمس لى غلاما من غلمانكم يخدمنى حتى أخرج إلى خيبر:** دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرت طلحه رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه دَ خپلو ماشومانو نه زما دَپاره يو ماشوم اولټوه چه زما خدمت اوكړى ترهغه وخته پورې چه زه غزوه خيبردَپاره اوځم.

كلمه ((حتى)) دَنبى عليه السلام په كلام كښې دَ تعليل دَپاره ده، دَ غايت دَ بيان دَپاره نه ده. او هغه ((التمس)) سره متعلق ده نه چه ((يخدمنى))سره. اودَ كلام مقصد دا دې چه زما دَ پاره په سفركښې خدمت دَ پاره يو هلك اولټوه تردې چه زه مدينې منورې ته راواپس شم. (۵)

**يواشكال اودَ هغې جواب:** علامه داؤدى رحمه الله دَ حديث په دې ټكړه باندې اعتراض كړيدې او هغه دا چه ښكاره خو همدغه ده چه حضرت انس رضي الله عنه دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم خدمت دَ هغوى عليه السلام په رومبى ځل دَ هجرت نه پس مدينې منورې ته دَ راتلونه پس شروع كړو ځكه چه حضرت انس رضي الله عنه نه پخپله په صحيح احاديثوكښې مروى دى چه ((خدمت النبى صلى الله عليه وسلم تسع سنين)) (۶) او په يو روايت كښې ((عشر سنين)) (۷) دې اودَ خيبر واقعه ۷ هجرى

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۱۸۹)-
۲) (دَدوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر-
۳) (دَدوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب العلم باب الحرص على الحديث-
٤) (كشف البارى (ج۲ص۱۵۲)-
۵) (حاشية المسندى على البخارى (ج۲ص۱۵۲)-
۶) (الصحيح لمسلم كتاب الفضائل باب كان رسول الله صلى الله عليه وسلم أحسن الناس خلقا رقم (۶۰۱٤)
۷) (الصحيح البخارى كتاب الأدب باب حسن الخلق والسخاء رقم ۶۰۳۸)-

ده. نو دينه خو دا لازميږي چه حضرت انس ﷺ به صرف څلور كاله د حضور ﷺ خدمت كړې وي.
د دې اعتراض جواب دا وركړېشويدې چه د نبي اكرم ﷺ ابوطلحه ﷺ ته دا فرمائيل چه ((التمس لى غلاما من غلمانكم)) مطلب او معنى دا ده چه هغوى ﷺ سره به په دې سفركښې څوك څى چه د هغه تعين اوكړې شى نو حضرت ابوطلحه ﷺ حضرت انس ﷺ مقرركړو چه هم دې به د خدمت د پاره څى. نود التماس مطلب استئذان به وى چه په سفركښې د ملګرتيا د پاره چاته اجازت وركړه، دا مطلب نه دې چه د نوى سرنه څوك د خدمت د پاره اولټوه ځكه چه هغه خو د اول نه د خدمت د پاره موجود دې دغه شان به په دواړو احاديثوكښې تطبيق اوشى.(١)

**آيا ماشوم ته به غنيمت كښې حصه ملاويږى؟:** دلته ضمنا په دې مسئله باندې هم ځان پوهه كړئي كه ماشوم په غزوه كښې شريك وى كه د خدمت په نيت وى اوكه د قتال په نيت وى،ائمه ثلاثه امام ثورى، ليث بن سعد او ابوثور ﷺ په نزد به دوى ته سهم نشى وركولې بلكه امام به د خپلې مرضئى موافق څه مال وغيره وركوى. (٢)
خود امام مالك او امام اوزاعى ﷺ مسلك دا دې چه ماشوم ته به هم د مال غنيمت نه د بالغو كسانو په شان حصه ملاويږى. (٣)
خود دې دواړو حضراتو په اقوالو كښې فرق دا دې چه امام مالك ﷺ سهم په دې شرط سره مشروط كوى چه هغه ماشوم قتال هم كوى او د دې طاقت لرى نو د دې شرطونو په موجودګئى كښې دا ماشوم آزاد دې، مذكر دې او مقاتل هم دې.نو په دې وجه به ده ته هم د عامو خلقو سهم وركولې شى.
او امام اوزاعى ﷺ مطلقا د ماشوم د پاره په غنيمت كښې د حصې قائل دې. د هغه دليل دا دې چه رسول الله ﷺ په غزوه خيبركښې ماشومانوته هم په مال غنيمت كښې حصه وركړې وه. بيا روستو مسلمانانو خلفاؤ هم په ميدان جنګ كښې پيدا كيدونكو ماشومانو ته حصه وركوله. (۴)

**د جمهورو دلائل:** په دې مسئله كښې زمونږ يودليل خود حضرت سعيدبن المسيب دا اثر دې ((كان الصبيان والعبيد يحذون من الغنيمة إذا حضروالغزو فى صدر هذه الأمة))(۵) چه د دې امت په ابتداء كښې ماشومان او غلامان كه په غزا كښې حاضريدل نو هغوى ته به د غنيمت نه څه نه څه وركولې كيدل.

---

١) (فتح البارى (ج۶ص۸۷) وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٧)-
٢) (المغنى لابن قدامة (ج٩ص٢٠۶)-
٣) (حواله بالا-
٤) (المغنى لابن قدامة (ج٩ص٢٠۶) وإعلاء السنن (ج١٢ص٢٠٧)-
۵) (المغنى (ج٩ص٢٠۶)-

او جوزجانى په خپل سند سره روايت كړيدي چه تميم بن قرع المهدى په هغه لښكر كښې وو كوم چه په آخرڅل اسكندريه فتح كړې وه، نوتميم وائى ((فلم يقسم لى عمرو من الفئ شيئا)) چه عمرو بن العاص رضي الله عنه (چه دَ اسلامى لښكر مشر وو) ماته په غنيمت كښې هيڅ هم رانه كړه او وئى فرمائيل چه نابالغ هلك دې، په دې وجه زما دَ قوم او قريشو دَ څه خلقو په مينځ كښې جنګ كيدو كيدو خو بندشو، نو په قوم كښې چا اووئيل چه په تاسو خلقو كښې دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ صحابه كرامو نه څه خلق موجود دى هم دَ هغوى نه تپوس اوكړئى نو هغوى دَ ابونضر او عقبه بن عامر رضي الله عنه نه تپوس اوكړو نو په قوم كښې چا زما معائنه اُوكړه نو وئى كتل چه ويښته مې راتوكيدلې وو نو حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه ماته هم په غنيمت كښې حصه راكړه. (١) دَ دې واقعه نقل كولو نه پس امام جوزجانى رحمه الله فرمائى:

((هذا من مشاهير حديث مصر وجيده، ولأنه ليس من أهل القتال، فلم يسهم له كالعبد، ولم يثبت أن النبى صلى الله عليه وسلم قسم لصبى، بل كان لايجيزهم فى القتال فإن ابن عمر رضي الله عنه (٢) قال: عرضت على النبى صلى الله عليه وسلم وأنا ابن أربع عشرة سنة، فلم يجزنى فى القتال، وعرضت عليه وأنا ابن خمس عشرة فأجازنى)) (٣)

يعنى دا حديث دَ مصر مشهورو او ښهٔ احاديثونه دې او چونكه تميم بن قرع په جنګ كونكو كښې نه وو په دې وجه هغه ته په غنيمت كښې حصه ورنه كړې شوه. لكه څنګه چه غلام ته نه وركړې كيږې او داخبره په يوشان هم ثابته نه ده چه نبى عليه السلام دَ غنيمت نه يو ماشوم له څه وركړې وى. بلكه هغوى صلى الله عليه وسلم خو به ماشومان دَ جنګ دَ پاره نه پريخودل (نود غنيمت نه حصه وركولو څه معنى ده) دغه شان ابن عمر رضي الله عنه فرمائى چه دَ څوارلسو كالو په عمر كښې زه دَ حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې دَ جنګ دَپاره پيش كړېشوم نو هغوى صلى الله عليه وسلم ماته په جنګ كښې دَ شركت كولو اجازت رانه كړو او دَ پنځلسو كالو په عمركښې بيا پيش كړېشوم نو هغوى صلى الله عليه وسلم دَ شركت اجازت راكړو.

**دَ امام اوزاعى رحمه الله دَ دليل جواب:** تركومې چه دَ امام اوزاعى رحمه الله دَ دليل تعلق دې نودَ دې جواب دا دې چه ممكن ده چه راوى ((رضخ)) (۴) ((سهم)) سره تعبيركړې وى او دَ ((رضخ)) قائل جمهور هم دى، نو په دې وجه دا دَ امام اوزاعى رحمه الله دليل نشى كيدې.(۵)

---

١) (حواله بالا-

٢) (حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنه أخرجه البخارى كتاب الشهادات باب بلوغ الصبيان وشهادتهم رقم (٢٦٦٤) وكتاب المغازى باب غزوة الخندق رقم (٤٠٩٧) ومسلم كتاب الإمارة باب بيان سن البلوغ رقم (٤٨٣٧) والترمذى أبواب الجهاد باب ماجاء فى حد بلوغ الرجل رقم (١٧١١)وأبوداؤد أبواب الحدود باب فى الغلام يصيب الحد، رقم (٤٤٠٦).والنسائى أبواب الطلاق باب متى يقع طلاق الصبى؟ رقم (٣٤٦١)-

٣) (المغنى لابن قدامة (ج٩ص٢٠٦)-

٤) (الرضخ معناه: انهم (أى المرأة والعبد والصبى) يعطون شيئا من الغنيمة دون السهم. ولايسهم لهم كامل. ولاتقدير لما يعطونه بل ذلك إلى اجتهاد الإمام فإن رأى التسوية بينهم سوى بينهم وإن رأى التفضيل فضل (المغنى ج٩ص٢٠٤)-

٥) (المغنى (ج٩ص٢٠٦) وإعلاء السنن(ج١٢ص٢٠٧)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت د حديث په دې حصه كښې دې: ((التمس لي غلاما من غلمانكم يخدمني حتى أخرج إلى خيبر)) دَ څه نه چه ماشوم دَ خادم په توګه د بوتللو اجازت معلوميږي. (١)

## ٧٤- بَاب: رُكُوبِ الْبَحْرِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې باب په ذيل كښې امام بخارى رحمه الله دَ سمندرى سفر مشروعيت او جواز بيانول غواړى. (٢) اودا جواز او مشروعيت عام دې كه دَ سړو دَپاره وى اوكه دَ ښځودَپاره، دَ جهاد په غرض سره سمندرى سفر وى يا دَ حج او تجارت په نيت سره. (٣)

**ركوب بحركښې دَ اسلافو اختلاف:** په اسلافوكښې بعض حضرات ركوب بحر ناخوښوى او دينه به ئې منع فرمائيله. امام مالك رحمه الله فرمائي چه حضرت عمر رضي الله عنه به خلق دَ ركوب بحر نه منع كول، په دې وجه دَ هغوى په ژوند او خلافت كښې چا هم سمندرى سفرنه دې كړې. دهغوى دانتقال نه پس حضرت معاويه رضي الله عنه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه نه دَ ركوب بحر اجازت اوغوښتلو نو هغوى اجازت وركړو. معامله هم په دې باندې پاتې شوه. تر دې چه دَ حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خلافت راغلو نو هغه خلق بيا دَ ركوب بحر نه منع كړل. ليكن دا ممانعت دهغوى دَ ژونده پورې پاتې وو، روستوبيا دَسمندرى سفرسلسله دوباره شروع شوه. (۴) روستنو بعض علماؤ هم د ركوب بحر نه منع كوله، او امام مالك رحمه الله دَ ښځو باره كښې دَ دې خبرې قائل دې چه هغوى دحج يا جهاد په نيت سره هم په سمندرى سفركښې شركت نشى كولې. (۵)

دَ جمهورو مسلك دا دې چه سمندرى سفركه دَ ښځو دَپاره وى اوكه دَ سړو دَپاره ، دَ جهاد نيت وى اوكه دَ حج يا د تجارت په هرصورت كښې جائزدې. (۶)

اودَ باب حديث دَ جمهورو دليل دې، په كوم كښې چه مطلقا دَ ركوب بحر اجازت او اباحت موجود دې. (٧)

**يوه اهم تنبيه:** ليكن دا خبره واضحه كيدل پكار دى چه جمهورو دَ سمندرى سفر كوم اجازت وركړې دې هغه په يوشرط باندې مشروط دې، هغه دا چه سمندر پُرسكون وى او د هلاكت خطره نه وى ګنى دَ جمهورو په نزد هم دَ دې اجازت نشته. (٨)

---

١ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص١٧٧) وفتح البارى (ج ۶ص٨٧)-
٢ ) (ارشاد السارى (ج۵ص٩١)-
٣ ) (حواله بالا-
٤ ) (التمهيدلابن عبدالبر (ج١ص٢٣٣) وفتح البارى (ج ۶ص٨٨)-
٥ ) (حواله بالا وعمدة القارى(ج ١٤ص١٧٨)-
۶ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص١٨٧) وفتح البارى (ج ۶ص٨٨)-
٧ ) (فتح البارى (ج ۶ص٨٨) وعمدة القارى (ج ١٤ص١٧٨)-
٨ ) (المهيد(١ص ٢٣٤)-

علامه ابوعبيدهروی رحمه الله په ((غريب الحديث)) ذکر کړيدي چه نبی ﷺ دَ سمندری سفرنه دَ هغې دَ سيلاب او مشکلاتو دَ پيښيدو په صورت کښې منع فرمائيلې ده، دَ زهيربن عبدالله نه مرفوعا مروی دی چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی ((من رکب البحر إذا التج — أوقال: ارتج — فقد برئت منه الذمة — أوقال: فلايلومن إلا نفسه —)) يعنی چا چه دَ سمندر طوفان (يا اوفرمائيل چه موج وهلو) په وخت کښې په دې کښې سفر اوکړو، دَ ده نه دَ الله تعالی ذمه خلاصه ده. (يا ئې دا اوفرمائيل چه هغه دې خپل نفس ملامت کړی) (۱)

دَ الله تعالی نه دَ هغه ذمه خلاصيدو مطلب دا دې چه الله تعالی دَ حفاظت کومه وعده فرمائيلې ده هغه وعده به ختمه شی ځکه چه هغه خپل ځان پخپله هلاك کړو، دا مطلب نه دې چه دَ اسلام ذمه دَ ده نه خلاصه شوه ځکه چه دَ اسلام نه يو سړې هغه وخت خلاصيږی چه هغه دَ کفر لار اختيار کړی. (۲)

نودَ زهيربن عبدالله په روايت کښې دَ سمندری سفرنه ممانعت سمندری طوفان سره مقيد دې، دَ دې مخالف مفهوم همدغه دې چه سمندری طوفان نه کيدو په صورت کښې سمندری سفر جائز دې او هم دغه قول دَ علماؤ نه مشهور دې. که چرې دَ سلامتئی غلبه وی نو اوچه او لمده برابره ده. حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينی رحمه الله فرمائی:

((وفيه (أی فی حديث زهير) تقييد المنع بالارتجاج، ومفهومه الجواز عند عدمه، وهوالمشهور عن أقوال العلماء، فإذا غلبت السلامة فالبر والبحر سواء)) (۳)

**يوه بله تنبيه:** مونږ پورته دَ امام مالك رحمه الله مذهب نقل کړې وو چه هغه دَ ښځودَپاره سمندری سفرته جائز نه وائی، که هغه دَ حج دَ پاره وی او که دَ جهاد دَ پاره وی، خو روستو ائمه مالکيه هم دَ جمهورو علماؤ قول اختيار کړيدې. (۴)

[۲۷۳۷] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۵) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ حَدَّثَتْنِي أُمُّ حَرَامٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمًا فِي بَيْتِهَا فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يُضْحِكُكَ قَالَ عَجِبْتُ مِنْ قَوْمٍ مِنْ أُمَّتِي يَرْكَبُونَ الْبَحْرَ كَالْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَقَالَ أَنْتِ مِنْهُمْ ثُمَّ نَامَ فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا

---

۱) (حواله بالا وشرح ابن بطال (ج۵ص۸۹) والأدب المفرد (ج۲ص۶۰۲) باب من بات على سطح ليس له سترة رقم ۱۹٤)-

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۹) ومسندالإمام أحمد (ج۵ص۷۹)-

۳) (فتح الباری (ج۶ص۸۸) وعمدة القاری (ج۱٤ص ۱۷۸)-

٤) (التمهيد (ج۱ص۲۳۳)-

۵) (قوله: عن انس رضی الله عنه: الحديث مرتخريجه فی أوائل الجهاد باب الدعاء بالجهاد.....-

قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَيَقُولُ أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ فَتَزَوَّجَ بِهَا عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ فَخَرَجَ بِهَا إِلَى الْغَزْوِ فَلَمَّا رَجَعَتْ قُرِّبَتْ دَابَّةٌ لِتَرْكَبَهَا فَوَقَعَتْ فَانْدَقَّتْ عُنُقُهَا [ر:٢٦٣٦]

## تراجم رجال

۱- **ابوالنعمان:** دا ابوالنعمان محمد بن الفضل سدوسى بصرى رحمه الله دي. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: الدين النصيحة لله ورسوله.....)) لاندې راغلى (۱)

۲- **حماد بن زيد:** دا ابواسماعيل حماد بن زيدبن درهم ازدى رحمه الله دي، دَ دوى مختصر تذكره ((كتاب الإيمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا...﴾))لاندې تيره شويده. (۲)

۳- **يحيى:** دا مشهورتابعى يحيى بن سعيد انصارى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر تذكره ((بدء الوحى)) په رومبى حديث كښې او تفصيلى تذكره ((كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابًا من الإيمان))لاندې راغلې ده. (۳)

۴- **محمد بن يحيى بن حبان:** دامحمدبن يحيى بن حبان بن منقذ انصارى رحمه الله دي.(۴)

۵- **انس بن مالك:** دا مشهور صحابى ابوحمزه انس بن مالك رضي الله عنه دي. دَ دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب من الإيمان أى يحب لأخيه.....)) په ذيل كښې راغلې ده. (۵)

**قوله: قال: حدثنى أم حرام أن النبى صلى الله عليه وسلم قال يوما فى بيتها:** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائى چه حضرت ام حرام بنت ملحان رضي الله عنها ماته اووئيل چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم يوه ورځ (غرمه) زما په كوركښې قيلوله اوفرمائيله.

په دې مذكوره عبارت كښې ((قال يوما)) كښې ((قال)) راغلې، دا دَ قيلولة نه دې نه چه دَ قول نه اودَ قيلوله معنى دَ غرمې دَ آرام كولو ده. (۶)

**تنبيه:** حضرت ام حرام رضي الله عنها دَ حضرت انس رضي الله عنه ترور وه. دَدوى تفصيلى حالات ((كتاب الجهاد)) ((باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء)) وراندې بيان شوى دى.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په

---

۱ ) (كشف البارى (ج۲ص۷۲۸)-
۲ ) (كشف البارى (ج۲ص۲۱۹)-
۳ ) (كشف البارى(ج۱٤ص۲۳۸) و(ج۲ص۳۲۱)-
٤ ) (دَدوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب من تبرز على لبنتين-
۵ ) (كشف البارى (ج۲ص٤)-
۶ ) (عمدة القارى (ج۱٤ص۱۷۸)-

دې جمله کښې دې ((عجبت من قوم من أمتي يركبون البحر كالملوك على الأسرة)) (١)

## ٧٥- بَاب: مَنْ اسْتَعَانَ بِالضُّعَفَاءِ وَالصَّالِحِينَ فِي الْحَرْبِ

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی چه مقاتلینو او مجاهدینو ته د ضعیفانو او صالحانودعاګانې حاصلول پکار دی، دې د پاره چه د دعاګانو په برکت الله تعالی په جهاد کښې غلبه او فتح عطاکړی.(٢)

یا خو مطلب او مقصددا دې چه ضعفاء او صلحاء هم خان سره بوخی چه د هغوی کمزورتی او پرهیزګارتی او تقوی په وجه هغوی ته استقامت حاصل وی او الله تعالی ئی فتح او نصرت سره کامیاب کړی.

بهر حال که هغوی ته د دعاګانو درخواست اوکړیشی نود هغې دپاره هم په سنت کښې اصل موجود دې او که هغوی خان سره واخستې شی نودا هم ثابت دی.

[٢٧٣٨] وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَخْبَرَنِي أَبُوسُفْيَانَ قَالَ لِي قَيْصَرُسَأَلْتُكَ أَشْرَافُ النَّاسِ اتَّبَعُوهُ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ فَزَعَمْتَ ضُعَفَاءَهُمْ وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ [ر:٧]

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه حضرت ابوسفیان رضی الله عنه ماته اوخودل چه قیصر ماته اوونیل چه ما تانه تپوس کړې ووچه لوئ خلق د هغوی اتباع کوی که ضعیف یا کمزوری خلق؟ نو ستا ګمان همدغه دې چه کمزوری خلق او همدغه خلق د رسولانو متبعین وی.

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دلته امام بخاری رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د دې مشهور روایت نه دا جمله تعلیقاً نقل کوی کوم چه د ابوسفیان بن حرب رضی الله عنه او د قیصرروم په مکالمه باندې مشتمله ده،اودا روایت موصولاً ((بدء الوحی))کښې راغلی دی او هم هلته د هغې تخریج هم تیرشوې دې.(٣)

**دمذکوره تعلیق مقصد او ترجمة الباب سره مناسبت:** په ترجمة الباب کښې ضعفاء او صالحینو د استعانت مسئله ذکر ده،

د مذکوره تعلیق مقصد کښې هم د دې دلیل راپیداکول دی چه هرقل ضعفاء ته اصل اتباع الرسل اوګرځول لیکن دلته دې دا خبره واضحه وی چه استدلال د هرقل قول کیدو په بنیاد نه دې بلکه حضرت ابن عباس رضی الله عنه د حکایت او تقریر په بنیاد دې. دې نه د مذکوره تعلیق د ترجمة الباب سره مناسبت هم ښه واضحه کیږی. والله اعلم.(٤)

[٢٧٣٩] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ عَنْ طَلْحَةَ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ رَأَى سَعْدٌ (٥) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ لَهُ فَضْلًا عَلَى مَنْ دُونَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

١) (حواله بالا-
٢) (فتح الباری (ج٦ص٨٨) وعمدة القاری (ج١٤ص١٧٨)-
٣) (کشف الباری (ج١ص٤٧٧)-
٤) (فتح الباری (ج٦ص٨٨)-
٥) قوله: مصعب بن سعد: الحديث أخرجه النسائي في سننه الصغرى في الجهاد باب الاستصار بالضعيف رقم (٣١٨٠)

هَلْ تُنْصَرُونَ وَتُرْزَقُونَ إِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ

## تراجم رجاله

۱-سليمان بن حرب: دا ابوايوب سليمان بن حرب ازدى رحمه الله دي. دَ هغه مختصر تذكره «كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر....» لاندې راغلې دې.(۱)

۲-محمد بن طلحه: دا ابومصرف محمدبن طلحه بن مصرف رحمه الله دې. (۲)

۳-طلحه: دا ابومحمد طلحه بن مصرف اليامى رحمه الله دې. (۳)

۴-مصعب بن سعد: دا دَ مشهور صحابى حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه خوئ مصعب دې.(۴)

قوله: قال: رأى سعد رضى الله عنه أن له فضلا على من دونه: حضرت مصعب بن سعد رحمه الله فرمائى چه حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه ته دا گمان اوشو چه هغه ته په نورو باندې يوقسم فضيلت حاصل دې.

سعد نه مراد حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه دې، چه دَ مصعب پلار دې.(۵)

اودلته دَ «رأى» چه دَ روية نه مشتق دې «ظن» په معنى كښې دې يعنى گمان ئې اوكړو اودَ نسائى شريف په روايت كښې هم «ظن» راغلې دې.(۶)

او «من دونه» نه نور اصحاب رسول صلى الله عليه وسلم مراد دى. (۷)

دَنسائى شريف په روايت كښې دَدې نه پس دازياتې هم مروى دې «من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم» (۸)

اودَ پورتنى عبارت خلاصه دا شوه چه حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه ډيربهادر وو، مالدارو او رسول اكرم صلى الله عليه وسلم به هغه سره ډيره مينه كوله نودَ هغه دا خيال پيدا شو چه په نورو ډيرو صحابه كرامو هغه ته يودرجه فضيلت حاصل دې. (۹)

---

۱) (كشف البارى (ج۲ص۱۰۵)-
۲) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوگورئ كتاب العيدين باب استقبال الإمام الناس فى خطبة العيد-
۳) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوگورئ كتاب البيوع باب مايتنزه من الشبهات-
٤) ( دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوگورئ كتاب الأذان باب وضع الأكف على الركب فى الركوع-
۵) (فتح البارى (ج۶ص۸۸) وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٩)-
۶) (فتح البارى (ج۶ص۸۹) وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٩)-
۷) (حواله بالا-
۸) (انظر سنن النسائى كتاب الجهاد باب الاستنصار بالضعيف رقم (۳۱۸۰)-
۹) (فتح البارى (ج۶ص۸۹) وعمدة القارى (١٤ج١٧٩) او حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه تفصيلى حالات دَ پاره اوگورئ كشف البارى (ج۲ص۱۷۳)-

**دا روايت مرسل دې که متصل؟**: د باب دا رومبې حديث کوم چه حضرت مصعب بن سعد رحمه الله نه مروى دې، صورة خو مرسل ښکارى ځکه چه حضرت مصعب رحمه الله د نبى اکرم ﷺ دا قول «هل تنصرون الابضعفائكم؟» زمانه نه ده موندلې.د دې وجه دا ده چه حضرت مصعب رحمه الله تابعى دې نه چه صحابى اود ده پيدائش د عهدنبوى نه ډير د روستو زمانې دې، بياهغه ولته د خپل پلار حضرت سعدبن ابى وقاص نه هم د سماع تصريح اونکړه خود دې نه باوجود دا روايت مرسل نه بلکه متصل دې، ځکه چه همدغه روايت نورو مختلفو حضراتو محدثينو نقل کړيدې اود هغه د پلار نه د هغه د روايت تصريح موجود ده.(١)

همدغه روايت اسماعيل د معاذبن هانى په طريق باندې نقل کړيدې او په دې کښې دى «حدثنا محمد بن طلحة....عن مصعب بن سعد عن أبيه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم» خو بيا هم په دې کښې د رسول عليه السلام قول هم مرفوع دې، د دې رومبنئ حصه يعنى «رأى سعد رضي الله عنه أن له فضلا على من دونه» موجود نه ده. (٢)

دې نه علاوه اسماعيلى رحمه الله او امام نسائى رحمه الله (٣) دا روايت «مسعرعن طلحة بن مصرف عن مصعب عن أبيه» په دغه طريق نقل کړيدې. په طريق کښې هم «عن أبيه» تصريح موجود ده نو دا روايت متصل دې نه چه مرسل. (۴)

**قوله: فقال النبى صلى الله عليه وسلم: هل تنصرون وترزقون إلا بضعفائكم**

:نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ته امداد او رزق هم د دې کمزورو په وجه درکولې شى. د نسائى شريف په روايت کښې دا الفاظ دى: «إنما نصرالله هذه الأمة بضعفتهم بدعواتهم وصلاتهم وإخلاصهم»(٥) الله تعالى د دې امت نصرت د دې د کمزورو خلقو په وجه کړيدې د دوى د دعاګانو، مونځونو او اخلاص په بناء باندې.

**ضعيفان د الله تعالى د نصرت سبب دى**: اوس د دواړو طرقو خلاصه دا شوه چه د الله تعالى د طرف نه کوم نصرت وغيره نازليږى دهغې سبب همدا کمزورې خلق دى د چا په دعاګانو، مونځونو او اخلاص کښې چه دا برکت وى چه هغوى د الله تعالى نصرت د دې بنديګانو طرف ته متوجه کولو سبب جوړيږى. ځکه چه د هغوى زړه د دنيا د پرق پروق او د دې د ښائست نه خالى وى اود هغوى ضميرونه د دې ځيزونونه پاك وى چه هغوى د الله تعالى نه لرې کړى. هغوى د خپل ژوند مقصد صرف هم يو ځيز کيځودې وى چه څنګه به الله تعالى راضى کړى اود هغه خوشحالى به حاصله کړى، په دې وجه د هغوى زړونه پاك او د هغوى

---

١) (فتح البارى (ج١ص٨٨) وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٩)-

٢) (فتح البارى (ج٦ص٨٨) وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٩)-

٣) (سنن النسائى كتاب الجهاد باب الاستنصار الضعيف رقم (٣١٨)-

٤) (فتح البارى (ج٦ص٨٨)وعمدة القارى (ج١٤ص١٧٩)-

٥) ( سنن النسائى كتاب الجهاد باب الاستنصار الضعيف رقم (٣١٨)-

دعاگانې قبليږي. علامه ابن بطال د حديث د مذکوره جمله وضاحت کولو سره فرمائي:

((وتأويل ذلك أن عبادة الضعفاء ودعاءهم أشد إخلاصا وأكثر خشوعا لخلاء قلوبهم من التعلق بزخرف الدنيا وزينتها، وصفاء ضمائرهم مما يقطعهم عن الله، فجعلوا همهم واحدا، وزكت أعمالهم، وأجيب دعاؤهم)) (۱)

**په حديث کښې تواضع اوډ کبرنه بچ کيدلوترغيب:** نبی اکرم ﷺ چه حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه ته دا فرمائيلی دی چه ((هل تنصرون وترزقون إلا بضعفائكم؟)) په دې کښې د هغه د پاره تواضع اختيارولو ترغيب دې اوډ نبی علیه السلام مقصود دا هم ووچه د عامومسلمانانونه کبر ختم کړيشي، د دې د پاره هغوی ﷺ خطاب عام اوساتلو چه څوك دا اونه ګڼړی چه د رسول الله ﷺ د دې قول مبارك مخاطب څوك خاص سړې دې. علامه مهلب رحمه الله فرمائي:

((إنما أراد عليه السلام بهذا القول لسعد الحض على التواضع ونفي الكبر والزهد عن قلوب المؤمنين)) (۲)

**په حديث باب کښې د فضل نه څه مراد دې؟:** نبی اکرم ﷺ چه حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه ته دا کوم خطاب فرمائيلې دې ((هل تنصرون وترزقون إلا بضعفائكم؟)) چه هم د دې کمزورو په وجه ستا امداد کيږی او تاسوته رزق درکولې شی نود دې سبب څه وو؟ ځکه چه په ماقبل کښې مونږ د فضل وضاحت بهادرئی اومالدارئی سره کړيدې ليکن امام عبدالرزاق خپل مصنف (۳)کښې د مکحول رحمه الله نه مرسلاً يو روايت نقل کړيدې په کوم کښې چه دا زياتوالې هم مروی دې. ((قال سعد يا رسول الله أرأيت رجلا يكون حامية القوم ويدفع عن أصحابه أيكون نصيبه كنصيب غيره؟.....)) حضرت سعد رضی الله عنه اوفرمائيل يا رسول الله! ستاسو څه خيال دې چه يو سړې د خپل قول محافظ وی او د خپلو ملګرو دفاع کوی نو آياد هغه حصه هم (غنيمت کښې) د نورو په شان ده؟ نو حضور ﷺ اوفرمائيل ((ثكلتك أمك يا ابن أم سعد، وهل تنصرون وترزقون إلا بضعفائكم؟)) اې د ام سعد ځويه ستامور په تاواژاړه هم د دې کمزورو په وجه ستاسو امداد کيږی او تاسوته رزق درکولې کيږی.

نو په دې صورت کښې فضل نه مراد غنيمت کښې زياتوالې به وی اوډ باب د حديث جمله ((رأی سعد رضی الله عنه أن له فضلاً على من دونه)) مطلب به دا وی چه د حضرت سعد رضی الله عنه دا خيال شو چه هغه د خپل قوم محافظ اوډ هغوی د طرف نه دفاع کونکې دې په دې وجه هغه ته د غنيمت نه زياته حصه ملاويدل پکار دی.

نو نبی کريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه د مقاتلينو حصې برابر وی ځکه چه قوی او طاقتور ته که د هغه د بهادرئی او قوت په بناء اوچتولې حاصله ده نو کمزوروته به هم د هغوی د دعاګانو او اخلاص په بناء يوقسم ترجيح حاصله وی.(۴)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۹۰)-

۲) (حواله بالا-

۳) (مصنف عبدالرزاق (ج۵ص۳۰۳) رقم (۹۶۹۱)-

۴) (شرح ابن بطال(۵ص۹۱)وفتح الباری(ج۶ص۸۹)-

د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت: د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنی دې چه نبی اکرم ﷺ په حدیث کښې دا فرمائیلی دی چه په هره معامله کښې ستاسو نصرت د ضعفاؤ او صلحاؤ په وجه وی لکه څنګه چه د کلام د اطلاق نه په پوهه کښې راځی لیکن د دې د ټولو نه اهمه موقعه د جنګ میدان دې چه هلته ضعیفانو او صالحانو د دعاګانو په ذریعه مدد او برکت حاصل کړیشی نو په دې وجه د دې اهتمام کول پکار دی.(۱)

[۲۷۴۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرًا عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ (۲) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِي زَمَانٌ يَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيُقَالُ فِيكُمْ مَنْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ عَلَيْهِ ثُمَّ يَأْتِي زَمَانٌ فَيُقَالُ فِيكُمْ مَنْ صَحِبَ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ ثُمَّ يَأْتِي زَمَانٌ فَيُقَالُ فِيكُمْ مَنْ صَحِبَ صَاحِبَ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ [۳۴۴۹، ۳۹۹۹]

## تراجم رجال

۱-عبدالله بن محمد: دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله جعفی مسندی بخاری رحمه الله دې. د دوی مختصر تذکره «کتاب الإیمان باب أمور الإیمان» په ذیل کښې راغلی ده.(۳)

۲-سفیان: دا ابومحمدسفیان بن عینیه بن ابی عمران هلالی رحمه الله دې. د دوی مختصر حالات «بدء الوحی» په ړومبی حدیث کښې (۴)

او تفصیلی حالات «کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا» لاندې تیرشوی.(۵)

۳-عمرو: دا ابومحمدعمرو بن دینار جمحی مکی رحمه الله دې. (۶)

۴-جابر: دا مشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنه دې. (۷)

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۷۹)-

۲) (قوله: عن أبی سعید الخدری رضی الله عنهم: الحدیث أخرجه البخاری أیضًا کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الإسلام رقم (۳۵۹٤) وکتاب فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم باب فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم ومن صحب... رقم (۳۶٤۹) ومسلم فی صحیحه کتاب فضائل الصحابة باب فضل الصحابة ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم رقم (۶٤۶۷)-

۳) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۷)-

٤) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۸)-

۵) (کشف الباری (ج۳ص ۱۰۲)-

۶) (د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل-

۷) ددوی دحالاتو دپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء إلامن المخرجین من القبل والدبر

۵-ابوسعید الخدري: دا مشهور صحابی حضرت سعد بن مالك بن سنان ابوسعید الخدری رضی الله عنه دي. دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن)) لاندې تیره شویده.(۱)

**قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: يأتي زمان يغزو فئام من الناس فيقال: فيكم من صحب النبي صلى الله عليه وسلم؟ فيقال: نعم...:** حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چه هغوی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی یوه زمانه به داسې راځی چه دَ مسلمانانو یوه ډله به په غزوه کښې وی تپوس به اوکړیشی چه په لښکر کښې څوك داسې بزرګ شته چه دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په صحبت کښې پاتې وی؟ وئیلې به شی چه او، نو هغوی به په فتح او کامرانئی سره کامیاب کړیشی.

دَ "فئام" معنی: فئام —بكسر الفاء ويجوز الفتح أيضًا— معنی دَ ډلې ده دَ دې لفظ واحد نشته اودَ دې اطلاق همیشه په ډله باندې کیږی لکه لفظ قوم. (۲)

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دَ ابی سعید الخدری رضی الله عنه په حدیث کښې داسې دَ دریو طبقو او ډلوذکر کړیدې چه دَ هغوی موجودګی دَهریولښکر دَپاره دَ فتح او نصرت ضمانت دې. دَ هغوی دَ دعاګانو په برکت به الله تعالی فتح اوکامرانی ورکوی، نو پورته ذکرشوی عبارت کښې دَ اولنئی ډلې یا اولنئې طبقې بیان دې. هغه طبقه یا ډله دَ صحابه کرامو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین ده. دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا مبارك الفاظ دَ دې دریواړو طبقاتو په فضیلت باندې دال دې. اودَ دې حدیث تائید دَ یو بل حدیث شریف (۳) نه هم کیږی چه ((خير أمتي قرني، ثم الذين يلونهم، ثم الذين يلونهم))(۴)

**قوله: ثم يأتي زمان، فيقال: فيكم من صحب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم؟ فيقال: نعم، فيفتح:** بیا به یوه زمانه راځی نو تپوس به کولې شی چه آیا په لښکریانو کښې څوك داسې شته چه هغوی دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو صحبت لیدلې وی؟ وئیلې به شی چه او، نو فتح به کیږی. او په دې عبارت کښې چه دَ کومې ډلې ذکر دې هغه دَ تابعینو ډله ده، چه دَ صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین په صحبت کښې پاتې وو. دَ دې حضراتو تابعینو په شرکت او برکت به هم اهل اسلام ته فتح نصیب کیږی.

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۸۲)-

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۹۱) وفتح الباری ج۶ص۸۹) وعمدة القاری (ج۱ص۱۷۹)-

۳) (هذا الحديث رواه غير واحد من الصحابة والذى ذكرنا ألفاظه رواه عمران بن حصين رضى الله عنه أخرجه البخارى فى كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم باب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم....رقم (۳۶۵۰)-

۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص۹۱)-

**قوله: ثم يأتي زمان، فيقال: فيكم من صحب صاحب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم؟ فيقال: نعم، فيفتح:** بیا به یو وخت داسې راځي چه ونیلې کیږي به چه په تاسو کښې داسې څوک شته چه هغه د نبی کریم ﷺ د اصحابو د یو ملګری صحبت موندلې وی؟ نو وئیلې به شی چه او، نو هغوی ته به هم فتح نصیب کیږی.

په دې عبارت کښې چه د کومو حضراتو ذکر کړیشوېدې د هغوی نه تبع تابعین مراد دی چه د هغوی په برکت سره به هم اهل اسلام ته فتح او کامرانی حاصلیږی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت په دې معنی دې چه هرهغه سړې چاچه د نبی اکرم ﷺ صحبت اختیارکړو یا د نبی اکرم ﷺ د صحابو صحبت اوموندلو یا د نبی اکرم ﷺ د صحابو د اصحابو صحبت ئې اختیارکړو نو دا درې قسمه حضرات دی یعنی صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین، تابعین او تبع تابعین رحمهم الله نوهم د دې حضراتو په برکت به نصرت او کامیابی حاصلیږی، ځکه چه دا حضرات د دنیاپه کارونوکښې کمزورې اود آخرت په کارونوکښې کلك وو. علامه عینی رحمه الله فرمائی:

((مطابقته للترجمة من حيث إن من صحب النبي صلى الله عليه وسلم ومن صحب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم ومن صحب صاحب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم وهم ثلاثة: الصحابة، والتابعون، وأتباع التابعين، حصلت بهم النصرة لكونهم ضعفاء فيما يتعلق بأمر الدنيا أقوياء فيما يتعلق بأمر الآخرة)) (۱)

## ۷۶- بَاب: لَا يَقُولُ فُلَانٌ شَهِيدٌ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله دا فرمائی چه د یو سړی متعلق هم په یقینی توګه دا نشی وئیلې چه دا شهید دې ځکه چه د قطعی او یقینی علم لار وحی ده او ښکاره خبره ده چه دا لار اوس بند ده.(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی لکه چه امام بخاری رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه د حدیث طرف ته اشاره کړیده، چه هغه یو ځل خطبه ورکولو وخت کښې فرمائیل:

((تقولون في مغازيكم: فلان شهيد، ومات فلان شهيدًا، ولعله قد يكون قد أوقر راحلته، ألا لا تقولوا ذلكم، ولكن قولوا كما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من مات في سبيل الله أو قتل فهو شهيد)) (۳)

تاسو خلق په خپلو جنګونو کښې وایئې چه فلانکې شهید شواوفلانکې شهیدشو مړشو، نو کیدیشی چه هغه په خپله سورلئی باندې ډیر بوج بارکړې وی، واورئې دا مه وائې بلکه داسې وائی لکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی چه څوك د الله تعالی په لارکښې مړشو یا قتل شو نو هغه شهید دې.

---

۱) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۷۹)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص۹۰) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱۸۰)-
۳) (مسند الإمام أحمد (ج۱ص٤۱) وفتح الباری (ج۶ص۹۰) والإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (ج۸ص۶۸) کتاب السير، ذکر ایجاب الجنة لمن مات فی سبیل اق.... رقم (٤۶۰۱)-

[۲۷۸۳] قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِهِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ [ر: ۲۶۳۵، ۲۶۳۹]

حضرت ابوهریره رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم روایت کوی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه الله تعالی ته په ښه شان سره معلومه ده چه د هغه په لارکښې څوك جهاد کوی او هم الله تعالی ته ډیر علم دې چه د هغه په لارکښې څوك زخمی کیږی.

**دمذکوره تعلیق مقصد:** پورته ذکر شوې تعلیق امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې کومه دعوی کړیده چه د چا باره کښې دا مه وایئې چه فلانکې یقینی شهید دې، د هغې د اثبات د پاره نقل کړی دی. د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په تعلیق کښې دا راغلی دی چه د الله تعالی په لارکښې څوك جهاد کوی یا څوك صرف د الله تعالی په لارکښې زخمې کیږی دا هم الله تعالی ښه پیژنی ځکه چه دهغه د معرفت تعلق زړه او نیت سره دې او د نیتونو حال د الله تعالی نه علاوه چاته معلومیدې شی؟ نو د یو سړی متعلق هم دا نه دی وئیل پکار چه فلانکې شهید دې.

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه پورته ذکر شوې تعلیق دراصل په هغه دوو مختلفو احادیثو مشتمل دې کوم چه امام بخاری رحمه الله هم په یو تعلیق کښې رایوځائ کړل، د تعلیق رومبې جمله یعنی ((الله أعلم بمن یجاهد فی سبیله)) موصولاً ((کتاب الجهاد))(۱) په شروع کښې حضرت سعیدبن المسیب رحمه الله طریق سره تیرشوی دی اود تعلیق دوئمه جمله ((والله أعلم بمن یکلم فی سبیله)) هم ((کتاب الجهاد)) (۲) په شروع کښې د اعرج رحمه الله په طریق سره موصولاً تیرشویدې.

**دمذکوره تعلیق ترجمة الباب سره مطابقت:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ترجمة الباب سره د تعلیق مناسبت به په دې صورت کښې ظاهریږی چه د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه حدیث ((من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا فهو فی سبیل الله)) (۳) به هم په خیال کښې ساتې اود دې خبرې علم چه څوك د الله تعالی د کلمې د اوچتوالی د پاره جهاد کوی د آسمانی وحی نه بغیر نشی کیدې. چه د چا باره کښې هم ثابت شی چه هغه واقعی د الله تعالی په لار کښې دې نو په هغه به د شهادت حکم لګولې شی اود حضرت ابوهریره رضی الله عنه قول ((والله أعلم بمن یکلم فی سبیله)) مطلب دا دې چه د دې علم بغیر د الله تعالی نه بل چا ته نشی کیدې. چاته چه پخپله الله تعالی اطلاع او خبر ورکړو په دې وجه په جهاد کښې د هر قتل شوی متعلق د حکم دا اطلاق مناسب نه دې چه هغه د الله تعالی په لارکښې دې.(۴)

---

۱) (صحیح البخاری کتاب الجهاد باب أفضل الناس مؤمن معاهدبنفسه.... رقم (۲۷۸۷)-

۲) (صحیح البخاری کتاب الجهاد باب من یخرج فی سبیل الله عزوجل رقم (۲۸۰۳)-

۳) (صحیح البخاری کتاب الجهاد باب من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا رقم (۲۸۱۰)-

۴) (فتح الباری (ج۶ص۹۰)-

[۲۷۴۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ (۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْتَقَى هُوَ وَالْمُشْرِكُونَ فَاقْتَتَلُوا فَلَمَّا مَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى عَسْكَرِهِ وَمَالَ الْآخَرُونَ إِلَى عَسْكَرِهِمْ وَفِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ لَا يَدَعُ لَهُمْ شَاذَّةً وَلَا فَاذَّةً إِلَّا اتَّبَعَهَا يَضْرِبُهَا بِسَيْفِهِ فَقَالَ مَا أَجْزَأَ مِنَّا الْيَوْمَ أَحَدٌ كَمَا أَجْزَأَ فُلَانٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ أَنَا صَاحِبُهُ قَالَ فَخَرَجَ مَعَهُ كُلَّمَا وَقَفَ وَقَفَ مَعَهُ وَإِذَا أَسْرَعَ أَسْرَعَ مَعَهُ قَالَ فَجُرِحَ الرَّجُلُ جُرْحًا شَدِيدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نَصْلَ سَيْفِهِ بِالْأَرْضِ وَذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَى سَيْفِهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَخَرَجَ الرَّجُلُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ الرَّجُلُ الَّذِي ذَكَرْتَ آنِفًا أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَأَعْظَمَ النَّاسُ ذَلِكَ فَقُلْتُ أَنَا لَكُمْ بِهِ فَخَرَجْتُ فِي طَلَبِهِ ثُمَّ جُرِحَ جُرْحًا شَدِيدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نَصْلَ سَيْفِهِ فِي الْأَرْضِ وَذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ [۳۹۶۶، ۳۹۷۰، ۶۱۲۸، ۶۲۳۳]

## تراجم رجال

۱- قتيبه: دا شيخ الاسلام ابو رجاء قتيبه بن سعيد ثقفی رحمه الله دي د دوی حالات ((کتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإيمان)) لاندې تيرشوی دی. (۲)

۲- يعقوب بن عبدالرحمن: دا يعقوب بن عبدالرحمن بن محمدبن عبدالله الاسکندرانی رحمه الله دې. (۳)

۳- ابوحازم: دا مشهور زاهدابوحازم سلمه بن دينارمدنی رحمه الله دې. (۴)

۴- سهل بن سعد رضي الله عنه: دا مشهور صحابی رسول حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه دې.(۵)

---

۱ ) (قوله:عن سهل بن سعد الساعدی رضی الله عنه: الحديث أخرجه البخاری أيضًا فی كتاب المغازی باب غزوة خيبر رقم (٤٢٠٢، ٤٢٠٧) وكتاب الرقاق باب الأعمال بالخوتيم وما يخاف منها رقم (٦٤٩٣) وكتاب القدر باب العمل بالخواتيم رقم(٦٦٠٧) ومسلم كتاب الإيمان باب غلظ تحريم قتل الإنسان نفسه رقم (٣٠٦) وكتاب القدر باب كيفية خلق الأدمی فی بطن أمه وكتابة رزقه وعمله، وشقاوته وسعادته رقم (٦٧٤ی۱)-

۲ ) (کشف الباری (ج۲ص۱۸۹)-

۳ ) (د دوی حالاتودپاره اوګورئ کتا ب الجمعة باب الخطبة علی المنبر-

٤ ) (د دوی حالاتودپاره اوګورئ کتا ب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه-

۵ ) (حواله بالا-

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم التقى هو والمشركون فاقتتلوا فلما مال رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى عسكره، ومال الآخرون إلى عسكرهم:** حضرت سهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه نه مروي دي چه رسول الله ﷺ دَ (ملګرو سره) د مشرکانو سره مخامخ شو نو هغوی په خپل مينځ کښې شه جنګ اوکړو، بيا چه کله رسول الله ﷺ خپل دَ ډيرې ځائ ته واپس شو او مشرکان خپلو ځايونو ته.

**دَ حديث دَمضمون تعلق کومې غزا سره دې؟** حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه حديث کښې ذکر شوې واقعه دَ کومې يوې غزوې سره متعلق ده، چه کومه غزوه وه په دې کښې دَ محدثينو اختلاف دې. دَ علامه ابن جوزي رحمه الله خيال دې طرف ته دې چه دا واقعه د غزوه احد ده، خو حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني اونورو بعضو حضراتو خيال دې چه دا واقعه دَ غزوه خيبر سره متعلق ده. (١)

امام بخاري رحمه الله دَ حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه دَ حديث په ((كتاب الجهاد)) نه علاوه ((كتاب المغازى)) کښې باب غزوه خيبر (٢) لاندې هم ذکر کړيدې، دَ کوم نه چه معلوميږي چه دَهغه ذهن هم دغه دې چه دا واقعه د غزوه خيبر ده. (٣)

**قوله: وفى أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم رجل لايدع لهم شاذة ولافاذة إلا اتبعها، يضربها بسيفه:** اودَ رسول الله ﷺ په اصحابو کښې يوسړې وو چه دَ مشرکانو راتختيدلې يو سړې به ئې هم نه پريخودو مګردا چه هغه پسې به وو او هغه به ئې پخپله توره وهلو.

دلته دَ ((رجل)) نه مراد قُزمان ظفري دې اودَ هغه کنيت ابوالغيداق وو. (٤)

په پورته ذکر شوي عبارت کښې دَ هغه سړي شجاعت او بسالت بيان کړيشويدې چه هغه به په ميدان جنګ کښې چرته هم تلو دَ خپلې بهادرئ نښې به ئې لګولې يو تختيدلې سړې به هم دَ هغه نه نه بچ کيدلو.

**دَ شاذه او فاذه معنى:** علامه خطابي رحمه الله فرمائي چه ((شاذة)) هغې ته وائي چه دَ مخکينې نه په قوم کښې شامل وو بيادَ هغې نه جدا شو او ((فاذة)) هغې ته وائي چه دَ سرنه په قوم کښې هډو شامل نه وي. دا اوخودلې شو چه قزمان ظفري به چه چا پسې هم شو دَ هغه دَ ختمولو نه پس به ئې ساه اخستله. (٥)

---

١) دَ تفصيل دَپاره اوګورئ كشف البارى كتاب المغازى (ص٢١و٤٢٢) وعمدة القارى (ج١٤ ص١٨٠)
٢) (صحيح البخارى كتاب المغازى باب غزوه خيبر رقم (٤٢٠٣و ٤٢٠٧)-
٣) (كشف البارى كتاب المغازى (ص٤٢٢)-
٤) (فتح البارى (ج٧ص٤٧٢) وعمدة القارى (ج١٤ص١٨١)-
٥) (عمدة القارى (ج١٤ص١٨١)-

دَ علامه داودی رحمه الله وینا ده چه ((شاذة)) نه لویْ څیزونه او ((فاذة)) نه واړه څیزونه مراد دی او مطلب دا دې چه هغه به دَ هیڅ قسم سختئی اونرمئی پرواه نه کوله. (۱)

بیا دَ بعضو حضراتو رائې داده چه ((شاذة، فاذة)) کښې چه کومه تاء ده هغه دَ مبالغې ده، لکه دَ ((علامة، نسابة)) تاء ده. (۲)

خودَ بعضونوروحضراتو وینا ده چه دواړه لفظونه موصوف محذوف یعنی دَ ((نسمة)) صفت دې اودَعبارت تقدیرداسې دې ((لایدع لهم نسمة شاذة ولافاذة)) (۳)

**قوله: فقالوا: ما أجزأ منا الیوم أحد کما أجزا فلان:** صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین فرمائیلی چه نن زمونږ دَ طرف نه یوداسې سړې اونه جنګیدلو لکه چه فلانکې سړې اوجنګیدلو.

دَ باب په روایت کښې ((فقالوا)) راغلې دې او ظاهره ده چه دَدې ضمیر مستتر صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین طرف ته راجع دې لیکن دَ کشمیهنی نسخه کښې دَ کتاب المغازی په روایت کښې ((قلت)) ذکردې که دا روایت صحیح او محفوظ دې نو قائل به حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه وی. (۴)

**قوله: فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: أما إنه من أهل النار:** نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه واورئی هغه د دوزخیانونه دې.

یعنی چه کله هغوی صلی الله علیه وسلم اوکتل چه صحابه کرامو رضی الله عنهم مسلسل دَ هغه سړی بار بار تعریفونه کول نو هغوی صلی الله علیه وسلم دَ وحی په ذریعه دَ هغه دَ جهنمی کیدو اوفرمائیل ځکه چه هغه سړې باطنًا منافق وو او خپل منافقت ئې پټ کړې وو. (۵)

کلمه ((أما)) دَ میم دَ تخفیف سره استفتاحیه ده، په دې وجه دَ دې نه پس چه کوم ((إنه)) همزه ده هغه مکسور دې. (۶)

**قوله: فقال رجل من القوم: أنا صاحبه:** نو په حاضرینوکښې یو سړی اووئیل زه به هغه سره اوسیږم.

((رجل)) نه مراد حضرت اکثم بن ابی الجون الخزاعی رضی الله عنه مراد دې. په طبرانی کښې دَ هغوی روایت دې چه : ((قال: قلنا: یارسول الله، فلان یجزئ فی القتال، قال: هو فی النار، قلنا: یارسول

---

۱) (حواله بالا-

۲) (حواله بالا وفتح الباری (ج۷ص۴۷۲)-

۳) (حواله بالا-

۴) (إرشاد الساری (ج۵ص۹۲) و انظر کشف الباری کتاب المغازی (ص۴۲۳)-

۵) (إرشاد الساری (ج۵ص۹۲)-

۶) (حواله بالا-

الله، إذا كان فلان في عبادته واجتهاده ولين جانبه في النار، فأين نحن؟ قال: ذلك إخبات النفاق، وهو في النار، قال: فكنا نتحفظ عليه في القتال)) (١)

يعني حضرت اكثم رضي الله عنه فرمائي چه مونږ اووئيل يا رسول الله فلانكى خو په جنګ كښې كمال ښكاره كړو. نو نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل هغه دوزخى دې. نو مونږ (په حيرانتيا) اووئيل يارسول الله چه يو سړې دَ خپل عبادت، محنت او نرم طبيعت نه باوجود دوزخى دې نو مونږ به چرته يو؟ نو هغوى ﷺ اوفرمائيل چه دا تول دَنفاق خباثت او خرابي ده او هغه دوزخى دې. حضرت اكثم رضي الله عنه فرمائي چه مونږ تولو په جنګ كښې په هغه نظر ساتلو.

دَ دې تول تفصيل نه به معلومه شوې وى چه حضرت اكثم رضي الله عنه ولې فرمائيلې وو چه ((أنا صاحبه)) چه زه به هغه سره اوسيږم ځكه چه دَ هغه كار ظاهرى ښه وو، كله چه رسول الله ﷺ داخودل چه هغه دوزخى دې نولازمى خبره ده چه دَدې به عجيبه سبب وى دَ څه په وجه چه دَ هغه په دوزخيانو كښې شمير اوشو.(٢)

((قال: فخرج معه، كلما وقف وقف معه، وإذا أسرع أسرع معه، قال: فجرح الرجل جرحا شديدًا، فاستعجل الموت، فوضع نصل سيفه في الأرض وذبابه بين ثدييه، ثم تحامل على سيفه فقتل نفسه))

حضرت سهل رضي الله عنه فرمائي چه هغه (اكثم) هغه سره اووتلو، كوم ځائ كښې چه به هغه ولاړ وو هلته به دې هم اودريدو او كله به چه هغه منډې وهلې نو ده به هم هغه سره منډه وهله، حضرت سهل رضي الله عنه وائي بيا هغه سړې سخت زخمي شو نو هغه په مركيدو كښې تندى اوكړه. دَ خپلې تورې موتې ئې په زمكه او دَ هغې څوكه ئې دَ خپلو دواړو سينو په مينځ كښې كيخودله او په توره راتيټ شو او خپل ځان ئې قتل كړو.

مطلب دا چه حضرت اكثم بن ابى الجون رضي الله عنه هم هغه سره وو، نو چه كوم ځائ به هغه اودريدو نو دې به هم اودريدو، او چه كوم ځائ كښې به هغه تندى كوله او منډه به ئې وهله نو حضرت اكثم رضي الله عنه به هم منډه وهله، دَ هغه دَ حال مشاهده ئې مقصد وو، آخر هغه منافق سړې په جنګيدو كښې زخمى شو او دَ زخمونو طاقت ئې نشو راوړلې نو په دې وجه ئې په مركيدو كښې تندى اوكړه او ځان ئې پخپله مړ كړو.

**نصل سيفه كښې نصل نه څه مراد دي؟:** حضرت ګنګوهى رحمه الله دَ ((نصل)) دوه معنى مرادى بيان كړى دى:

① دَ ((نصل)) نه مجازًا دَ تورې مقبض (يعنى موټې) مراد دې. دَ دې وجه دا ده چه په اصل كښې ((نصل)) مطلقا دَ تورې اوسپنې ته وائى (٣)

نو علامه طاهر پټنى هندى رحمه الله فرمائي ((النصال: وهو حديدة السيف)) (٤)

---

١) (فتح البارى (ج٧ص٤٧٣) والطبرانى فى الكبير (ج١ص٢٩٦) ومجمع الزوائد (ج٧ص٢١٤)-
٢) (إرشاد السارى (ج٥ص٩٢) وشرح النووى على مسلم (ج١ص٧٣)
٣) (لامع الدرارى (ج٧ص٢٣٧)-
٤) (مجمع بحار الأنوار (ج٤ص٧١٦)-

② ((لعل سيفه)) نه پوره توره مراد ده.(١) حضرت شيخ الحديث محمد زكريا صاحب رحمه الله فرمائى چه دَ دې تائيدَ ((كتاب المغازى)) دَ دې روايت نه هم كيږى كوم كښې چه ((فوضع سيفه بالأرض....)) راغلى دى.(٢)

او((ذباب)) دَ تورې مخ ته وائى يا هغه حصې ته دكوم طرف نه چه واركولې شى. (٣)

**قوله: فخرج الرجل إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: أشهد أنك رسول الله، قال: وماذاك؟ قال: الرجل الذى ذكرت آنفا أنه من أهل النار، فأعظم الناس ذلك، فقلت: أنالكم به، فخرجت فى طلبه.... فقتل نفسه:**

هغه سړې (يعنى حضرت اكثم رضى الله عنه) رسول الله ﷺ له راغلو او وئى وئيل چه زه ګواهى وركوم چه ته دَ الله رسول ئى. هغوى ﷺ اوفرمائيل څه اوشو؟وئى وئيل چه تاسو دَ كوم سړى باره كښې اوس فرمائيلى وو چه هغه دوزخى دې نو خلقودا خبره ډيره سخت اوګنړله، ما وئيل چه زه تاسوله اطمينان دركوم،زه دَهغه په نګرانئى كښې لاړم بيا هغه سخت زخمى شو او هغه دَ مرګ دَ پاره تندى اوكړه اودَ خپلې تورې موټې ئى په زمكه او دَ هغې څوكه ئې دَ خپلو دواړو سينو په مينځ كښې كيخوده اوبه توره راتيټ شو او خپل ځان ئى قتل كړو.

په ذكر شوى عبارت كښې حضرت اكثم رضى الله عنه نبى كريم ﷺ ته دَ هغه منافق دَ خودكشې كولو خبر وركوى چه كله هغوى ﷺ هغه دوزخى اوګرځولو نو دَ حضور ﷺ وينا په نورو خلقو سخته اولګيدله چه دومره بهادر سړې څنګه دوزخى كيدې شى؟ نو ما دَ هغوى دَ مطمئن كولو دَ پاره اووئيل چه زه دَ هغه باره كښې اوس تاسو خلقو ته خبر راوړم.... بيا چه هغه څه ليدلى وو هغه ئى نبى كريم ﷺ ته بيان كړل او دَ هغوى ﷺ دَ برحق نبى كيدو ګواهى ئې وركړه.

**ثم تحامل...** دَ تحامل معنى مائل كيدو او تيټيدو ده.(۴)

**يو اعتراض اودَ هغې جواب:** علامه كرمانى رحمه الله دلته يو اعتراض نقل كړې دې، دَ اعتراض تقرير دا دې چه خودكشى كول خو معصيت دې اودَ اهل سنت مشهور او مسلّمه قاعده ده چه ((العبدلايكفر بالمعصية)) نو بيا خو هغه خودكشى كونكې جنتى دې څكه چه هغه مؤمن دې نو رسول الله ﷺ څنګه اوفرمائيل چه هغه دوزخى دې؟(۵)

ددې اعتراض ذكركولونه پس هغه پخپله دَ دې مختلف جوابونه وركړى دى:

① كيديشى چه رسول الله ﷺ ته دَ وحى په ذريعه دَ دې خبرې علم شوې وى چه هغه مؤمن

---

١) (لامع الدرارى (ج٧ص٢٣٧)-

٢) (تعليقات لامع الدرارى (ج٧ص٢٣٧)-

٣) (إرشاد السارى (ج٥ص٩٣) وعمدة القارى (ج١٤ص١٨١)-

٤) (عمدة القارى (ج١٤ص١٨١)-

٥) (شرح الكرمانى (ج١٢ص١٦٣)-

نه دي په دې وجه د هغه د دوزخي کيدو نې اوفرمائيل.
② يا دا چه هغه به زردې چه مرتدشي او خپل نفس حلالول به ورته حلال ښکاره شي او ښکاره خبره ده چه ((استحالة المعصية كفر))
③ يا دَ هغه دَ دوزخي کيدو مطلب دا دې چه هغه دَ هغه ګناهګارانو نه دې چه دوزخ کښې به داخليږي بيا به دَ هغه ځائ نه راوځي. (١)
ليکن علامه عيني رحمه الله دَ علامه کرماني دا اعتراض او دَ دې جوابونه تکلف ګرځولې دې او ليکي: ((لواطلع الكرماني على أنه كان معدودا في المنافقين أو على قوله: ماقاتلت على دين، لما تكلف بهذه الترديدات)) (٢)
که کرماني رحمه الله ته دَ دې خبرې علم وې چه دَ هغه شمير په منافقانو کښې وو نو هغه ته به دَ دې قول خبروو چه زه دَ يو دين حفاظت کولو دَ پاره نه جنګيږم نو هغه ته به دَ دې ترديداتو هيڅ ضرورت نه وو.

((فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم عند ذلك: إن الرجل ليعمل عمل أهل الجنة فيما يبدو للناس، وهو من أهل النار، وإن الرجل ليعمل عمل أهل النار فيما يبدو للناس، وهو من أهل الجنة))
نو په دې موقع رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه يو سړې په ظاهره دَ خلقو په خيال کښې دَ جنتيانو کار کوي، خو هغه مآلاً دَ دوزخيانو نه وي او يو سړې دَ خلقو په خيال کښې په ظاهره د دوزخيانو کارکوي حالانکه هغه مآلاً دَ جنتيانو نه وي.
**دَ نبي d مذکوره ارشاد مطلب:** يعني يوسړې هغه وي چه خلق دَ هغه عمل ته ګوري نو دا نتيجه راوباسي چه دا سړې جنتي دې ليکن دهغه انجام خراب وي او دوزخ دَ هغه ټکانه وي. او يو سړې داسې وي چه په ظاهره دَ هغه اعمال خراب وي دَ څه په وجه چه خلق دا نتيجه اخذ کوي چه د ده ځائ دوزخ دې ليکن دَ هغه انجام ښه وي او جنت دَ هغه ځائ شي. په دې وجه سړي له پکار دې چه په خپلو نيکو عملونو باندې دهوکه اونه خوري اودغه شان ګناهګار دې دَ الله تعالى دَ رحمت نه نااميده کيږي نه. علامه نووي رحمه الله فرمائي:
((فيه: التحذير من الاغترار بالأعمال، وأنه ينبغي للعبد أن لايتكل عليها، ولايركن إليها، مخافة من انقلاب الحال للقدر السابق، كذا ينبغي للعاصي أن لايقنط، ولغيره أن لايُقنطه من رحمة الله تعالى)) (٣)
يعني حديث کښې دَ اعمالو په وجه دهوکه خوړلو ذکر دې او دا چه بنده له پکار دي چه صرف په نيکو اعمالو دې تکيه نه کوي او نه دې بهروسه کوي، هسې نه چه په وړاندينی تقدير سره دَ هغه دا ښه حالت په خرابِ حال باندې بدل نشي، دغه شان ګناهګار بنده له هم پکار دي چه نااميده کيږي دې نه او دَ نورو دَ پاره هم دا مناسب دي چه هغوی دَ الله تعالى دَ رحمت نه نااميده نه کړي.

---

١) (شرح الكرماني (ج١٢ص١٦٤)-
٢) (عمدة القاري (ج١٤ص١٨١)-
٣) (شرح النووي (ج١ص٧٣)-

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دلته دا اشكال پيداكيږي چه د ترجمة الباب د حديث سره مناسبت نشته ځكه چه ترجمه خو په دې باب قائمه كړېشويده چه چاته بغير د تحقيق نه شهيد مه وائې. د دې خبرې خو په حديث كښې د سرنه څه ذكر نشته.
نود حديث ترجمة الباب سره مناسبت په قول د علامه ابن المنير رحمه الله په دې معنى دې چه صحابه كرامو رضي الله عنهم هغه سړي (قزمان) د پاره د جهاد د وجه نه دا گواهى وركړې وه، اوس كه هغه قتل شوې وې نو لازمى خبره وه چه صحابه كرامو به د هغه د شهادت گواهى وركوله او هغه به ئې شهيد گرځولو نو چه كله دا خبره معلومه شوه چه د هغه قتال او جهاد د الله تعالى د پاره نه وو بلكه هغه د قوميت د وجه نه جنگيدلو نو معلومه شوه چه هر مقتول فى الجهاد ته شهيد نشى وئيلې. ځكه چه د دې احتمال دې چه هغه هم د دغه سړى (قزمان) په شان وى. دا جدا خبره ده چه هغه ته په احكام ظاهرى كښې د شهيد حكم وركولې شى. همدغه وجه ده چه سلفو د بدر او احد وغيره مقتولين شهيدان گرځولى دې او دينه مراد حكم ظاهرى دې چه په غالب گمان باندې مبنى دې. (١)

## ٧٧- بَاب: التَّحْرِيضِ عَلَى الرَّمْيِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله د غشو ويشتلو ترغيب وركوى ځكه چه دا په جهاد كښې په كار راتلونكې څيز دې. او په دې سره د دښمن په مقابله كښې قوت حاصليږى نو په دې وجه غشى ورول زده كول پكار دى. (٢)

**قوله:** وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ: [الانفال: ٦٠]: اود الله تعالى قول د دې (كافرانو) د پاره چه څومره قوت او اسونه ستاسو د پاره ممكن وى تياركړئى په دې سره به تاسو د الله تعالى دښمنان او خپل دښمنان ويروئى.

**أيت مبارك كښې "قوة" نه څه مراد دې؟:** حافظ صاحب او علامه عنى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى د ترجمة الباب په ذيل كښې مذكوره آيت مبارك ذكر كولو سره دې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه د ((قوت)) نه مراد ((رمى)) ده، ځكه چه په يوحديث كښې د ((قوت)) تفسير په ((رمى)) سره كړېشويدې. حضرت عقبه بن عامر جهنى رضي الله عنه (٣) نه مروى دى ((سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو على المنبر يقول: ﴿وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة﴾ ألا إن القوة الرمى — ثلاثا (٤)

---

١) (فتح البارى (ج٦ص ٩٠) وعمدة القارى (ج ١٤ص ١٨٠)-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ص ١٨١)-
٣) (الحديث أخرجه مسلم كتاب الإمارة باب فضل الرمى والحث عليه رقم (٤٩٤٦) وأبوداؤد كتاب الجهاد باب فى الرمى رقم (٢٥١٤) والترمذى أبواب التفسير باب ومن سورة الأنفال رقم (٣٠٨٣) وابن ماجه أبواب الجهاد باب الرمى فى سبيل الله رقم (٢٨١٣)-
٤) (فتح البارى (ج٦ص ٩١) وعمدة القارى (ج ١٤ص ١٨١)-

**دَ رمى تخصيص بالذكر وجه:** علامه قرطبى رحمه الله آيت مبارك كښې دَ ((قوت)) تفسير ((رمى)) سره كول او ((رمى)) مخصوص بالذكر كولو وجه بيانولو سره فرمائى:

((وإنما فسر القوة بالرمى، وإن كانت القوة تظهر بإعداد غيره من الات الحرب، لكون الرمى أشد نكاية فى العدو وأسهل مؤنة، لأنه قد يرمى رأس الكتيبة، فيصاب فينهزم من خلفه)) (١)

يعنى نبى اكرم ﷺ دَ ((قوت)) تفسير ((رمى)) سره كړيدې، سره دَ دې چه دَ ((قوت)) اظهار دَ جنګ نورو آلاتو تيارى سره هم كيږى خو دَ دې وجه دا ده چه دَ غشو ورولو اثر په دښمن باندې سخت او دَ غشو بوج په خپل ځان باندې سپك وى ځكه چه كله ناكله دَ لښكر په وړاندينئى حصه باندې غشى ورولې كيږى نو هغوى دَ غشو ښكار شى او ماتې خوړلوسره روستو تختى او دَ تيښتې لار اختياروى.

علامه طيبى رحمه الله دَ پورتنى آيت نحوى تعليل كولوسره فرمائى: ((ما استطعتم)) كښې ((ما)) موصوله ده او دَ دې عائد يعنى ضمير محذوف دې او ((من قوة)) دَ دې دَپاره بيان دې او مراد ترې نفس قوت دې.(٢)

نور فرمائى چه په دې بيان او مبين كښې اشاره دې خبرې ته ده چه دا دَ غشو ورولو تيارى بغير دَ ممارست او اوږد مشق پابندئى نه بغير نه صحيح كيږى او دَ جنګ په آلاتو كښې دَ كمان او غشى نه علاوه بل څه څيز نشته په كوم كښې چه دا دومره ممارست او پابندى ضرورى وى، په دې وجه نبى اكرم ﷺ بار باردَ ((قوة)) تفسير ((رمى)) سره فرمائيلې دې. (٣)

او دَ آيت مبارك سره متعلقه بعض نورو تفصيلات ((باب من احتبس فرسا فى سبيل الله)) لاندې په ماقبل كښې راغلى دى.

[٢٧٤٣] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ (٤) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى نَفَرٍ مِنْ أَسْلَمَ يَنْتَضِلُونَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا ارْمُوا وَأَنَا مَعَ بَنِي فُلَانٍ قَالَ فَأَمْسَكَ أَحَدُ الْفَرِيقَيْنِ بِأَيْدِيهِمْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَكُمْ لَا تَرْمُونَ قَالُوا كَيْفَ نَرْمِي وَأَنْتَ مَعَهُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْمُوا فَأَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ [٣٣١٦،٣٣١٣]

---

١ ) (الجامع لأحكام القرآن (ج٨ص٣٧)-
٢ ) (شرح الطيبى (ج٧ص ٣١٤)-
٣ ) (حواله بالا-
٤ ) (قوله: سلمة بن الأكوع رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى ﴿واذكر فى الكتاب إسمعيل إنه كان صادق الوعد﴾ رقم (٣٣٧٣) وكتاب المناقب باب نسب اليمن إلى إسمعيل منهم: أسلم بن أفصى بن حارثة بن عمرو من خزاعة رقم (٣٥٠٧)-

# تراجم رجال

۱- عبدالله بن مسلمه: دا ابوعبدالرحمن عبدالله بن مسلمه بن قعنب حارثی رحمه الله دي.
دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن)) لاندې تیره شویده. (۱)

۲- حاتم بن اسماعیل: دا ابواسماعیل حاتم بن اسماعیل کوفی رحمه الله دي.(۲)

۳- یزید بن ابی عبید: دا یزیدبن ابی عبید مولی سلمة بن الاکوع رحمه الله دي.

۴- سلمة بن الاکوع: دا مشهور صحابی حضرت سلمة بن الاکوع رضی الله عنه دي. (۳)

**قوله: قال: مرالنبی صلی الله علیه وسلم علی نفر من أسلم ینتضلون:**
حضرت سلمة بن الاکوع رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم څه خلقو سره خواکې تیرشو په دې وخت کښې چه هغوی غشی ویشتل.

((أسلم)) نه مراد بنو اسلم دی، چه دَ عربو مشهوره قبیله وه. (۴)

((ینتضلون)) انتضال نه مشتق دې او دَ دې معنی دَ غشو ویشتلو ده. (۵) اودا جمله فعلیه ماقبل دپاره حال واقع کیږی. (۶)

**قوله: فقال النبی صلی الله علیه وسلم: ارموابنی إسماعیل فإن أباکم کان رامیا ارمواوأنامع بنی فلان:** نبی علیه السلام فرمائیلې اې بنواسماعیل! غشی اولئی ځکه چه ستاسو پلاربه هم غشی ویشتل، غشی اولئی او زه دَ فلانکې قبیلې سره یم.

**بنی فلان نه څوک مراد دې؟:** حدیث کښې ((وأنا مع بنی فلان)) راغلی او مراد دَدینه ((ابن الأدرع)) دی اودَ ابن الادرع نوم محجن دې. صحیح ابن حبان (۷) او مسند بزاز (۸) کښې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کښې ((وأنامع ابن الأدرع)) الفاظ وارد شوی دی. دَ دې نه زیات صریح روایت دَ طبرانی دې کوم چه حمزه بن عمرو الاسلمی نه مروی دې، په دې کښې الفاظ دا دی: ((وأنامع محجن بن الأدرع)) (۹)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۸۰)-
۲) (دوی حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب بلاترجمة بعد باب استعمال فضل وضوء الناس-
۳) (دَدې دوارو حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب إثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم
۴) (عمدة القاری )۱۴ص۱۸۲) وفتح الباری (ج۶ص۹۱)-
۵) (حواله بالا-
۶) (إرشاد الساری (ج۵ص۹۴)-
۷) (الأحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج۸ص۹۹) کتاب السیر ذکر اسم الرواة الذین قال لهم النبی صلی الله علیه وسلم هذالقول رقم (۴۶۷۵)-
۸) (فتح الباری (ج۶ص۹۱)-
۹) (مجمع الزوائد للهیثمی (ج۵ص۲۶۸)-

خود ابن منده رحمه الله خيال دا دې چه ابن الادرع نوم سلمه دې او نور فرمائى چه ادرع خو لقب دې او اصل نوم دَ هغه دَ پلار ذكوان دې. (١)

ليكن راجح قول هم رومبې دې. علامه خزرجى رحمه الله فرمائى ((محجن بن الأدرع...وهو الذي قال فيه النبي صلى الله عليه وسلم: ارموا وأنا مع ابن الأدرع)) (٢)

**حضرت محجن بن الادرع:** دا حضرت محجن بن الادرع الاسلمى رضي الله عنه دې او قديم الاسلام صحابى دى. (٣)

هغه دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوى اودَ هغه نه حنظله بن على الاسلمى، رجاء بن ابى رجاء الباهلى او عبدالله بن شقيق رحمهم الله وغيره دَ حديث روايت كوى.(٤)

آخرعمر كښې بصره كښې اوسيدو، هم هغوى دَ مسجد بصره حدبندى وغيره كړې وه.(٥)

دَ امام ابن سعد رحمه الله مطابق هغه دَ وفات كيدونه وړاندې مدينې منورې ته واپس راغلې وو او هم هلته دَ حضرت معاويه رضي الله عنه په دور خلافت كښې وفات شو. (٦)

امام بخارى رحمه الله په ((الادب المفرد)) كښې او امام ابوداود او نسائى رحمهما الله په خپلو خپلو كتابونو كښې دَهغه نه روايتونه اخستې دى. (٧)

هغه دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم ټول پنځه احاديث روايت كړى دى او اصحاب اصول سته دَ هغې نه دوه روايتونه اخستې دى.(٨)

**قوله:** قال: فأمسك أحد الفريقين بأيديهم، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: مالكم لاترمون؟ قالوا: كيف نرمي وأنت معهم؟: راوى وائى نو دوئم فريق خپل لاسونه بند كړل. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل څه اوشو تاسو غشى ولې نه اولئى؟ هغوى اووئيل مونږ غشى څنګه اولو كله چه تاسو دوئمې ډلې سره ئې.

مطلب دا دې چه كله نبى اكرم صلى الله عليه وسلم دا اوفرمائيل چه زه خو فلانكې يعنې محجن بن ادرع سره يم نو دوئمې ډلې غشى ورول بند كړل، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ هغوى نه دَ لاس بندولو باره كښې تپوس اوكړو چه څه خبره ده تاسو خلق غشى نه اولئى؟ نو لاس بندونكى ډلې اووئيل چه دا زمونږ دَ پاره څنګه ممكن ده چه مونږ غشى اولو او تاسو دوئمې ډلې سره يئې؟ ښكاره خبره ده چه په دې صورت كښې هم مونږ ماتې خورو.

---

١) (فتح البارى (ج٦ص٩١)-
٢) (خلاصة الخزرجى (ص ٣٧٠)-
٣) (تهذيب الكمال(ج٢٧ص٢٦٧)-
٤) (حواله بالا-
٥) (حواله بالا-
٦) (طبقات ابن سعد(ج٧ص١٢)-
٧) (تهذيب الكمال (ج٢٧ص١٦٧) وفتح البارى(ج٦ص٩١)-
٨) (خلاصة الخزرجى (ص ٣٧٠)-

**جواب ورکونکي څوک وو؟**: دَ حديث جمله ((قالوا: كيف نرمي وأنت معهم؟)) کښې دَ حضور ﷺ دَ سوال جواب دې خو دا جواب ورکونکي صحابی څوک وو؟ نودَ حافظ صاحب رحمه الله وغيره په قول دا حضرت نضله الاسلمی رضي الله عنه وو. ابن اسحاق ((مغازی)) کښې سفيان بن فروة الاسلمی په طريق سره نقل کړی دی چه

((بينا محجن بن الأدرع يناضل رجل من أسلم يقال له: نضلة.... فقال نضلة وألقى قوسه من يده: والله، لا أرمي معه وأنت معه.... فقال نضلة: لايغلب من كنت معه)) (١)

يعنی په دې دوران کښې حضرت محجن بن ادرع رضي الله عنه دَ قبيله اسلم يو سړی سره غشی ويشتل، چاته چه نضله وئيلی شي... نو حضرت نضله رضي الله عنه کمان دَ لاس نه غورزولو سره اووئيل والله! زه هغوی سره غشی نه اولم چه تاسو هغوی سره ئې... حضرت نضله رضي الله عنه فرمائی چه (يارسول الله) تاسو چه چاسره ئې هغوی ماتې نشی خوړلې.

**قوله: فقال النبي صلى الله عليه وسلم: ارموا فأنا معكم كلكم:** نونبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه غشی اولئی زه تاسو ټولوسره يم.

((كلكم)) چه کوم لام دې هغه مجرور دې ځکه هغه ((معكم)) چه کوم ضمير دې دَ هغې دَ پاره تاکيد دې.(٢)

**يواشکال اودَ هغې جواب**: دلته يو اشکال پيدا کيږی چه رسول الله ﷺ دواړو ډلو سره ولې يوځائ شو هرکله چه دا خبره شوې وه چه يو ډله به غالب وی او بله مغلوب؟ (٣)

علامه کرمانی رحمه الله دَ دې اشکال جواب دا ورکړې دې چه دلته دَ معيت نه مراد دَ خير قصد او اراده، دَ نيت اصلاح او په غشو ويشتلو کښې دَ جنګ په غرض مشق دې، دلته دَ يوې ډلې غالب او مغلوب کيدلو سلسله مقصد نه ده او نه هغوی ﷺ دَ غالبيت او مغلوبيت په خيال خپل معيت بيان فرمائيلې دې. (۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت ((ارموابنی إسماعيل)) کښې دې او کوم کوم ځائ چه ((ارموا)) لفظ راغلې دې دَ دينه دَ غشو ويشتلو ترغيب او تحريض مراد دې. (۵)

**دَ حديث نه مستنبط فائدې**: دَ حضرت سلمة بن الاکوع رضي الله عنه دَ حديث نه دا لاندينئ فائدې مستفاد کيږی:

---

١) (فتح الباری (ج۶ص۹۲) وعمدة القاری (ج١٤ص١٨٢) وإرشادالساری(ج۵ص٩٤) وقال الحافظ فی مقدمة الفتح هدی الساری ويحتمل أن يکون هو أبابرزة فإن اسمه نضلة بن عبيد.(ص٢٩٠)-

٢) (شرح القسطلانی (ج۵ص٩٤)-

٣) (شرح الکرمانی (ج١٢ص١۶٤)-

٤) (شرح الکرمانی(ج١٢ص١۶۵)-

۵) (عمدة القاری (ج١٤ص١٨٢)-

① علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه د حدیث نه معلومه شوه چه سلطان یا خلیفه له پکار دی چه خپلو خلقو ته د غشو ویشتلو او نورو ډیرو فنون جنګ د تعلیم حکم ورکړی او د هغې د زده کولو ترغیب ورکړی.(١)

② نور فرمائی چه د سړی د پاره دا ضروری دی چه هغه د خپلو پلارانو نیکونو ښه خصلتونه اولټوی او د هغې اتباع اوکړی اوهم د هغوی په شان عمل دې اوکړی. د نبی علیه السلام ارشاد مبارک دې ((ارموا فإن أباکم کان رامیا))(٢)

③ د بادشاه د پاره ضروری دی چه هغه د هریو فن ماهرینو باندې دا ښکاره کړی چه هغه دوی سره دې، یعنی د هغوی په ډله کښې شامل دې او هغوی سره مینه لری. څنګه چه حضور علیه السلام د غشو ویشتلو ماهرینو سره وکړل چه وئی فرمائیلي ((وأنا مع بنی فلان)) (٣)

④ بادشاه له دا هم پکار دی چه خلقوته د جنګ د امورو پخپله نښې ښائی چه فلانکې څیز زده کړئی په دې کښې مهارت اختیارکړئی لکه چه نبی علیه السلام کول.(۴)

⑤ او دا هم معلومه شوه چه په اسونو سوریدل او د وسلې استعمال زده کول فرض کفایه دی اوکله کله هغه فرض عین هم شی. (۵)

[٢٧٤٣] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْغَسِيلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ(٦) قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ حِينَ صَفَفْنَا لِقُرَيْشٍ وَصَفُّوا لَنَا إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالنَّبْلِ [٣٧٦٣]

## تراجم رجال

١- ابونعیم: دا مشهور محدث ابونعیم فضل بن دکین کوفی رحمه الله دې. د ده تذکره ((کتاب الإیمان باب بلاترجمة)) لاندې راغلې ده.(٧)

٢- عبدالرحمن بن الغسیل: داعبدالرحمن بن سلیمان بن حنظله غسیل الملائکه رحمه الله دې.(٨)

---

١ ) (شرح ابن بطال (ج٥ص ٩٤)-
٢ ) ( شرح ابن بطال (ج٥ص ٩٤)-
٣ ) (حواله بالا-
٤ ) (حواله بالا-
٥ ) (تفسیر القرطبی (ج٨ص٣٩)-
٦ ) (قوله: عن ابیه: الحدیث أخرجه البخاری ایضًا کتاب المغازی باب فضل من شهد بدرا رقم (٣٩٨٤و ٣٩٨٥) وابوداؤد أبواب الجهاد باب فی الصفوف رقم (٢٦٦٣) وباب سل السیوف عند اللقاء رقم (٢٦٦٤)-
٧ ) (کشف الباری (ج٢ص٢٦٩)-
٨ ) (د دوی حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الجمعة باب من قال فی الخطبة بعد الثناء: أمابعد-

۳- حمزه بن ابی اسید: دا حمزه بن ابی اسید مالك بن ربیعه الانصاری الساعدی رحمه الله دی. ابومالك د ده کنیت دې او دا د منذر بن ابی اسیدرور دې. (۱)

دې د خپل پلار ابواسید الساعدی او حارث بن زیاد الانصاری رضی الله عنه نه د حدیث روایت کوی. اوده نه دده دواړه ځامن مالك اویحیی، سعدبن المنذر، عبدالرحمن بن سلیمان بن الغسیل، محمد بن عمرو بن علقمه، امام زهری او ابوعمرو بن حماس رحمهم الله وغیره روایت کوی. (۲)

حافظ ابن حجر، خطیب بغدادی، او اسماعیلی رحمهم الله رائې دا ده چه حمزه بن ابی اسید صحابی دې او هغوی د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې پیدا شوی. (۳)

خو بعض نور حضرات محدثین مثلاً ابوحاتم ابن حبان رحمه الله هغه په خپل کتاب «الثقات» کښې تابعینو کښې ذکر کړیدې. (۴)

امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ابوداود او امام ابن ماجه رحمهما الله هم د ده نه روایت اخستې دې. (۵)

د خلیفه ولید بن عبدالملك په زمانه کښې وفات شو. (۶)

۴- ابیه: «أب» نه مراد حضرت ابواسید مالك بن ربیعه الساعدی الخزرجی رضی الله عنه دې. (۷)

**قوله: قال: قال النبی صلی الله علیه وسلم یوم بدر حین صففنا لقریش، وصفوالنا: إذا أكثبوكم فعلیكم بالنبل:** حضرت ابواسید رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم ﷺ د جنګ بدر په موقع کله چه مونږ د قریشو په مقابله کښې صفونه تړلې اودریدو او هغوی هم زمونږ د پاره صفونه تړلې شو نو وئی فرمائیل که دښمن (قریش) تاسو له نزدې راغې نو تاسو پرې غشی ورول شروع کړئی.

دحضرت ابواسید الساعدی رضی الله عنه دا حدیث د غزوه بدر متعلق دې نود دې تشریح هم په کتاب المغازی کښې راغلې ده. (۸)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حدیث ابی اسید رضی الله عنه مطابقت ترجمة الباب سره د حضور ﷺ په ارشاد مبارك کښې ده «فعلیكم بالنبل» ځکه چه په دې کښې د رمی بالسهام ترغیب او تحریض دې. (۹)

---

۱) (تهذیب الکمال (ج۷ص۳۱۱)-
۲) (شیوخ وتلامذه د پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۷ص۳۱۱-۳۱۲)-
۳) (الإصابة (ج۱ص۳۵۳، ۳۵۸)-
٤) (تهذیب الکمال(ج۷ص۳۱۲)-
۵) (تهذیب الکمال (ج۷ص۳۱۲)-
۶) (طبقات ابن سعد (ج۵ص۲۷۲)-
۷) (د دوی د حالات د پاره اوګورئ کتاب الأذان باب من شکا إمامه إذاطول-
۸) (کشف الباری کتاب المغازی (۱۳۷)-
۹) (عمدة القاری (ج۱٤ص۸۳)-

**رمی نه څه مراد دی؟** مونږ روستو د باب په شروع کښې نقل کړی دی چه په آیت مبارک **﴿وأعدوا لهم ما استطعتم من قوة...﴾**(١) د ((قوة)) تفسير ((رمی)) سره شويدې اود امام بخاری رحمه الله منشا هم د آيت ترجمة الباب لاندې ذکر کولو همدغه وه چه ((قوة)) نه مراد ((رمی)) دې.

اوس خبرې په دې کښې دی چه ((رمی)) نه څه مراد دې؟ آيا هم هغه چه کوم معروف دې، يعنی غشی ورول يا رمی عام ده؟ نور بعضو حضراتو خيال دې چه د رمی نه د دې خاص معنی يعنی غشی ورول مراد دی.

ليکن راجح دا دی چه رمی د هغه قوت يو فرد دې باقی په کومه طريقه سره چه هم د دښمن په مقابله کښې قوت حاصليدېشی هغه اختيارول ضروری اوواجب دی. مونږ

دلته د حضرت مولانا ادريس کاندهلوی رحمه الله يو اقتباس ليکو د کوم سره چه به د راجح قول په پوهيدلو کښې نورامداد ملاوېشی. فرمائی:

په احاديثوکښې اګرچه د قوت تفسير په غشو ورولو سره شويدې خود الفاظود عموم په اعتبارسره د دې نه مراد هر قسم د جنګ سامان دې او دا مطلب نه دې چه صرف قوت په غشو ويشتلوخپلوکښې منحصردې بلکه توره، نيزه ډهال، زغره، قلعه ګانې، سامان رسد او سامان جنګ ټول په قوت کښې داخل دی ځکه چه د آيت مقصد اصلی دا دې چه هغه سازوسامان او د جنګ آلات پيداکړئی د څه په ذريعه چه تاسو د دښمن مقابله کولې شئی او په هغوی غالب راشئی... بهر حال په دې آيت کښې مسلمانانو ته دا حکم ورکول دی چه تاسو د دښمنانو په مقابله کښې د جنګ سامان تيارکړئی او چه څومره قوت او طاقت پيدا کولې شئی په هغې کښې کمې مه پريږدئی او ښکاره خبره ده چه په هره زمانه کښې د جنګ سامان بدليږی. په مخکينې زمانه کښې نيزه او توره وه او په دې زمانه کښې توپه او ټوپک وغيره دی، دا ټول د جهاد سامان دې او دا ټول به دغه شان چه په راتلونکې وخت کښې کومه وسله او د جنګ آلات تياريږی انشاء الله هغه ټول د دې آيت په عموم او مفهوم کښې داخل وی او عين منشائې قرآنی به وی....(٢)

**نوې وسله جوړول فرض دی:** حضرت کاندهلوی رحمه الله نورفرمائی: د دې آيت په رو سره په مسلمانانو حکومتونو د جديد وسلې تيارولو اود هغې کارخانې قائمول فرض دی. ځکه چه په دې آيت کښې د قيامت پورې د هرمکان او زمان مناسب قوت او طاقت پيداکولو حکم

---

١) (الانفال:٦٠-

٢) (معارف القرآن للكاندهلوی (ج٣ص٢٥٥) قال محدث العصر الشاه أنور الكاشميری رحمة الله: والتحريض على الرمی كان فی الزمان الماضی وأما اليوم فينبغی أن يكون على تعلم استعمال الألات التی شاعت فی زماننا. كالبندقة، والغاز. ومن الغباوة: الجمود على ظاهر الحديث: فإن التحريض عليه ليس إلا للجهاد وليس فيه معنی وراءه، ولما لم يبق الجهاد بالأقواس لم يبق فيها معنی مقصود. فلا تحريض فيها.... فالحاصل: أن التحريض فی كل زمان بحسبه. وفی النص إشارة إليه أيضاً فقال تعالى: ﴿ترهبون به عدوالله وعدوكم﴾ والمصود هوالإرهاب، وذلك لايحصل اليوم بتعلم الرمی. فيض الباری (ج٣ص٤٣٥) وأيضاً انظر روح المعانی للعلامة الألوسی (٦ص٢٥)-

ورکړیشویدی. څنګه چه کافرانو تباه کونکي وسلې تیارې کړې دی په مونږ باندې هم دغه شان تباه کونکې وسلو تیارول فرض دی.دې د پاره چه دکفر او شرك مقابله اوکړیشی.(۱)

**په اسونو سوریدل غوره دی که غشې وروَل:** په دې کښې هیڅ شك نشته که دَ اسونو سوریدل وی یا غشو وروَل دواړه دَ جنګ او جهاد اهم ذریعې دی او دَ جنګ دَ اسبابونه دی لیکن په دې دواړو کښې غوره کوم یو دې حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی:

«وقد ذهب أكثر العلماء إلى أن الرمى أفضل من ركوب الخيل، وذهب الإمام مالك إلى أن الركوب أفضل من الرمى، وقول الجمهور أقوى للحديث» (۲).

اواکثر علماء دې طرف ته دی چه رمې دَ رکوب الخیل نه غوره ده او امام مالك رحمه الله دې طرف ته دی چه رکوب،دَ رمې نه غوره دی. اودَ جمهورو قول دَ حدیث په وجه قوی دې.

حافظ ابن کثیر رحمه الله چه د کوم حدیث طرف ته اشاره کړیده هغه حضرت عقبه بن عامر الجهنی رضی الله عنه نه مروی دې فرمائی «قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ارموا واركبوا وأن ترموا خيرمن أن تركبوا» (۳) یعنی غشې وروئی او په اسونو سورلی کوئی اودا چه تاسو غشې وروئی د دې نه بهتر دی چه تاسو په اسونو سورلی کوئی.

نو په پورتنی حدیث کښې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم غشې وروَل دَ اسونو سوریدلو نه بهتر او غوره ګرځولی دی.

## ۷۸-بَاب: اللَّهْوِ بِالْحِرَابِ وَنَحْوِهَا

**دَترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه لهو بالحراب هغه لهو(لوبه) کښې داخل نه دی کوم چه منهی‌عنه ده،شریعت لهوبالحراب مشروع او جائز ګرځولی دی او دا نی په مستثنیات کښې داخل کړې دی. که دا کار دَ تعلیم په غرض وی نو جائزدې بلکه دَ جهاد قوت حاصلولو دَ پاره مندوب او مسنون دې. (۴)

حافظ ابن حجر فرمائی چه غالبًا امام بخاری رحمه الله دې ترجمة الباب په ذریعه هغه حدیث شریف طرف ته اشاره فرمائی کوم چه حضرت عقبه بن عامرجهنی رضی الله عنه نه مروی دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل «.... وليس اللهو إلا فى ثلاثة تأديب الرجل فرسه، وملاعبته امرأته، ورميه بقوسه ونبله» (۵) (اللفظ للنسائی)

---

۱) (معارف القرآن (ج۳ص۲۵۵)-

۲) (تفسیر القرآن العظیم لابن کثیر الدمشقی (ج۲ص ۳۲۱)-

۳) (الحدیث رواه أبوداؤد فی الجهاد باب فی الرمی رقم (۲۵۱۳) والترمذی فی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل الرمی فی سبیل الله تعالی رقم(۱۶۳۷) وقال:هذا حدیث حسن صحیح.والنسائی فی کتاب الخیل والسبق، باب تأدیب الرجل فرسه رقم(۳۶۰۸) وابن ماجه فی أبواب الجهاد باب فضل الرمی فی سبیل الله رقم (۲۸۱۱)

٤) (عمدة القاری (ج ١٤ص ١٨٣) وفیض الباری (ج۳ص ٤۳۶)-

۵) (الحدیث رواه أبوداؤد فی الجهاد باب فی الرمی رقم (۲۵۱۳) والترمذی فی فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل الرمی فی سبیل الله تعالی رقم (۱۶۳۷) وقال: هذا حدیث حسن صحیحوالنسائی فی کتاب الخیل والسبق باب تأدیب الرجل فرسه رقم (۳۶۰۸) وابن ماجاه فی أبواب الجهاد باب فضل الرمی فی سبیل الله رقم (۲۸۱۱)

چه لهو دريو موقعونه علاوه بل چرته جائزنه دى. يو دا چه دَ سرى خپل اس برابرول، دويم دَ سرى خپلې ښځې سره مشغولتياكول، او دريم غشي او لندې سره غشي ورول.(١)

حراب—بكسر الحاء وفتح الراء—حربة—بفتح الحاء وسكون الراء— جمع ده اودَ دې معنى نيزه ده.(٢)

او ((نحوها)) په ذريعه امام بخارى دا ارشاد فرمائى چه دَ لهو جواز حراب سره خاص نه دې بلكه دَ جنګ نور آلات مثلاً غشي لنده، توره وغيره سره هم جائز دى.

[٢٧٤٥] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(٣) قَالَ بَيْنَا الْحَبَشَةُ يَلْعَبُونَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِرَابِهِمْ دَخَلَ عُمَرُ فَأَهْوَى إِلَى الْحَصَى فَحَصَبَهُمْ بِهَا فَقَالَ دَعْهُمْ يَا عُمَرُ وَزَادَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ فِي الْمَسْجِدِ

## تراجم رجال

١- ابراهيم بن موسى: دا ابواسحاق ابراهيم بن موسى بن يزيد الفراء رحمه الله دې.

٢- هشام: دا ابوعبدالرحمن هشام بن يوسف صنعانى رحمه الله دې. (٤)

٣- معمر: دا ابوعروه محمدمعمر بن راشدازدى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر تذكره ((بدء الوحي)) پنځم حديث لاندې تيره شويده.(٥)

٥- زهري: دا ابو بكر محمدبن مسلم زهرى رحمه الله دَ ده تذكره هم ((بدء الوحي)) دَ دريم حديث په ذيل كښې تيره شويده.(٦)

٦- ابن المسيب: دا امام التابعين حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله دې. دَدوى حالات ((كتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هو العمل)) لاندې تيرشوى دى. (٧)

٧- ابوهريره رضي الله عنه: دامشهورصحابى رسول، حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. دَده مفصل تذكره دَ ((كتاب الإيمان)) په ذيل كښې تيره شويده. (٨)

---

١ ) (فتح البارى (ج٦ص٩٣)-
٢ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٨٣) ومعجم الوسيط (ج١ص١٦٣) مادة حرب-
٣ ) (قوله: عن أبي هريرة رضى الله عنه: الحديث رواه مسلم كتاب العيدين باب الرخصة فى اللعب الذى لامعصية فيه فى أيام العيد رقم(٢٠٦٩) والنسائى كتاب العيدين باب اللعب فى المسجد يوم العيد ونظر النساء إلى ذلك رقم (١٥٩٧)-
٤ ) (ددې دوارو حضراتو دَحالاتو دَپاره اوګورئ كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها ترجيله
٥ ) (كشف البارى (ج١ص ٤٦٥)-
٦ ) (حواله بالا (ص٣٢٦)-
٧ ) (كشف البارى (ج٢ص١٥٩)-
٨ ) (كشف البارى (ج١ص٦٥٩)-

**قوله: قال: بينا الحبشة يلعبون عند النبي صلى الله عليه وسلم بحرابهم دخل عمر، فأهوى إلى الحصى فحصبهم بها:** حضرت ابوهريره ﷺ فرمائى په دې دوران كښې چه حبشيانو خپلو نيزو سره د حضور ﷺ په وړاندې لوبې كولې نو حضرت عمر ﷺ داخل شو او د كانړو طرف ته متوجه شو بيا په دې كانړو باندې هغه حبشيان ننبه كړل.

حضرت ابوهريره ﷺ دلته د عهدنبوى ﷺ يوه واقعه ذكر كوى چه يو ځل څه حبش مدينې منورې طرف ته راغله او د نبى كريم ﷺ په وړاندې ئې مختلف قسم د جنګ مظاهرې پيش كړې نو هم دغه خلقو يو ځل خپلو تورو او نيزو سره لوبې كولې چه حضرت عمر ﷺ داخل شو او كله ئې چه دا نظاره اوليده نوكانړى ئې اولټول او په دې كانړو باندې ئې دغه حبش ننبه جوړ كړل.

د دې وجه دا وه چه حضرت عمر ﷺ ته د دې كار حكمت معلوم نه وو او هغه دا كار په لهو باطل كښې شميرلې وو. علامه قسطلانى ﷺ د حضرت عمر ﷺ د دې كارتوجيه بيانولو سره ليكى: ((لعدم علمه بالحكمة وظنه أنه من اللهو الباطل))(١)

او د نسائى شريف روايت نه معلوميږى چه دې حبشى خلقو بنوارفده سره تعلق لرلو.(٢)

**قوله: فقال: دعهم يا عمر:** نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې عمر! دوى (د دوى په حال باندې) پريږده.

يعنې د دوى په كار كښې دخل مه كوه او دوى پريږده چه لوبې كوى، ځكه چه د هغوى دا كار د جنګ تمرين او مشق اود دښمن مقابلې كولو تيارې د پاره دې. (٣)

د دې حديث نه معلومه شوه چه كه چرې اجتهادى خطا او غلطى اوشى نو هغه ملامت كول صحيح نه دى ځكه چه نبى كريم ﷺ حضرت عمر ﷺ ته د هيڅ قسم رټنه وغيره اونه كړه ځكه چه هغه په دې معامله كښې ناخبروو.(۴)

**يواشكال او د هغې جوابونه:** اوس اشكال دا شو چه حضرت عمر ﷺ دا حبشى خلق چه د نبى كريم ﷺ خواكښې ئې لوبى كولې ولې په كانړو اوويشتل، ځكه چه هغه ته ښكاريدل چه نبى اكرم ﷺ هلته موجود دې نو دا خو يو قسم الله تعالى دې نه كړى بې ادبى شوه.

علامه ابن التين ﷺ د دې اشكال دوه جوابونه وركوى:

① ممكنه ده چه حضرت عمر ﷺ نبى كريم ﷺ نه وو ليدلې او هغه ته دا معلومه نه وى چه هغوى ﷺ هم دې حبشيانو ته ګورى. (۵)

② يا هغه دا ګنړلې وى چه نبى ﷺ دې خلقو ته كتل خو د حياء د وجه نه ئې هغوى نشو

---

١ ((إرشاد السارى (ج٥ص٩٥)-

٢ ) (سنن النسائى كتاب العيدين باب اللعب فى المسجد يوم العيد.... رقم (١٥٩٧)-

٣ ) (شرح القسطلانى (ج٥ص٩٥) وشرح ابن بطال (ج٥ص٩٥)-

٤ ) (شرح ابن بطال(ج٥ص٩٥)-

٥ ) (عمدة القارى (ج١٤ص١٨٣)-

منع كولې، په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه پخپله اقدام اوكړو او هغوى ئې منع كړل. او ابن التين رحمه الله دا دوئم جواب راجح ګرځولې دې ځكه چه په حديث كښې صراحت دې چه ((يلعبون عند النبى صلى الله عليه وسلم....)) نو دَ نه كتلو هډو مطلب نشته.(١)

**قوله:** زادعلى: حدثنا عبدالرزاق أخبرنا معمر: فى المسجد: دَ مذكوره عبارت مطلب دا دې چه كومه واقعه په حديث كښې ذكر كړېشويده هغه دَ جمات وه چه هغه خلقو په جمات كښې نيزو سره لوبې كولې. (٢)

دَ على نه مراد المدينى رحمه الله دې، دَ دې ځائ روايت كښې خو ((زادعلى)) دې. ليكن مستملى په روايت كښې ((زادعلى...)) راغلې دى، دَ دې دَپاره هغه ته څوك سړې غير دال على الاتصال اونه ګڼړى. (٣)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حديث مناسبت واضح دې او هغه دَ حديث په ړومبنى جمله كښې دى يعنى ((بينا الحبشة يلعبون عند النبى صلى الله عليه وسلم))

**دَ علامه عينى او حافظ صاحب تسامح:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله خيال دا دې چه ترجمة الباب سره دَ حديث مناسبت په حديث باب كښې نشته. ځكه چه په دې كښې دَ ((حراب)) ذكر نشته نو كيديشى امام بخارى رحمه الله حديث باب دلته ذكر اوفرمائيلو او دَ هغې بعض نورو طرق طرف ته ئې اشاره فرمائيلې ده. دَ دې نه مراد دې حضراتو دَحضرت عائشه رضي الله عنها هغه حديث اخستې دې كوم چه امام بخارى رحمه الله كتاب الصلاة (۴) كښې ذكر فرمائيلې ((رأيت النبى صلى الله عليه وسلم والحبشة يلعبون بحرابهم)) دغه شان دَ حديث مطابقت ترجمه سره كيږي. (۵)

غالبًا دې حضراتو ته دلته تسامح شويده، دا هم ممكن دى چه دَ دې حضراتو په خيال كښې كومه نسخه وه كيديشى په دې كښې حراب الفاظ موجود نه وى. د بخارى محشى حضرت احمدعلى سهارنپورى رحمه الله فرمائى

((قوله: بحرابهم، هذا موضع الترجمة وكأنه لعدم وجوده فى بعض النسخ لم يطلع عليه بعض المهرة، فتحيرفى مطابقة الحديث للترجمة))

**تنبيه:** دَ حديث باب نور تشريحات كتاب الصلاة كښې تيرشوى دى.(۶)

---

١) (حواله بالا-
٢) (شرح القسطلانى (ج۵ص۹۵)-
٣) (تغليق التعليق (ج٣ص٤٤٤)-
٤) (صحيح البخارى كتاب الصلاة باب أصحاب الحراب فى المسجد رقم (٤٥٥)-
٥) (فتح البارى (ج۶ص۹۳) وعمدة القارى (ج١٤ص١٨٣)-
۶) (صحيح البخارى كتاب الصلاة باب أصحاب الحراب فى المسجد رقم (٤٥٤)-

## ٧٩- بَاب: الْمِجَنِّ وَمَنْ يَتَتَرَّسُ بِتُرْسِ صَاحِبِهِ

**دترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د ډهال او د هغې د استعمال ذکر کوی. (١) او د دې ترجمې نه د هغه مقصد دا دې چه د دې څیزونو استعمال د توکل نه خلاف نه دې او دا د نبوت د تعلیم او د نبوت د منصب نه هم خلاف نه دی. علامه ابن المنیر اسکندرانی رحمه الله فرمائی:

((وجه هذه التراجم دفع من يتخيل أن هذه الآلات ينافى التوكل، والحق أن الحذر لايرد القدر، ولكن يضيق مسالك الوسوسة لما طبع عليه البشر)) (٢)

یعنی د دې ترجمو مقصد د هغه سړی خیال رد کول دی چه دا ګنړی چه د دې آلاتو استعمال د توکل منافي دې، صحیح خبره دا ده چه احتیاط تقدیر نه اړخاکوی لیکن دومره خبره ضرور ده چه د انسانانو کومې د وسوسې جبلت او عادتونه دی د احتیاط اختیارولو سره د دې وسوسو خاتمه کیږی.

**دمجن معنې: المِجَن:** د میم په کسره سره د جیم په فتح سره ډهال ته وائی (٣)

او دا د جَن یَجِن نه مشتق دې. او معنی ئې پټول دی او مجن ته مجن په دې وجه وائی چه هغه د دښمن حمله منع کوی او د سړی او دښمن په مینځ کښې پرده جوړیږی. او د ترس معنی هم ډهال ده. (۴)

[٢٧٣٦] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (٥) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ يَتَتَرَّسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتُرْسٍ وَاحِدٍ وَكَانَ أَبُو طَلْحَةَ حَسَنَ الرَّمْيِ فَكَانَ إِذَا رَمَى تَشَرَّفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْظُرُ إِلَى مَوْضِعِ نَبْلِهِ [ر: ٢٧٢٤]

## تراجم رجال

١- **احمد بن محمد:** دا ابوالعباس احمدبن موسی مروزی رحمه الله دې. (۶)

٢- **عبدالله:** دا امام عبدالله بن مبارك منظلی مروزی رحمه الله دې. د دوی تذکره ((بدء الوحی)) پنځم حدیث کښې تیره شویده. (٧)

---

١) (عمدة القاری (ج ١٤ ص ١٨٤)-
٢) (فتح الباری (ج ۶ص ٩٤)-
٣) (حواله بالا وعمدة القاری (ج ١٤ ص ١٨٤)-
٤) (النهاية للجزری (ج ١ص ٣٠٨) باب الجيم مع النون-
٥) قوله: عن أنس بن مالک رضی الله عنه: الحديث مرتخريجه فی الجهاد باب غزو النساء وقتالهن مع الرجال
۶) (ذدوی د حالاتو دپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب مايقع من النجاسات فی السمن والماء-
٧) (کشف الباری (ج ١ص ٤۶٢)-

۳-الاوزاعی: دا مشهور فقیه عبدالرحمن بن عمروبن ابی عمرواوزاعی شامی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم)) لاندې تیرشوی دی.(۱)

۴-اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه: دا اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه انصاری مدنی رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب من قعد حیث ینتهی به المجلس....)) لاندې راغلی دی.(۲)

۵-انس بن مالک: دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب.....)) لاندې تیرشوی دی.(۳)

**قوله:** قال: کان أبوطلحة یتترس مع النبی صلی الله علیه وسلم بترس واحد وکان أبوطلحة حسن الرمی فکان إذا رمی یشرف النبی صلی الله علیه وسلم فینظر إلی موضع نبله: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه طلحه رضی الله عنه به دَ نبی کریم ﷺ سره په یو ډهال کښې کاراخستلو، او ابوطلحه رضی الله عنه ډیر ښکلې غشې ورونکې وو نو چه کله به هغه غشې ویشتلو نو نبی کریم ﷺ به خپل سر مبارک اوچتولو اودَ هغه دَ غشې غورزیدو ځای ته به ئې کتل.

په رومبئی جمله کښې حضرت انس رضی الله عنه دا ښائی چه حضرت طلحه رضی الله عنه دَ نبی کریم ﷺ سره په ډهال کښې کار کولو، مطلب دا چه ډهال رسول الله ﷺ نیولی وو او غشی ابوطلحه رضی الله عنه ورول. دَ دې وجه دا ده چه کوم سړې غشی وروی نو دَ هغه دواړه لاسونه بند وی دَ دې دَ پاره به نبی کریم ﷺ ډهال نیولې وو او په هغې به ئې دَ ابوطلحه رضی الله عنه بچاؤ کولو.(۴)

او دَ حدیث سره متعلقه نور تشریحات کتاب المغازی کښې به راځی.(۵)

**دحدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث مناسبت ترجمې سره بالکل واضح دې او هغه دَحدیث رومبئ جمله ((کان أبوطلحة یتترس مع النبی صلی الله علیه وسلم بترس واحد)) کښې دې.(۶)

[۲۷۴۷] حَدَّثَنَا سَعِیدُ بْنُ عُفَیْرٍ حَدَّثَنَا یَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِی حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ (۷) قَالَ لَمَّا کُسِرَتْ بَیْضَةُ النَّبِیِّ صَلَّی اللَّهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلَی رَأْسِهِ وَأُدْمِیَ وَجْهُهُ وَکُسِرَتْ رَبَاعِیَتُهُ

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص۴۰۸)-
۲) (کشف الباری (ج۳ص۲۱۳)-
۳) (کشف الباری (ج۲ص۴)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص۹۴) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۸۴)-
۵) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۱۲و ۲۳۱)-
۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۸۴)-
۷) (قوله: عن سهل: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه-

وَكَانَ عَلِيٌّ يَخْتَلِفُ بِالْمَاءِ فِي الْمِجَنِّ وَكَانَتْ فَاطِمَةُ تَغْسِلُهُ فَلَمَّا رَأَتِ الدَّمَ يَزِيدُ عَلَى الْمَاءِ كَثْرَةً عَمَدَتْ إِلَى حَصِيرٍ فَأَحْرَقَتْهَا وَأَلْصَقَتْهَا عَلَى جُرْحِهِ فَرَقَأَ الدَّمُ [ر: ٢٤٠]

## تراجم رجال

۱-سعید بن عفیر: دا سعید بن کثیر بن عفیر رحمه الله دي. اکثر دَ خپل نیکه طرف ته منسوب کولې شي، دهغوی حالات (کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه...) لاندې تیرشوی.(۱)

۲-یعقوب بن عبدالرحمن: دا یعقوب بن عبدالرحمن بن محمد بن عبدالله اسکندرانی رحمه الله دي. (۲)

۳-ابوحازم: دا مشهور زاهد ابوحازم سلمة بن دینار رحمه الله دي.(۳)

۴-سهل: دا مشهور صحابی حضرت سهل بن سعد ساعدی انصاری رضی الله عنه دي. (۴)

**قوله: قال: لما کسرت بیضة النبی صلی الله علیه وسلم....**:حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائی چه کله دَ حضور اکرم صلی الله علیه وسلم خود(دَ وسپنې ټوپئی چه دَ هغې په وجه سر دَ گذار نه بچ کولې شی) په سرمبارک باندې مات شو او مخ مبارک ئی په وینو رنګ شواودَ هغوی صلی الله علیه وسلم دوه مخامخ غاښونه شهید شو نو حضرت علی رضی الله عنه به ډهال کښې اوبه راوړلې اوحضرت فاطمه رضی الله عنها زخم اووینځلو ،چه کله هغوی اوکتل وینه دَ اوبونه هم زیاته شو نو هغوی یو پوزکې اوسوزولو نودَ هغې ایره ئی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زخمونو اولګوله، دَ څه نه چه وینه راوتل بند شو.

دَ دې حدیث څه تفصیل (کتاب الوضوء) (۵) کښې او څه تشریحات (کتاب المغازی) (۶) کښې راغلی، دَ دې دپاره مونږ دلته صرف په ترجمه باندې اکتفا اوکړه.

**دَ رسول الله په ګستاخانو باندې دَ الله عذاب:** لکه څنګه چه تاسو اوس اوکتل چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مخامخ دوه غاښونه شهیدان شوې وو اودا دَ غزوه احد واقعه ده، دَ دې غاښونو شهادت داسې اوشو چه دَ حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه رور عتبه بن ابی وقاص په حضور صلی الله علیه وسلم باندې کانړې ورګذار کړو په څه سره چه دَ هغوی صلی الله علیه وسلم غاښونه مبارک او شونډه مبارکه زخمي شوه. (۷)

نو الله تعالی عتبه ته دَ دې ګستاخئی دا سزا ورکړه چه دَ دې واقعه نه پس دَ هغه په نسل

---

۱) (کشف الباری (ج۳ص ۲۷٤)-
۲) (دَ دوی دَ حالاتو دپاره اوګورئ کتاب الجمعة باب الخطبة علی المنبر-
۳) ( دَ دوی دَ حالاتو دپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه-
٤) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا-
۶) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲٤۷)-
۷) (إرشاد الساری (ج۵ص۹۵)-

كښې كوم ماشوم هم پيدا كيدو د هغه د لاندې دوه غاښونه به د بيخه مات وو اودا څيز دهغه په نسل كښې معروف اومشهور دى.(١)

دَ عبدالله بن قميئه په حضور ﷺ باندې حمله اوكړه چه دَ هغې په وجه دَ خود دوه دَ اوسپنې كړئى په مخ مبارك كښې ورخښې شوې. بيا هغه دَ كبراوګستاخئى نه دا الفاظ اووئيل ((خذها وأنا ابن قميئة)) دا واخله او زه دَ قميه خوئ يم. رسول الله ﷺ په جواب كښې ارشاد اوفرمائيلو ((أقمأك الله)) الله تعالى دې تا خوار او ذليل كړى.

دَ رسول الله ﷺ دَ دې بددعا دا نتيجه ښكاره شوه چه الله تعالى په هغه باندې يوغرځنې چيلې مسلط كړو هغه چيلى دې باربار په ښكرو وهلو او ترديې پورې چه هغه د ابن قميئه ټكرې ټكرې كړو.(٢)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حديث مطابقت دَ حديث په دې جمله كښې دې: ((وكان على يختلف بالماء فى المجن)) (٣)چه په دې كښې دَ مجن ذكر موجود دې چه د ترجمه رومبې جز دې.

[٢٧٣٨] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(٤) قَالَ كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا لَمْ يُوجِفْ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً وَكَانَ يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِ ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ [٢٩٢٧، ٣٨٠٩، ٤٦٠٣، ٥٠٤٢، ٥٠٤٣، ٦٣٤٧، ٦٨٧٥]

## تراجم رجال

١- علي بن عبدالله: دا اميرالمؤمنين فى الحديث ابوالحسن على بن عبدالله بن جعفر رحمه الله دې. دَ دوى مفصل تذكره ((كتاب العلم باب الفهم فى العلم)) لاندې تيره شويده.(٥)

---

١ ) (حواله بالا-

٢ ) (حواله بالا وعمدة القارى (ج١٤ص ١٨٤) وسيرة ابن هشام (ج٣ص٨٧)-

٣ ) (فتح البارى (ج٦ص ٩٤) وعمدة القارى (ج ٤ص ١٨٤)

٤ ) (قوله: عن عمررضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا كتاب فرض الخمس باب فرض الخمس رقم (٣٠٩٤) وفى المغازى باب حديث بنى النضير... رقم (٤٠٣٣) وكتاب التفسير سورة الحشر باب قوله تعالى ﴿ماأفاءالله على رسوله﴾ رقم (٤٨٨٥) وكتاب النفقات باب حبس الرجل قوت سنةعلى أهله.... رقم (٥٣٥٧-٥٣٥٨) وكتاب الفرائض باب سقول النبى صلى الله عليه وسلم: لانورث...رقم (٦٧٢٨) وكتاب الأعتصام باب مايكره من التعمق والتنازع فى العلم والغلو فى الدين والدع رقم (٧٣٠٥) ومسلم كتاب الجهاد باب حكم الفى رقم (٤٥٧٥) وابوداؤد أبواب الخراج والإمارة باب فى صفايا رسول الله صلى الله عليه وسلم من الأموال رقم (٢٩٦٣-٢٩٦٥) والترمذى أبواب السير باب ماجاء فى تركة رسول الله صلى الله عليه وسلم رقم (١٦١٠) وأبواب الجهاد باب ماجاء فى الفى رقم ١٧١٩) والنسائى أول كتاب قسم الفى رقم(٤١٤٥و ٤١٥٣)

٥ ) (كشف البارى (ج٣ص٢٩٧)-

**یو اهمه تنبیه:** علامه عینی رحمه الله چه چرته د رواتود سند مختصر تعارف لیکلې دې هلته ئې علی بن عبدالله مسندی ګرځولې دې.(١) حالانکه دَ علی بن عبدالله نه مراد دلته ابن المدینی دې ځکه چه په رجال بخاری کښې دَ علی بن عبدالله نومې راوی نشته دَ چا نسبت چه المسندی وی.

٢-**سفیان:** دا امام سفیان بن عینیه رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((بدء الوحی))(٢) دَ رومبی حدیث په ضمن کښې مختصراً او ((کتاب العلم باب قول المحدث: أخبرنا...)) لاندې تفصیلاً تیرشوی دی. (٣)

٣-**عمرو:** دا ابومحمدعمروبن دینارمکی رحمه الله دې.(٤)

٤-**زهری:** دا امام ابوبکر محمدبن مسلم زهری رحمه الله دې. دَدوی مختصرتذکره ((بدء الوحی)) د دریم حدیث لاندې تیره شویده. (٥)

٥-**مالك بن اوس بن الحدثان:** دا دَ رسول الله ﷺ صحابی حضرت مالك بن اوس بن الحدثان رضی الله عنه دې. (٦)

٦-**عمر رضی الله عنه:** دا دونم خلیفه ابوحفص عمربن الخطاب بن نفیل عدوی رضی الله عنه دې. دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب زیادة الإیمان ونقصانه)) لاندې راغلې ده.(٧)

**قوله:** قال: کانت أموال بنی النضیر.....: حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی دَ چه بنونضیر دَ مالونوحیثیت داسې وو چه الله تعالی دَ خپل رسول ﷺ په نګرانئی کښې بغیردَ څه جنګ نه ورکړی وو اودَ هغې دَ حاصلولودَ پاره مسلمانانو نهٔ څه اسونه زغلولې وو او نهٔ ئې پرې سورلی کړې وه.دا مالونه دَ رسول الله ﷺ په خاص نګرانئی کښې ووډ کومې نه چه به هغوی ﷺ دَ خپلو بیبیانو دَ کال خرچه ورکوله او چه څه به باقی پاتې کیدل هغه به ئې دَ وسلو او اسونو دَ اخستلودَپاره دَ الله تعالی په لارکښې دَ جهاد دَپاره هم خرچ کول.

**تنبیه:** امام بخاری رحمه الله دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ حدیث څهٔ حصه دلته نقل کړیده. همدغه حدیث په پوره تفصیل سره کتاب المغازی کښې راغلې دې.(٨)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله

---

١) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٨٥)-
٢) (کشف الباری (ج١ص١٣٨)-
٣) (کشف الباری (ج٣ص١٠٢)-
٤) (دَدوی حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل-
٥) (کشف الباری (ج١ص٣٢۶)-
۶) (دَدوی حالاتو دَپاره اوګورئ کتاب البیوع باب مایذکر فی بیع الطعام واحکرة-
٧) (کشف الباری (ج٢ص ٤٧٤)-
٨) (کشف الباری کتاب المغازی (ص١٨۶-١٩١)-

كنبې راغلې دي «ثم يجعل ما بقى فى السلاح والكراع عدة فى سبيل الله» (١) څکه چه مجن هم دَ وسلې نه دې.

نو سعيد بن منصور په صحيح سند سره دَ حضرت عمر ﷺ باره کنبې نقل کړيدی چه هغه سره يو ډهال وو، نوحضرت عمر ﷺ اوفرمائيل «لولاأن عمرقال لى: احبس سلاحك لأعطيت هذه الدرقة لبعض أولادى» (٢) که حضرت عمر ﷺ ماته دا نه وو وئيلى چه وسله خان سره ساته نو ما به دا ډهال خامخا خپل يو اولاد ته ورکړې وې. نو معلومه شوه چه مجن هم په وسله کنبې داخل دې.

[٢٧٣٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّ ح حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا (٣) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفَدِّي رَجُلًا بَعْدَ سَعْدٍ سَمِعْتُهُ يَقُولُ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي [٥٨٣٠،٥٨٣٢،٥٨٣٣،٥٨٣٠]

## تراجم رجال

١- قبيصه: دا ابوعامر قبيصه بن عقبه بن محمد السوائى ﷺ دې. دَ دوى حالات «كتاب الإيمان باب علامة المنافق» لاندې تيرشوى دى. (٤)

٢- سفيان: دا مشهور امام حديث تبع تابعى ابوعبدالله سفيان بن سعيد بن مسروق ثورى ﷺ دې. دَ دوى حالات «كتاب الإيمان باب علامة المنافق» په ذيل کنبې راغلى دى. (٥)

٣- سعدبن ابراهيم: دا سعدبن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف الزهرى ﷺ دې. (٦)

٤- عبدالله بن شداد: دا ابوالوليد عبدالله بن شداد بن هادر ﷺ دې. (٧)

---

١ ) (عمدة القارى (ج ١٤ ص ١٨٥)-

٢ ) (فتح البارى (ج ٦ ص ٩٤)-

٣ ) (قوله: سمعت عليارضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى ايضًا كتاب المغازى باب ﴿إذهب طائفتان منكم أن تفشلا...﴾ رقم (٤٠٥٨-٤٠٥٩) وكتاب الأدب باب قول الرجل: أبى وأمى رقم (٦١٨٤) ومسلم كتاب فضائل الصحابة باب فى فضل سعدبن أبى وقاص رضى الله عنه رقم (٦٢٣٣) والترمذى أبواب المناقب باب: ارم فداك أبى وأمى رقم (٣٧٥٣، ٣٧٥٥) وأبواب الأدب باب ماجاء فى فداك أبى وأمى رقم (٢٨٢٨-٢٨٢٩) ابن ماجه كتاب السنة باب فى فضائل أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم رقم (١٢٩)-

٤ ) (كشف البارى (ج ٢ ص ٢٧٥)-

٥ ) (كشف البارى (ج ٢ ص ١٧٨)-

٦ ) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الرجل يوضى صاحبه-

٧ ) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الحيض باب مباشرت الحائض-

۵-علی ﷺ: دا څلورم خلیفه ابوالحسن حضرت علی بن ابی طالب هاشمی ﷺ دي. (۱)

**قوله: حدثنا قبیصة حدثنا سفیان:**

**حافظ ابونعیم او مذکوره سند:** په دې سند کښې دَ قبیصه نه مراد ابن عقبه او سفیان نه ابن سعید الثوری ﷺ دی. لیکن ابونعیم ﷺ ((المستخرج)) کښې دا وئیلی دی چه دلته دَ قبیصه لفظ دَ مدونین بخاری دَ طرف نه تصحیف دې او صحیح الفاظ ((حدثنا قتیبة)) دی.
نو په دې صورت کښې دَ سفیان نه ابن عُیَینه ﷺ مراد به وی ځکه چه قتیبه دَ سفیان ثوری نه دَ حدیث سماع نه ده کړې. (۲)
نو لکه چه ابونعیم په حدیث کښې دا علت پیدا کول غواړی چه دَ سفیان نه ثوری مراد دې او دَ قتیبه سماع خو دَ ثوری نه ثابته نه ده په دې وجه دا روایت معلل دې (۳)
لیکن حافظ ابن حجر ﷺ فرمائی چه ماته د ابونعیم دَ دې انکار څه معنی معلومه نشوه ځکه چه دَ دې نه هیڅ یو څیز مانع نه دې چه دا حدیث سفیانین (ابن عینیه و ثوری ﷺ) نه مروی دې. نو مصنف ﷺ دا حدیث (کتاب الأدب)(۴) کښې ((یحیی القطان عن سفیان الثوری)) په طریق باندې نقل کړیدې، بیا دَ نسفی په نسخه کښې هم زمونږ په وړاندې په موجوده باب (۵) کښې ((عن مسدد عن یحیی عن سفیان)) په طریق باندې مروی دی.(۶)
اوس خلاصه دَ بحث دا شوه چه دا حدیث دَ حضرت سفیان ثوری ﷺ نه هم مروی دې. نو په دې وجه دَ دې خبرې هیڅ حاجت نشته چه دَ قبیصه په ځائې قتیبه او سفیان نه ابن عینیه مراد واخستې شی، اونه دَ دې څه ضرورت شته چه مدونین بخاری طرف ته دَ غلطئ نسبت اوکړېشی.
اود حضرت علی ﷺ نه مروی دَ دې حدیث تشریح کتاب المغازی (۷) او کتاب الادب (۸) کښې راغلې ده.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حافظ ابن حجر ﷺ فرمائی چه دَ دې حدیث دلته په باب کښې راوړل غیر ظاهر دی ځکه چه په دې حدیث کښې دَ مجن څه ذکر نشته، او نه دَ مجن او ترس په ذریعه دَ دښمن دَ غشو نه بچ کیدل.
خو بیا حافظ صاحب پخپله دَ دې اشکال جواب هم ورکړیدې چه دَ ابن شبویه په نسخه

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب العلم باب إثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم-
۲) (فتح الباری (ج۶ص ۹٤وعمدة القاری (ج ١٤ص١٨٦)-
۳) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٨٦)-
٤) (صحیح البخاری کتاب الأدب باب قول الرجل: أبی وأمی رقم (٦١٨٤)-
۵) (الکنت الظراف علی الأطراف (ج۷ص۴۰۹)-
۶) (فتح الباری (ج۶ص ۹٤)-
۷) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲۳۰)-
۸) (کشف الباری کتاب الأدب(ص۶۰۳-۶۰۵)-

کښې د دې روایت نه وړاندې باب بغیر د ترجمه ذکر دې (زمونږ په هندوستانی نسخو کښې داسې ده) اود دې باب بلاترجمه په مناسبت ماقبل باب سره په دې معنی دې چه غشې ویشتونکې د دې امر نه مستغنی نشی کیدې چه هغه به د دښمن د غشونه د بچ کیدلو دپاره د څه څیز استعمال نه کوی. د دې د پاره هغه د څه داسې څیز استعمال کوی چه د دښمن غشی منع کړیشی.(۱)

لیکن علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د حافظ صاحب دا قول د تکلف او تعسف نه خالی نه دې. بهتردادی چه داسې اووئیلې شی چه په دې حدیث کښې د رمی ذکردې. دغه شان د تیرشوی باب په رومبی حدیث کښې هم د رمی ذکر وو اود مناسبت د پاره هم دومره هم کافی دی. (۲)

داهم وئیلی شی چه د تیرشوی باب رومبی حدیث کښې دا راغلی دې چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه غشی ورول او نبی علیه السلام ډهال نیولې وو چه دواړه د مخالفینو د غشو نه بچ شی.دغه شان دلته هم دا راغلی دی چه حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه غشی ورول او نبی علیه السلام هغه له غشی ورکول.(۳) ښکاره غوندې خبره ده چه دا د دې د پاره وو چه هغوی د دښمنانو د غشو نه بچ پاتې شی ځکه چه د هغه طرف نه داسې مسلسل غشی وریږی نود بل طرف خلقوته به د غشو ورولو موقع نه ملاویږی.

## ۸۰-بَاب: الدَّرَق

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته هم امام بخاری رحمه الله د ډهال باره کښې خودلې دی چه د دې استعمال مشروع او جائز دې.(۴)

لیکن اعتراض داکیږی چه داخو په ترجمه کښې تکرار شوځکه چه وړاندینې باب کوم چه د مجن او ترس باره کښې وو نو په هغې کښې هم د مجن او ترس معنی هم د ډهال ده.

د دې اعتراض جواب خو دا ورکولې شی چه د مجن او ترس معنی مطلقاً ډهال دې، خو درق هغه ډهال ته وائی چه د څرمنې نه جوړوی او په هغې کښې لرګې او پټه نه وی،اوس د معنې فرق دې نو په دې وجه هیڅ اعتراض پاتې نشو.(۵)

دوئم جواب دا ورکړیشویدې چه په مخکینی باب کښې د ترجمة الباب نه مقصد ((ومن یتترس بترس صاحبه)) جمله ده دمجن ذکرمقصد نه دې، په دې وجه امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې هم د ډهال ذکر اوکړو.(۶)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص ۹٤)-

۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۸۶)-

۳) (انظر صحیح البخاری کتاب المغازی باب ﴿إذهب طائفتان منکم أن تفشلا....﴾رقم (٤۰۵۵)-

٤) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۱۸۶) وفتح الباری (ج۶ص۹۵)-

۵) (الأبواب والتراجم للکاندهلوی (ج۱ص۱۹۸) قال العلامة طاهر الفتنی رحمة الله وفی الدستور الدرقة – بفتحتین- وقاف الحجفةوأراد بها الترس من جلود لیس فیه خشب ولاعصب (ج۲ص۱۶۷) مادة درق-

۶) ( الأبواب والتراجم (ج ۱٤ص۱۹۸)-

خو دا دونم جواب زړه ته نه لګی ځکه چه دا دعوی چه مقصود د ترجمه دونم جز دې صحيح نه ده، ځکه چه په مخکينی باب کښې امام بخاری چه کوم احاديث ذکر کړی دی په هغې کښې بعض د ترجمه اول جز او بعض دونم جز سره منطبق وو، لکه څنګه چه په ماقبل کښې د دې تفصيل تيرشويدې. بيا که چرې دا دعوی هم اومنلې شی چه وړاندينی باب کښې د ترجمه دونم جز مراد دې نو په دې کښې هم د ترس يعنی ډهال ذکر دې نو هم هغه اعتراض تکرارفی الترجمه دوباره واقع کيږی.

[۲۷۵۰] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ عَمْرٌو حَدَّثَنِي أَبُو الْأَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا(۱) دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدِي جَارِيَتَانِ تُغَنِّيَانِ بِغِنَاءِ بُعَاثَ فَاضْطَجَعَ عَلَى الْفِرَاشِ وَحَوَّلَ وَجْهَهُ فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ فَانْتَهَرَنِي وَقَالَ مِزْمَارَةُ الشَّيْطَانِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقْبَلَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعْهُمَا فَلَمَّا غَفَلَ غَمَزْتُهُمَا فَخَرَجَتَا قَالَتْ وَكَانَ يَوْمُ عِيدٍ يَلْعَبُ السُّودَانُ بِالدَّرَقِ وَالْحِرَابِ فَإِمَّا سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِمَّا قَالَ تَشْتَهِينَ تَنْظُرِينَ فَقَالَتْ نَعَمْ فَأَقَامَنِي وَرَاءَهُ خَدِّي عَلَى خَدِّهِ وَيَقُولُ دُونَكُمْ بَنِي أَرْفِدَةَ حَتَّى إِذَا مَلِلْتُ قَالَ حَسْبُكِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاذْهَبِي قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ أَحْمَدُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ فَلَمَّا غَفَلَ [ر: ۴۴۳]

## تراجم رجال

۱-اسماعيل: دا اسماعيل بن ابى اويس بن عبدالله رحمه الله دې(۲) د دوی حالات ((كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال)) لاندې تيرشوی دی.(۳)

۲-ابن وهب: دا مشهور امام حديث ابومحمد عبدالله بن وهب بن مسلم قرشی فهری رحمه الله دې. د دوی تذکره ((كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين)) لاندې راغلی ده.(۴)

۳-عمرو: دا عمرو بن الحارث مصری رحمه الله دې. (۵)

۴-ابوالاسود: دا ابوالاسود محمد بن عبدالرحمن بن نوفل مدنی رحمه الله دې. (۶)

---

۱) (قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث مرتخريجه فى كتاب الصلاة باب الحراب فى المسجد وكتاب العيدين باب الحراب والدرق يوم العيد)-

۲) (فتح البارى (ج۶ص۹۵)-

۳) (كشف البارى (ج۲ص۱۱۳)-

۴) (كشف البارى (ج۳ص۲۷۷)-

۵) (ددوی حالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب من مضمض من السويق ولم يتوضأ-

۶) (ددوی حالاتودپاره اوګورئ كتاب الغسل باب الجنب يتوضأ ثم ينام-

۵- **عروه:** دلمشهور تابعي حضرت ابوعبدالله عروه بن الزبير قرشي اسدي رحمه الله دي. دَ دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه)) لاندې راغلې ده.(١)

٦- **عائشه:** دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابوبكر رضي الله عنها ده، دَ دوى حالات ((بدء الوحي)) دونم حديث كښې راغلي دى. (٢)

**قوله:** قالت: دخل على رسول الله صلى الله عليه وسلم.....: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ما كره تشريف راوړو نو دوو جينكو ماسره د جنګ بعاث شعرونه وئيل. حضور صلى الله عليه وسلم په بستره باندې سملاستو او مخ مبارك ئې بل اړخ ته كړو. دې نه پس حضرت ابوبكر رضي الله عنه راغلو هغه زه اورټلم چه دا شيطاني لوبه او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندې. رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ هغه طرف ته متوجه شواو وئې فرمائيل چه داپرېږده. بيا چه كله دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه توجو اخوا شوه نو ما دواړو جينكوته اشاره اوكړه نو لاړې.

حضرت عائشه رضي الله عنها نور فرمائي چه دَ اختر په ورځ به حبشي خلقو ډهالونواودَجنګ سامان سره لوبې كولې. حضور ته مې درخواست اوكړو يا هغوى صلى الله عليه وسلم پخپله ماته اوفرمائيل چه ته كتل غواړې؟ ما عرض اوكړو چه اوجى، هغوى صلى الله عليه وسلم زه خپلې شاته اودرولم، زما مخ دَ حضور صلى الله عليه وسلم مخ مبارك ته نزدې وو هغوى به فرمائيل اې بني ارفده! ښه ډير ښه، تر دې چه كله زه ستړې شوم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه بس. ما وئيل اوجى، نو حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه اوس زه.

**تنبيه:** دَحديث باب مكمل تشريح انشاء الله (كتاب الصلاة)(٣) او (كتاب العيدين)(٤) كښې به راځي.

**قوله:** قال أحمد: فلما غفل: دَ احمد نه مراد ابن صالح دې. (۵)

**دَ تعليق مقصد:** دَ دې تعليق مقصد دا دې چه احمدبن صالح په روايت كښې ((فلما عمل)) (لكه چه زمونږ په هندوستاني نسخوكښې دې) په ځاى ((فلما غفل)) دې. په دواړو صورتونو كښې فاعل حضرت ابوبكر رضي الله عنه دې. او معنى هم تقريباً نزدې نزدې ده. نودَ ((فلما عمل)) مطلب خو دا دې چه كله حضرت ابوبكر رضي الله عنه بل طرف ته مشغول شو او ((فلما غفل)) مطلب دې چه كله هغه غافل شو.

**دَمذكوره تعليق تخريج:** امام بخارى دَ خپل شيخ احمدبن صالح دا تعليق موصولاً (كتاب

---

١ ) (كشف البارى (ج٢ص٤٣٦)-
٢ ) (كشف البارى (ج١ص٢٩١)-
٣ ) (صحيح بخارى كتاب الصلاة باب الحراب فى المسجد (رقم ٤۵٤)-
٤ ) (صحيح بخارى كتاب العيدين باب الحراب والدرق يوم العيد رقم (٩٤٩)-
۵ ) (فتح البارى (ج٦ص٩٤) حيث قال الحافظ رحمه الله وهومقتضى إطلا أبى على بن السكن حيث قال كل مافى البخارى: "حدثنا أحمد غيرمنسوب فهوابن صالح"-

العهدة) كښې نقل كړيدي.(١)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت دَ حضرت عائشه ﷺ دي جمله كښې دې. ((وكان يوم عيد، يلعب السودان بالدرق والحراب.....))(٢)

**فائده:** علامه ابن بطال فرمائى چه دَ باب دَ حديث نه معلومه شوه چه درق دَ جنګ دَ هغه سامان نه دي دَ كوم استعمال چه مجاهد له پكار دې. اودَ دې په ذريعه دَ دښمن دَ وسلې نه بچ كيدل پكار دى اودَ نبى ﷺ اصحابو هم دا آلات استعمال كړى دى.(٣)

زمونږ په زمانه كښې دَ ډهال په ځائ بلټ پروف جيكټس استعماليږى په كوم چه دَ ګولئى اثر نه كيږى او پخوانې زمانه كښې دَ ډهال چه كوم حكم ووهم هغه دَ نن په زمانه كښې دَ بلټ پروف جيكټونودې.

## ٨١- بَاب: الْحَمَايِلِ وَتَعْلِيقِ السَّيْفِ بِالْعُنُقِ

**دَ حمائل معنى:** حمائل — بفتح الحاء والميم — دَ حمالة او حميلة جمع ده، خو امام اصمعى ﷺ فرمائى چه دَ حمائل دَ دې لفظ نه هيڅ واحد (مفرد) نشته بلكه دَ دې واحد محمل دې.(٤)

بهر حال دَ دې مفرد حماله وى حميله يا محمل دَ دې په معنى باندې ده، دې ته پيټئى هم وائى كوم كښې چه توره زوړندولې شي.(٥)

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه ابن بطال ﷺ فرمائى چه دَ باب مقصد او فائده دا ده چه تورې په غاړه كښې زوړندول پكار دى په خلاف دَ هغه سړى چه دَ دې خبرې قائل وى چه توره په غاړه كښې مه زوړندوه بلكه په سينه دې اوتړلې شي. نو ښكاره خبره ده چه كه توره په غاړه كښې زوړنده كړى يا په سينه ئى اوتړى يوه خبره ده او په دې كښې هيڅ بدى نشته.(٦)

علامه ابن المنير ﷺ فرمائى چه دَ مصنف عليه الرحمة مقصد د دې ترجمونه دَ سلف صالحينو طريقه كار خودل دى چه هغوى به دَ وسلوپاره كښې اختياروله او دا خودل دى چه دَ حضور ﷺ په مباركه زمانه كښې به دَ كومو كومو وسلو استعمال كيدلو، دې دَ پاره چه هغه دَ نفس دَ پاكوالى سبب جوړشى او دَ بدعت نه دَ لريوالى ذريعه وى.(٧)

---

١) (تغليق التعليق (ج٣ص٤٤٥)-

٢) (عمدة القارى (ج١٤ص١٨٧)-

٣) (شرح ابن بطال (ج٥ص٩٨)-

٤) (شرح ابن بطال (ج٥ص٩٨)-

٥) (حواله بالا، فتح البارى (ج٦ص٩٥) ولسان العرب (ج١١ص١٧٨) (مادة ح.م.ل) -

٦) (القاموس الوحيد (ص٣٧٨) مادة حمل-

٧) (فتح البارى (ج٦ص٩٥)-

[۲۷۵۱] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(١) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَيْلَةً فَخَرَجُوا نَحْوَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدِ اسْتَبْرَأَ الْخَبَرَ وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ وَفِي عُنُقِهِ السَّيْفُ وَهُوَ يَقُولُ لَمْ تُرَاعُوا لَمْ تُرَاعُوا ثُمَّ قَالَ وَجَدْنَاهُ بَحْرًا أَوْ قَالَ إِنَّهُ لَبَحْرٌ [ر: ۲۴۸۴]

## تراجم رجال

۱- سلیمان بن حرب: دا ابوسلیمان بن حرب ازدی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من کره أن یعود فی الکفر....)) لاندې راغلې دی. (۲)

۲- حمادبن زید: دا حماد بن زیدبن درهم ازدی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات هم ((کتاب الإیمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنین اقتتلوا....﴾ په ذیل کښې تیرشوی دی.(۳)

۳- ثابت: دامشهور تابعی حضرت ابومحمد ثابت بن اسلم بنانی رحمه الله دې.دَ دوی تذکره ((کتاب العلم باب القراءة والعرض علی المحدث)) لاندې راغلې ده.(۴)

۴- انس: دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) (۵)

**تنبیه:** دَ حضرت انس رضی الله عنه نه روایت شوی حدیث باب تشریح روستو (کتاب الجهاد) په مختلفو ځایونو کښې تیره شویده. خو دَ بعضو په اول ځل راتلونکو جملوتشریح او توضیح دلته ذکر کولې شی.

**قوله:** وقداستبرأالخبر.....: په حقیقت کښې حضور صلی الله علیه وسلم دَ خبر تحقیق کړې وو.

((استبرأ)) معنی دَ تحقیق او تفتیش ده. (۶)

**قوله:** وهو یقول: لم تراعوا، لم تراعوا: حضور صلی الله علیه وسلم فرمائیل چه تاسو خلقو مه ویریږئ تاسو خلق مه ویریږئ.

علامه خطابی رحمه الله اودَ هغه په اتباع کښې علامه کرمانی رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمائی

---

۱) (قوله: عن أنس رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس-

۲) (کشف الباری (ج۲ ص۱۰۵)-

۳) (کشف الباری (ج۲ص۲۱۹)-

۴) (کشف الباری (ج۳ص۱۸۳)-

۵) (کشف الباری (ج۲ص ٤)-

۶) شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۶۸) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۷۸)-

چه کلمه ((لم)) دلته دَ ((لا)) ناهيه په معنی کښې دې او مطلب دا دې چه مه ويريږئ، دَ عربوخلق کلمه ((لم)) داسې استعمالوی چه ((لم)) دَ ((لا)) په ځائ وائي. (١)

ليکن حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائي ((لم تراعوا)) کښې دَ سر نه دَ ويرې نفي ده او په دې جمله کښې هغه مبالغه موندلې شی کومه چه ((لاتراعوا)) کښې نشی موندلې. دَ دې وجه دا ده چه په نهي او نفي کښې فرق دې نو نهي دَ خپل موجب دَ وجود متقاضي کيږي په خلاف دَنفي چه نفي کښې دَ هغې دَ موجب دَ وجود کيدل ضروري نه دی.(٢)

اوس دَ حضور ﷺ دَ دې جملې ((لم تراعوا)) مطلب دا شو چه اې صحابه کرامو! تاسو اونه ويرېدلئ په دې کښې دَ سر نه د ويرې نفي اوشوه.

او چه دا وئيلی شوی دی اهل عرب کلمه ((لم)) ته کلمه ((لا)) ناهيه په ځائ هم استعمالوی دا په خپل موضع کښې نه ده واقع.(٣) يعني که دا استعمال چرته په بل ځائ کښې وی نو وی دې ليکن دلته کلمه ((لم)) دَ کلمه ((لا)) په ځائ نه ده استعمال شوې لکه چه علامه خطابي رحمه الله وغيره دعوی کړيده.

حضرت شيخ الحديث محمدزکريا رحمه الله هم دَ حضرت گنگوهی رحمه الله دا توجيه خوښه کړيده او دا ئې راجح گرځولې ده.(۴)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې. ((وفي عنقه السيف)) نودَ دې نه معلومه شوه چه توره په غاړه کښې زوړندول جائز دی.(۵)

ليکن اشکال دا کيږی چه په حديث کښې خودَ حمائل ذکر نشته او په ترجمه کښې خودَ حمائل هم ذکر دې. نو جواب دا دې چه حمائل دَ تورې حصه ده او دَ تورې ذکر کول دَحمائل په موجود کيدو باندې پخپله دلالت کوی. په دې وجه دَ دې جدا ذکر کولو څه ضرورت نشته.(۶)

....

---

(١) (أعلا الحديث (ج٢ص١٣٩٩) وشرح الكرماني (ج١٢ص١٦٩) وعمدة القاري (ج١٤ص٧٧) قال العلامة الخطابي رحمه الله وقوله: يريد: لاتخافوا، والعرب تتكلم بهذة الكلمة هكذا. تضع كلمة ((لم)) موضع ((لا))- وقال (أبوعراش) الهذلي. رفوني وقالوا: ياخلاد لم ترع. وانظر لسان العرب مادة (ر.ف.ا) (ج١ ص٨٧)-

٢) (نور الأنوار مبحث النهي (ص٦٣)-

٣) (لامع الدراري ((ج٧ص١٢٨)-

٤) (تعليقات لامع الدراري (ج٧ص٢٣٨)-

٥) (عمدة القاري (ج١٤ص١٧٨) وفتح الباري (ج٦ص٩٥)-

٦) (عمدة القاري (ج١٤ص١٨٧)-

# ۸۲- بَاب: حِلْيَةِ السُّيُوفِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حلية کالی ته وائی که دَ سرو زرو وی که دَ سپینو زرو او دَ امام بخاری ﷫ مقصد دَ دې ترجمه نه داخودل دی چه په توره کښې سره زر یا سپین زر لګول جائز دی که نه؟ (۱) لیکن په دې مسئله کښې اختلاف دې د دې دپاره تفصیل به مونږ وړاندې دَ حدیث په تشریح کښې ذکر کوو.

[۲۷۵۲] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ حَبِيبٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ (۲) يَقُولُ لَقَدْ فَتَحَ الْفُتُوحَ قَوْمٌ مَا كَانَتْ حِلْيَةُ سُيُوفِهِمُ الذَّهَبَ وَلَا الْفِضَّةَ إِنَّمَا كَانَتْ حِلْيَتُهُمُ الْعَلَابِيَّ وَالْآنُكَ وَالْحَدِيدَ

## تراجم رجال

۱- احمد بن محمد: دا ابوالعباس احمد بن محمدبن موسی المروزی ﷫ دې. (۳)

۲- عبدالله: دا امام عبدالله بن مبارك الحنظلی ﷫ دې. دَ دوی مختصر تذکره ((بدءالوحي)) کښې تیره شوې. (۴)

۳- الاوزاعي: دا ابوعمرو عبدالرحمن بن عمرو بن ابی عمرو یحمداوزاعی ﷫ دې. دَ دوی حالات ((کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم)) لاندې تیرشوی دی. (۵)

۴- سلیمان بن حبیب: دا امام قاضی سلیمان بن حبیب المحاربی الدارانی ﷫ دې. ابوایوب، ابوبکر یا ابوثابت دَ هغوی کنیت دې. (۶)

دې دیرشو کالوپورې دَ مختلفو خلفاؤ مثلاً عمربن عبدالعزیز، یزید، ولید، هشام بن عبدالملك بن مروان، ولید بن یزید بن عبدالملك وغیره دَ طرف نه دَ دمشق قاضی په مرتبه فائز وو. (۷)

قاضی سلیمان بن حبیب حضرت ابوامامه الباهلی، حضرت ابوهریره، حضرت معاویه اوحضرت انس ﷡، عامر بن لدین اشعری او ولید بن عباده الصامت ﷫ تعالی وغیره نه دَ حدیث روایت کوی.

---

۱) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۸۸)-

۲) (قوله: سمعت أباأمامة رضی الله عنه: الحدیث أخرجه الإمام ابن ماجة غیر الإمام البخاری فی کتاب الجهاد باب السلاح رقم (۲۷۰۷)-

۳) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب مایقع من النجاسات فی السمن والماء-

۴) (کشف الباری (ج۱ص۴۶۲)-

۵) (کشف الباری (ج۳ص۴۰۸)-

۶) (تهذیب الکمال (ج۱۱ص۳۸۲) وسیر أعلام النبلاء (ج۵ص۳۰۹)-

۷) (حواله بالا-

اود هغوی نه روایت کونکوکښې امام زهری، عمر بن عبدالعزیز(دا دواړه) د هغوی داقرانو نه دی، عبدالعزیز بن عمرعبدالعزیز، اوزاعی، عثمان بن ابی العاتکه ، ابوکعب، ایوب بن موسی السعدی، عبدالوهاب بن بخت وغیره شامل دی.(۱)

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ((ثقة)) (۲)

امام عجلی او امام نسائی رحمهما الله نه هم دَ هغه توثیق مروی دې. (۳)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ((لیس به بأس، تابعی مستقیم)) (۴)

علامه ذهبی رحمه الله فرمائی ((ثقة))(۵)

امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ابوداؤد او امام ابن ماجه رحمهما الله هم دَ دوی نه روایت اخستې دې. (۶)

په بخاری شریف کښې دَ هغوی نه صرف یو حدیث یعنی حدیث باب دې. (۷)

علامه واقدی، ابن سعد ، ابن حبان او علی بن عبدالله تمیمی رحمهم الله په قول دَ هغوی انتقال په کال ۱۲۲ھ کښې شوې. او همدغه صحیح هم دی. (۸)

۵- ابوامامه: دامشهور صحابی حضرت ابوامامه رضی الله عنه صُدَی – بضم المهملة الأولى وفتح الثانية وتشديد الياء –(۹) ابن عجلان الباهلی دې.(۱۰)

قوله: ...یقول: لقد فتح الفتوح قوم ماكانت حلية سيوفهم الذهب والفضة: قاضی سلیمان بن حبیب رحمه الله فرمائی چه ماد حضرت ابوامامه باهلی رضی الله عنه نه اوریدلی هغوی فرمائیل چه بې شکه دا ټول فتوحات هغه خلقو (صحابه کرام رضی الله عنهم) کړی دی دَ چا دَ تورو بنائسته والې او زینت چه نه په سرو زرو سره شوې وو او نه په چاندنۍ سره.

حضرت ابوامامه باهلی رضی الله عنه چه دا اوفرمائیل صحابه کرام رضی الله عنهم دَ چا په لاسونوچه دا بې شمیره فتوحات پوره شوی دی دَ هغوی په تورو باندې نه د سرو زرو کار شوې وو او نه د چاندئی. دَ دې فرمان اوقول سبب دَ ابن ماجه په روایت کښې راغلی دی چه په دې روایت کښې دا تفصیل هم ذکر دې:

---

۱ ) (شیوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۱۱ص۳۸۳)-
۲ ) (تاریخ عثمان الدارمی (ص۱۲۹) رقم (۴۰۸)-
۳ ) (تهذیب تاریخ ابن عساکر (ج۶ص۲٤۸)-
٤ ) (الکاشف (ج۱ص ٤٥۸) رقم (۲۰۷۸)-
۵ ) (تهذیب الکمال (ج۱۱ ص ۳۸٤) وحواله بالا-
۶ ) (عمدة القاری(ج ۱٤ص۱۸۸)-
۷ ) (فتح الباری (ج۶ص۹۵) وعمدة القاری (ج ۱٤ص۱۸۸)-
۸ ) (طبقات ابن سعد (ج۷ص ٤٥۶) وتهذیب الکمال (ج۱۱ص ۳۸٤)-
۹ ) (عمدة القاری (ج ۱٤ص۱۸۸)-
۱۰ ) (دَدوی دَحالاتو دَپاره اوګورئ کتاب الحرث والمزارعة، باب مایحذرمن عواقب الاشتغال بآلة الزرع....

((قال رأى سليمان بن حبيب، دخلنا على أبي أمامة: فرأى في سيوفنا شيئا من حلية فضة، فغضب، وقال: لقد فتح.....)) (١)

قاضي سليمان بن حبيب فرمائي چه مونږ خلق حضرت ابوامامه باهلي ﷛ کره داخل شو نو هغه زمونږ په تورو باندې څه چاندي اوليده نو په غصه شو او وني فرمائيل.... د امام اسماعيلي ﷫ د روايت نه معلوميږي چه حضرت ابوامامه کره د داخليدلو واقعه د حمص ده. (٢) د طبراني د روايت نه پته لګي چه قاضي سليمان بن حبيب سره د هغه په نورو ملګرو کښې عبدالله بن ابی زکريا او مکحول ﷭ هم وو. (٣)

**قوله:** إنما كانت حليتهم العلابي والآنك والحديد: بلکه د اوښ د سټ اوږده پټه، سيسه او اوسپنه د هغوی د تورو کالي وو.

**د ذکر شوې جملې مطلب:** مطلب دا دې چه حضرات صحابه کرام رضوان الله عليهم د چا په لاسونوچه دا لوئ لوئ او عظيم الشان فتوحات سرته رسيدلي وو، په دې عيش او عشرت کښې نه وو په کوم کښې چه نن تاسو خلق اخته ئې، ستاسو د تورو ښائست او کالی سپين زر او سره زر دی خود هغوی د تورو کالی به دا معمولی څيزونه وو. (۴)

**د لفظ "علابی" تحقيق:** العلابي — بفتح العين المهملة وتخفيف اللام وكسر الباء الموحدة — (٥)

د علباء جمع ده. علامه خطابی ﷫ مطابق د سټ پټې ته وائی او په هريو سټ کښې دوه علباء وی اود اوښ په تولو پټوکښې دا مضبوطې وی. (٦)

اوس د علامه خطابی ﷫ مطابق د ((العلابي)) نه د اوښ د سټ پټې مراد دی.

علامه قسطلانی ﷫ فرمائی چه داسې به کيدل چه اول به د اوښ د سټ پټې خيرې کيدلې بيا به د تورې تيکی لاندينئ او پاخنئ حصه کښې دا تړلې کيده بيا به ئې راتاووله او دا به د ښائست يا کالی په توګه اختيارولې شو. (٧)

د حافظ ابونعيم ﷫ په (مستخرج) کښې چه کوم روايت دې په هغې کښې امام اوزاعی ﷫ د علابي تفسير په دې الفاظوسره کړيدې. ((الجلود الخام التي ليست بمدبوغة)) يعنی هغه کچه څرمنې د کومې چه دباغت نه وی شوې. (٨)

---

١) (سنن ابن ماجه كتاب الجهاد باب السلاح رقم (٢٨٠٧)-

٢) (فتح الباری (ج ١٤ص٩٥)-

٣) (المعجم الكبير للطبرانی (ج٨ص ١٠٠) رقم (٧٤٩٣)-

٤) (فيض الباری (ج٣ص ٤٣٦)-

٥) (عمدة القاری (ج ١٤ص١٨٨) وفتح الباری (ج٦ص ٩٦)-

٦) (أعلام الحديث (ج٢ص ١٤٠٠) والقاموس الوحيد (ص١١١٣) مادة علب-

٧) (شرح القسطلانی (ج٥ص٩٨) وتعليقات اللامع (ج٧ص٢٣٩)-

٨) (حواله بالا، وفتح الباری (ج٦ص ٩٦)وعمدة القاری (ج ١٤ص١٨٨)-

او دَ علامه داودی رحمه الله دا خیال دې چه ((علاني رصاص)) هم دَ سیسې یو قسم دې. لیکن حافظ دَ علامه قزاز په (شرح غریب الجامع) په حواله سره دا خودلې دی چه دَ داؤدی دا خیال غلط دې. (۱)

بهرحال اکثرواهل لغت دَ اوښ دَستې پټې ته علاني ونیلې او همدغه راجح قول معلومیږی. (۲)

دَ "الانک" تحقیق: الآنك ـ بالمد وضم النون بعدها كاف ـ سیسې (سیکې) ته وائی دا داسې واحد مفرد لفظ دې دَ کوم چه هیڅ جمع نشته اودا هم ونیلی شوی دی چه ((آنك)) اسم جنس دې اودَ دې یوې ټکړې ته ((آنکة)) وائی.(۳)

او بعض حضراتو ونیلی دی ((آنك)) خالص سیسې ته وائی. (۴)

خو علامه داؤدی وائی چه ((آنك)) رانګ ته وائی.(۵) او رانګ یو معدنی څیز دې کوم سره چه یوخایٔ کول او دَ قلعی کار اخستلې شی. (۶)

اودَ علامه ابن الجوزی رحمه الله وینا ده چه ((آنکه)) قلعی سیسې ته وائی او ((القلعة ـ بفتح اللام)) یو دَ کان نوم دې دَ کوم طرف ته چه اهل عرب ښه رانګ سره منسوب کوی.(۷)

**په توره سره یاسپین زر لګولو حکم:** دَ احنافو او شوافعو حضراتوپه نزدپه توره باندې سره او سپین زر لګولو حکم دا دې چه دَ سرو زرو خوبالکل اجازت نشته خو سپین زردَ ښائست په توګه استعمالولې شی.(۸)

دَ دې حضراتو دلیل دَ ابوداؤد ترمذی او نسائی دا روایت دې. ((كانت قبيعة سيف الرسول الله صلى الله عليه وسلم من فضة))(۹)

((اللفظ للنسائي)) خو امام احمد رحمه الله نه دواړه قسمه روایتونه مروی دی. یوقول هم دغه چه

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۹۶)-
۲) (تاج العروس (۱ص۳۹۸) مادة علب-
۳) (فتح الباری (ج۶ص۹۶)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص۹۶) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۸۸)-
۵) (حواله بالا)-
۶) (مصباح اللغات(ص۶۸۴)مادة قصد-
۷) (حواله بالا ص۷۰۳)مادة قلع-
۸) (المجموع شرح الهذب للنووی(ج۴ص۴۴۴) وإعلاء السنن (ج۱۷ص ۳۲۱) کتاب الحظر والإ باحة وبذل المجهود (ج۱۲ص۸۳)-
۹) (سنن أبی داؤد کتاب الجهاد باب فی السیف یحلی رقم )۲۵۸۳) وسنن النسائی کتاب الزینة باب حلیة السف، رقم (۵۳۷۵) والجامع للترمذی أبواب الجهاد باب ماجاء فی السیوف وحلیتها رقم (۱۶۹۱) والشمائل المحمدیة للترمذی مع شرحه جمع الوسائل)ج۱صض۱۹۴) باب ماجاء فی صفة سیف رسول الله صلی الله علیه وسلم

صرف د چاندئی جوازشته (۱) دوئم قول دا دې چه سره زر هم په توره کښې استعمالولې شی. (۲)

**دَ امام احمد دلائل او دَ دې جوابونه:** امام احمد دَ سرو زرو په جواز دَ دې لاندینی احادیثو او آثارونه استدلال کړیدې.

① دَحضرت عثمان بن حنیف باره کښې مروی دی چه دَ هغه دَ تورې میخ دَ سروزرو وو(۳)

② دغه شان دَ حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه باره کښې روایت دې چه هغوی سره یوه توره وه چه دَ هغې دلې یا ټکرې دَ سرو زرو وې. (۴)

③ امام ترمذی رحمه الله په خپل سند سره مزیدة العصری نه روایت کړیدې چه نبی کریم ﷺ کله مکه مکرمه کښې داخل شوې وو نو دَهغوی په توره باندې سره زر او سپین زر لګیدلې وو. دَ حدیث یو راوی طالب بن حجیر وائی ((**فسألته عن الفضة فقال: كانت بيعة السيف فضة**)) چه ما دَ هغوی نه دَ چاندئی باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اووئیل چه دَ تورې دَ موټی چاپیره چاندی وه. (۵)

خود امام ترمذی دا حدیث د مختلفو وهاتو په وجه معلول دې

امام ترمذی رحمه الله پخپله دې حدیث ته حسن غریب وئیلې دې او ښکاره خبره ده چه چه حدیث غریب د هغوی د صحیح احادیثو معارضه نشی کولې په کومو کښې چه په صراحت سره د سرو دپاره د ذهب د استعمال ممانعت راغلې دې

**دَملاعلی قاری رحمه الله ارشاد:** ملاعلی قاری رحمه الله جمع الوسائل شرح الشمائل کښې لیکی:

**((لايعارض هذا ماتقرر من حرمته بالذهب لأن هذا الحديث ضعيف، ولايصح الجواب بأن هذا قبل ورود النهى عن تحريم الذهب لأن تحريمه كان قبل الفتح على ماتقل، ولعله على تقدير صحته أنه كانت فضته مموهة بالذهب.... ويشير إليه حيث ما سأل الراوى عن الذهب.لأنه كان عالما بحرمته وإنه لم يكن إلاتمويها))(۶)**

یعنی دا حدیث کښې چه کومه دَ سرو زرو دَ حرمت خبره مقرر شویده دَ دې معارضه نشی کولې ځکه چه دا حدیث ضعیف دې او دا جواب هم صحیح کیدې نشی چه داحدیث دَ سرو زرو دَ حرمت دَ نهی وارد کیدو نه وړاندینې دې ځکه چه د سرو زرو حرمت دَ مکې دَ فتح نه

---

۱ ) (المغنی لابن قدامة (۲ص۳۲۵)-

۲ ) (حواله بالا-

۳ ) (المغنی لابن قدامة (۲ص۳۲۵) واعلاء السنن (ج۱۷ص ۳۲٤)-

٤ ) (حواله بالا-

۵ ) (الجامع للترمذی أبواب الجهاد باب ما جاء فی السیوف وحلیتها رقم (۱۶۹۰) وقال الترمذی: وهذا حدیث حسن غریب والشمائل المحمدیة له مع جمع الوسائل (ج۱ص ۱۹٤) باب ما جاء فی صفة سیف رسول الله صلی الله علیه وسلم-

۶ ) (المواهب اللدنیة للبیجوری (ص۹۶) وجمع الوسائل فی شرح الشمائل (ج۱ص ۱۹٤)-

وراندې دې لګه چه نقل دی. اوکه د حدیث صحت اومنلې شی نو کیدیشی چه د تورې په چاندنی باندې د سرو زرو اوبه چړاؤ شوې وی اود دې خبرې طرف ته د راوی فعل هم اشاره کوی چه هغه د سرو زرو په بابت سوال نه دې کړې (بلکه د چاندنی باره کښې سوال کړیدې ځکه چه راوی ته پخپله د سرو زرو دحرمت علم وو او دا چه په دې باندې د سرو زرو اوبه چړاؤ شوې وې.

د دې حدیث په سند کښې یو راوی هود بن عبدالله دې، کوم چه ابن بطال رحمه الله مجهول ګرځولې دې. (۱) دغه شان علامه توربشتی رحمه الله فرمائی

((هذا الحدیث لا تقوم به حجة إذ لیس له سند یعتد به)) (۲)

یعنی په دې حدیث سره حجت نشی تام کیدې ځکه چه د دې حدیث سند د دې درجې نه دې چه په دې باندې اعتبار او بهروسه اوکړېشی.

دې نه علاوه بعضو محدثینو حضراتو او ائمه رجالو هم د دې حدیث په سند کلام کړیدې.

نو علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((لیس إسناده بالقوی)) (۳) او ابن القطان رحمه الله فرمائی ((هو عندی ضعیف لاحسن)) او ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی ((هذا منکر)) او علامه ذهبی رحمه الله فرمائی ((صدق ابن القطان)) (۴)

د حضرت عثمان بن حنیف باره کښې چه دا کوم روایت دې چه د هغه د تورې میخ د سرو زرو وو نود دې نه احنافوته هم څه اختلاف نشته. قاضی خان رحمه الله فرمائی ((ولا بأس بمسامیر الذهب والفضة)) (۵)

او ترکومې چه د حضرت عمر رضی الله عنه د تورې تعلق دې چه په دې کښې د سرو زرو ټکړې لګیدلې وې نو په دې کښې دوه احتماله دی:

① که چرې دا ثابته شی چه حضرت عمر رضی الله عنه به دا استعمالوله نو دا په اثر تمویه باندې محمول دی، مطلب دا چه د دغه تورې په ذکر شوی ټکړو باندې د سرو اوبه چړاؤ وې. (۶)

② دا هم ممکن ده چه هغه توره حضرت عمر رضی الله عنه له په غنیمت کښې راغلې وې او هغه خپل خان سره ایخودې وی او هغه ئې استعمال کړې نه وی او دا خو واضح دی چه د سرو دپاره د سرو زرو یا سپینو زرو استعمال ممنوع دې د دې ساتل منع نه دی. ددې د پاره ئې خان سره کیخودې وی چه الله تعالی هغوی په کومو نعمتونو سره مشرف کړې وو چه هغوی له په مشرکانو باندې، د هغوی په مالونو او وسله باندې غلبه ورکړې وه چه ددې شکریه اداکړېشی. (۷)

---

۱) (تهذیب التهذیب (ج۱۱ص۷۴)-
۲) (انظر کتاب المیسر فی شرح مصابیح السنة (ج۳ص۸۹۰) وجمع الوسائل (ج۱ص۱۹۴)-
۳) (حواله بالا والاستیعاب بهامش الإصابة (ج۳ص۵۲۶)-
۴) (انظر جمع الوسائل فی شرح الشمائل وبهامشه شرح المناوی (ج۱ص۱۹۴)-
۵) (فتاوی قاضی خان بهامش الفتاوی العالمکیریة (الهندیة) (ج۳ص۴۱۳)-
۶) (اعلاء السنن (ج۱۷ص۳۲۴)-
۷) (حواله بالا-

**په توره کښې سره زر استعمالول او حدیث باب:** حضرت ابوامامه الباهلی رضی الله عنه په حدیث باب کښې دَ مضمون مطابق په توره کښې سره زر او سپین زر استعمالولو باندې تنقید کړيدې. دینه معلومیږی چه دَ سرو او سپینو زرو کالی استعمالول په توره کښې جائز نه دی لیکن احناف او شوافع چاندی دَ زینت په توګه اختیارولو ته جائز وائی.
دَ دې اشکال په جواب کښې حضرت مولانا ظفر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه په حدیث کښې داسې څه خبره نشته چه دَ چاندئی دَ کالی په توګه استعمال نفی وی، نو چه کله هغوی اوکتل چه خلق په دې کښې مشغول شو نو هغه تنقید اوفرمائیلوچه خلق دَ دې قسمه کارونو نه ډډه اوکړی. ګنی پخپله په بخاری شریف کښې روایت راغلې دې چه دَ حضرت زبیر رضی الله عنه توره په چاندئی سره ښائسته وه. (۱)
دغه شان دَ حضرت عروه رحمه الله باره کښې هم راغلی دی چه دَ هغه په توره کښې چاندې لګیدلې وه. (۲) په دې خبره باندې دلالت کوی چه دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه دا قول چه دَ صحابه کرامو تورې به چه سرو زرو او سپینو زرو ښائسته نه وې په اغلب باندې مبنی دې او په دې کښې دَ جواز نفی نشته. دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه منشاء همدغه وه چه خلق دې تورو ښائسته کولو کښې مشغول نه شی او دَ دې خبرې تنبیه کول وو چه دَ فتح او کامرانئی مدار په دې نه دې چه تورې دې ښائسته کړیشی.(۳)

## ۸۳-بَاب: مَنْ عَلَّقَ سَيْفَهُ بِالشَّجَرِ فِي السَّفَرِ عِنْدَ الْقَائِلَةِ

**دَترجمة الباب مقصد:** دلته دَ دې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دا خودلې دی که اوزګار وخت وی، او سړې آرام او قیلوله کوی او په دې وخت کښې خپله توره چرته اونه یا کونډه کښې زوړند کړی نو هیڅ باك نشته ځکه چه دَ دې اصل په سنت کښې موجود دې او دغه شان حضور صلی الله علیه وسلم هم خپله توره په اونه کښې زوړند کړې وه.
او علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ دې ترجمه فائده دا ده چه دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم بهادری، په الله تعالی باندې توکل او صدق یقین بیان کړیشی. (۴)

[۲۷۵۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي سِنَانُ بْنُ أَبِي سِنَانٍ الدُّؤَلِيُّ وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ (۵) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَ أَنَّهُ غَزَا مَعَ

---

۱ ) (الصحیح البخاری (ج۶ص۵۶۶) کتاب المغازی باب قتل أبی جهل رقم (۳۹۷۴)-
۲ ) (حواله بالا-
۳ ) (إعلاء السنن (ج۱۷ص۳۲۱)-
٤ ) (الأبواب والتراجم (ج۱ص۱۹۸) وعمدة القاری (ج١٤ص۱۸۹)-
۵ ) (قوله: جابر بن عبدالله رضی الله عنهما الحدیث: أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الجهاد باب تفرق الناس عن الإمام عندالقائلة والاستظلال بالشجر رقم (۲۹۱۳) وکتاب المغازی باب غزوة ذات الرقاع رقم (۳۴، ۳۵، ۴۱۳۶) ومسلم کتاب صلاة المسافرین باب صلاة الخوف رقم (۱۹۴۹) والنسائی فی سننه کتاب صلاة الخوف رقم ۱۵۵۳و۱۵۵۵)-

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَلَمَّا قَفَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ فَنَزَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ وَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ وَنِمْنَا نَوْمَةً فَإِذَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُونَا وَإِذَا عِنْدَهُ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ إِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ عَلَيَّ سَيْفِي وَأَنَا نَائِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِي يَدِهِ صَلْتًا فَقَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي فَقُلْتُ اللّٰهُ ثَلَاثًا وَلَمْ يُعَاقِبْهُ وَجَلَسَ [٢٧٥٦، ٣٨٩٨، ٣٩٠٥، ٣٩٠٦، ٣٩٠٨]

## تراجم رجال

۱- ابواليمان: دا ابواليمان حكم بن نافع بصرى رحمه الله دي.

۲- شعيب: دا ابوبشر شعيب بن ابى حمزة قرشى اموى رحمه الله دي. د دي دوارو حضراتو حالات ((بدء الوحى)) د شپږم حديث په ذيل كښې راغلى دي.(۱)

۳- الزهري: دا امام محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. د ده حالات هم اجمالاً ((بدء الوحى)) د دريم حديث په ذيل كښې راغلى دي.(۲)

۴- سنان بن ابى سنان الدؤلى: دا سنان بن ابوسنان يزيد بن اميه الدؤلى المدنى رحمه الله دي. (۳)

دې د حضرت جابربن عبدالله، حضرت حسين بن على بن ابى طالب، حضرت ابوهريره رضي الله عنهم او ابوواقد الليثى رضي الله عنه نه روايت كوى.

او د ده نه زيد بن اسلم او امام زهرى رحمه الله روايت كوى.(۴)

امام عجلى رحمه الله فرمائى ((مدنى تابعى ثقة)) (۵)

امام ذهبى رحمه الله فرمائى ((ثقة)) (۶)

امام ابوحاتم او امام ابن حبان رحمهما الله هغه په (كتاب الثقات) كښې ذكر كړې (۷)

د امام بخارى نه علاوه امام مسلم، ترمذى اونسائى رحمهم الله هم د ده نه روايات اخستې دي.(۸)

---

۱) (كشف البارى (ج ۱ص ٤٧٩-٤٨٠)-

۲) (كشف البارى (ج ۱ص ۳۲۶)-

۳) (تهذيب الكمال (ج ۱۲ص ۱۵۱ وعمدة القارى (ج ۱٤ص ۱۸۹)-

٤) (تهذيب الكمال (ج ۱۲ص ۱۵۲)-

۵) (حواله بالا-

۶) (الكاشف للذهبى (ج ۱ص ٤۶۸ رقم (۲۱۵۶)-

۷) (تهذيب الكمال (ج ۱۲ص ۱۵۲)-

۸) (حواله بالا-

يحيى بن بكير رحمه الله فرمائي چه دَ دوو اتيا كالو(۸۲) په عمر كښې په كال ۱۵۰هـ كښې وفات شو. (۱) رحمه الله رحمة واسعة.

۵- **ابوسلمه بن عبدالرحمن:** دا مشهور تابعي محدث حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان))لاندې تيرشوي دي. (۲)

۶- **جابر بن عبدالله رضي الله عنهما:** دا مشهور صحابي حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما دې. (۳)

**قوله: أخبرنا أنه غزا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم قبل نجد فلما قفل.....:** حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما ابوسلمه بن عبدالرحمن ته خبرور كړو چه هغه نبي اكرم ﷺ سره دَ نجد طرف ته په يوه غزا كښې شريك وو. كله چه رسول الله ﷺ واپس شو نو هغوى سره دې هم واپس شو. دَ قيلولې په وخت كښې مي هغه په داسې وادئي كښې اوموندلوچه كومه كښې چه لوئ لوئ ازغني ونې وې. حضور اكرم ﷺ هلته كوز شو او خلق هم دَ ونود سورو حاصلولو په غرض خواره شو. پخپله حضور ﷺ دَ يوې ونې لاندې آرام كولو او خپله توره ئې په دغه ونه كښې زوړنده كړه. مونږ تول اوده وو چه رسول الله ﷺ مونږ ته آواز اوكړو چه مونږ اوكتل نو يو بدو هغوى ﷺ سره ولاړ وو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دې سړي هم زما توره په ما باندې راوچته كړې وه او زه اوده ووم. كله چه بيدار شوم نو برينډه توره دَ ده په لاس كښې وه، ده ماته اووئيل چه اوس به دې رانه څوك بچ كوي؟ نو ما دري ځل الله اووئيل نو توره دَ بدو دَ لاس نه پريوتله او حضور ﷺ راوچته كړه، حضور ﷺ دې اعرابي ته هيڅ سزا ورنه كړه.

**تنبيه:** دَحديث باب مكمل تشريح په كتاب المغازى (۴) كښې راغلې ده. دَ دې دَپاره مونږ دلته صرف په ترجمه باندې اكتفا اوكړه. البته بعض فوائد كوم چه دَ حديث باب نه مستنبط كيږي ذكر كول به دَ فائدې نه خالي نه وي.

**دَ حديث باب نه مستنبط فائدې:** ① په ونه وغيره كښې توره او وسله دَ حفاظت په غرض زوړندول صحيح دي او دا امر معمول به دې. او په سنت كښې دَ دې اصل موجود دې. (۵)
② دَ شپې او قيلولې په وخت كښې دَ امام او سلطان حفاظت كول په خلقو باندې واجب او ضروري دي اود دې خبرې خيال نه ساتل غلطي او امر قبيح دې.(۶)

---

۱) (حواله بالا، وطبقات ابن سعد (ج۵ص۲۴۹) والكاشف (ج۱ص۴۶۸)-
۲) (كشف الباري (ج۲ص۳۲۳)-
۳) (دَ دوى دَ حالاتو دَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر
۴) (كشف الباري كتاب المغازى (ص۳۲۲-۳۲۶)-
۵) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۰)-
۶) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۱)-

④ دَ حدیث باب نه دَ رسول الله ﷺ دَ صبر او برداشت پته لګی چه سره دَ دې خبرې چه مغوی ﷺ ته دَ دغه اعرابی نه دَ بدلې اخستلو طاقت حاصل وو لیکن حضور ﷺ معاف کړلو. جاهلانو سره هم دغه طریقه اختیارول پکار دی.(۱)

⑤ دَ مصنف ابن ابی شیبه رحمه الله دَ روایت نه معلومیږی چه دَ حدیث واقعه دَ آیت مبارك ﴿والله یعصمك من الناس﴾(۲)
دَ نزول سبب جوړ شوې وو، حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی:

«كنا إذا نزلنا طلبنا للنبی صلی الله علیه وسلم أعظم شجرة وظلها قال: فنزلنا تحت شجرة فجاء رجل وأخذ سیفه فقال: یا محمد من یمنعك منی؟ قال: الله، فأنزل الله: ﴿والله یعصمك من الناس﴾- (۳)

یعنی چه کله به یو ځائ کښې کوزیدو نو دَ نبی ﷺ دَپاره به مو لویه ونه اودَ دې سورې لټولو نو یوځل مونږ دَ یوې ونې لاندې اوده شو نو یو سړې راغلو اوهغه دَ حضور ﷺ توره راوچته کړه او وئی وئیل اې محمد مانه به تاڅوك بچ کوی؟ نو نبی ﷺ اوفرمائیل الله! الله تعالی دا آیت نازل کړو﴿والله یعصمك من الناس﴾.

او دَ نبی اکرم ﷺ دَ حراست او حفاظت په سلسله کښې تفصیلی بحث روستو تیرشو.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې «فنزل تحت شجرة وعلق بها سیفه» (۴) دینه معلومه شوه چه په ونه کښې توره زوړندولو کښې څه باك نشته.

## ۸۴- بَاب: لُبْسِ الْبَيْضَةِ

**دَترجمة الباب مقصد:** «البیضة» خود یعنی دَ اوسپنې ټوپئی ته وای او امام بخاری رحمه الله دلته په سر باندې دَ اوسپنې ټوپئی اغوستلو مشروعیت او جواز خودلې دې چه دَ دې استعمال نبی ﷺ نه ثابت دې او دا دَ توکل علی الله خلاف نه دی. (۵)

[۲۷۵۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ (۶) جُرْحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ جُرِحَ وَجْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ وَهُشِمَتِ الْبَيْضَةُ عَلَى رَأْسِهِ فَكَانَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام

---

۱) (حواله بالا-
۲) (المائده:۶۷-
۳) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۰)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص۶) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۸۹)-
۵) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۰) ولامع الدراری (ج۷ص۲۴۰)-
۶) (قوله: عن سهل رضی الله عنه: الحدیث مرتخریجه فی کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم....-

تَغسِلُ الدَّمَ وَعَلِيٌّ يُمْسِكُ فَلَمَّا رَأَتْ أَنَّ الدَّمَ لَا يَزِيدُ إِلَّا كَثْرَةً أَخَذَتْ حَصِيرًا فَأَحْرَقَتْهُ حَتَّى صَارَ رَمَادًا ثُمَّ أَلْزَقَتْهُ فَاسْتَمْسَكَ الدَّمُ [ر: ٢٤٠]

## تراجم رجال

۱-عبدالله بن مسلمه: دا ابوعبدالرحمن بن عبدالله بن سلمه بن قعنب قعنبی رحمه الله دي. دَ ده تذکره اجمالا ((کتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن)) لاندې تيره شويده. (۱)

۲-عبدالعزيز: دا عبدالعزيز بن ابی حازم سلمة بن دينار رحمه الله دې. (۲)

۳-ابيه: ((أب)) نه مراد ابوحازم سلمه بن دينار الاعرج المدنی رحمه الله دی. (۳)

۴-سهل: دا مشهور صحابی حضرت سهل بن سعد الساعدی رضي الله عنه دی. (۴)

**تنبيه**: د حديث باب تشريح روستو په کتاب الوضوء (۵) کښې او کتاب المغازی (۶) او کتاب الطب (۷) کښې هم راغلې دې.او همدغه حديث اوس ماقبل کښې يو څو بابونه وړاندې تير شويدې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله کښې دې. ((وهشمت البيضة على رأسه))(۸) هغه دَ اوسپنې ټوپئی چه دَ رسول الله ﷺ په سرباندې پرته وه ماته شوه. دينه لبس بيضه ثابت شويده چه مدعا ده.

## ۸۵-بَاب: مَنْ لَمْ يَرَ كَسْرَ السِّلَاحِ عِنْدَ الْمَوْتِ

**دَترجمة الباب مقصد**: دَ جاهليت دَ خلقو طريقه دا وه چه په هغوی کښې به څوک بهادر مړشو نو دَ هغه وسلې به خلقوماتولې اودا به نی ونيل چه اوس دَ دې استعمالونکې باقی پاتې نشو نو دا به څه باقی پاتې وی اوکله کله خو به مړکيدونکی پخپله وعده اخستله چه د ده وسله دې ماته کړيشی.

نودَ دې ترديد دلته امام بخاری رحمه الله کړيدې چه دا دَ جاهليت دَ خلقو کار او فعل دې په اسلام کښې دَ دې هيڅ تصور نشته. (۹)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص ۸۰)-
۲) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الصلوة باب نوم الرجال فی المسجد-
۳) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباالدم عن وجهه-
٤) (حواله بالا-
٥) (صحيح البخاری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباهاالدم عن وجهه-
٦) (کشف الباری کتاب المغازی (ص۲٤٧)-
٧) (کشف الباری کتاب الطب ص ٣٤)-
٨) (فتح الباری (ج٦ص ٩٧) وعمدة القاری (ج ١٤ص ١٩٠)-
٩) (فيض الباری (ج٣ص ٤٣٦) وفتح الباری (ج٦ص٩٧) وعمدة القاری (ج ١٤ص ١٩١) وإرشادالساری (ج٥ص ١٠٠)

حافظ صاحب فرمائي چه غالبا دا هم کيديشي چه امام بخاري رحمه الله دَ جعفر طيار بن ابى طالب رضي الله عنه واقعې طرف ته اشاره کړې وى. کله چه هغه په جنګ موته کښې شهيد کيدلو نو هغه خپله وسله (نيزې او تورې) ماتې کړې وې او دَ خپلو اسونو پښې ئې پريکړې وې چه دښمن دا دَ مال غنيمت په توګه وانخلي.

نو امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دا دَ حضرت جعفر رضي الله عنه ذاتي فعل او دَ هغه اجتهاد وو باقي داسې وسلې نشي ماتولې ځکه چه قاعده داده چه دَمال تلف کول جائز نه دى. هغوى ليکي:

((ولعل المصنف لمح بذلك إلى مانقل عنه أنه كسر رمحه عند الاصطدام حتى لايغنمه العدو أن لو قتل وكسر جفن سيفه وضرب بسيفه حتى قتل كما جاء نحو ذلك عن جعفر بن أبي طالب في غزوة مؤتة (١) فأشار إلى أن هذا شيء فعله جعفر وغيره عن اجتهاد والأصل عدم جواز إتلاف المال لأنه يفعل شيئا محققا في أمر غير محقق)) (٢)

دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې: پورته تاسو دَ نورو شارحينو مثلاً حضرت کشميري رحمه الله، حافظ صاحب، علامه عيني او علامه قسطلاني رحمه الله وغيره رائې په ترجمة الباب دَ مقصد باره کښې اوکتله. اوحضرت فقيه النفس ګنګوهي رحمه الله يوه بله خبره دَ ترجمة الباب دَ مقصدپه توګه بيان کړيده. هغه دا چه که چرې دَ وسلې وغيره دَ ماتولو څه فائده وى نو وسله ماتول جائز دى ګنې هغه په اسراف منهى عنه کښې داخل دى.

دَ دې وجه دا ده چه نبي عليه السلام دَ خپل وفات حسرت آيات په وخت کښې خپله وسله تلف کړې او ضائع کړې نه وه ځکه چه په هغې کښې څه فائده نه وه. او که په وسله وغيره ماتولو کښې څه فائده وى مثلاً دَ وسلې دَ دښمن په لاس لګيدو ويره وى، يا دَ دې په وجه خپل ځان ته دَ نقصان رسيدو څه خطره وى يا بل چاته دَ نقصان رسيدو خطره وى مثلاً يو ماشوم وى يا ليونې چه دَ هغه په لاس دا وسله لګيدو سره خپل ځان ته نقصان رسوى يا دَ وسلې خپل ځان سره دَ کيخودو تهمت يا خرابئي څه انديښنه وى لکه دَ هندوستان دَ جنګ آزادئي ١٨٥٧ء کښې چه ووچه دَ چا دَ کور نه هم وسله راووتله نو هغه ته به دَ هندوستان حکومت نقصان رسولو نو په دې ټولو صورتونوکښې وسله ماتول جائز دى ځکه چه دا ټول صورتونه دَ څه نا څه فائدې متضمن دى. (٣)

حضرت شيخ الحديث دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې ته ترجيح ورکړيده. (٤)

[٢٧٥٥] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ (٥) قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا سِلَاحَهُ وَبَغْلَةً بَيْضَاءَ وَأَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً [ر: ٢٥٨٨]

---

١ ) (انظر سنن أبي داؤد أبواب الجهاد باب في الدابة تعرقب في الحرب رقم (٢٥٧٣) وقال أبوداؤد هذاالحديث ليس بالقوى. والسيرة الحلبية (ج٣ص٦٧)

٢ ) (فتح الباري (ج٦ص٩٧) وانظر لتفصيل مباحث غزوة مؤتة كشف البارى كتاب المغازى (ص٧٧)-

٣ ) (لامع الدرارى (ج٧ص٢٤١)-

٤ ) (الأبواب والتراجم (ج١ص١٩٨)-

٥ ) (قوله: عن عمرو بن الحارث رضي الله عنه: الحديث مرتخريجه في كتاب الوصايا باب الوصايا-

# تراجم رجال

۱- عمروبن عباس: دا ابوعثمان عمرو بن عباس البصری رحمه الله دی. (۱)

۲- عبدالرحمن: دا عبدالرحمن بن حسان عنبری بصری رحمه الله دی. (۲)

۳- سفیان: دا مشهور امام حدیث تبع تابعی ابوعبدالله سفیان بن سعیدبن مسروق ثوری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب علامة المنافق)) لاندې تیرشوی دی. (۳)

۴- ابواسحاق: دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید سبیعی رحمه الله دې. دَ ده تذکره ((کتاب الإیمان باب الصلاة من الإیمان)) کښې تیره شویده. (۴)

۵- عمروبن الحارث: دا مشهور صحابی، ام المؤمنین حضرت جویریه رضی الله عنها رور حضرت عمر بن الحارث رضی الله عنه دې. (۵)

**قوله:** قال: ماترك النبي صلی الله علیه وسلم إلاسلاحه وبغلة بیضاء وعرضا:

حضرت عمرو بن الحارث رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خپل وفات په وخت کښې خپله وسله، یو سپین قچر او په خیبر کښې یوه زمکه کومه چه هغوی صدقه کړې وه نه علاوه هیڅ نه وو پریخی.

دا حدیث (کتاب الوصایا) په شروع کښې راغلې دې.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنی دې چه اهل جاهلیت کښې دَ مړکیدونکی وسله به ماتولې شوه او دَ څناورو پښې به پریکولې شوې، په دې کار کښې نبی علیه السلام دَ هغوی مخالفت اوکړو او چه کوم څه هغوی صلی الله علیه وسلم په ترکه کښې پریخې وو دَ هغې متعلق نی هیڅ قسم وصیت اونه فرمائیلو سوا دَ خیبر دَ زمکې نه، هغه ئې دَ الله تعالی په لار کښې صدقه کړه. دَ حضور صلی الله علیه وسلم دې کار نه دا ثابته شوه چه واقعی د وسلې ماتولو رسم صحیح وې نو نبی علیه السلام به خامخا دَ دې وصیت فرمائیلو. نو قسطلانی رحمه الله فرمائی

((وخالف صلی الله علیه وسلم أهل الجاهلیة فیما کانوا یوصون به من کسر السلاح، وعقر الدواب، وحرق المتاع، من ترك بغلته وسلاحه وأرضه من غیر إیصاء فی ذلك بشیء إلا صدقة فی سبیل الله)) (۶)

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الصلاة باب فضل استقبال القبلة-

۲) (حواله بالا-

۳) (کشف الباری (۲ص۲۷۸)-

۴) (کشف الباری (ج۲ص ۳۷۰)-

۵) (دَ دوی دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الزکاة علی الزوج والأیتام فی الحجر-

۶) (شرح القسطلانی (ج۵ص ۱۰۰) وانظر شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۲) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۱)-

**د کسر سلاح نه د ممانعت حکمت:** اسلامي شريعت چه وسله وغيره نه تلف کولو او نه ماتولو بابت کښې فرمانيلي دی دَ دې حکمت دا دې چه دا وسله وغيره دَ مسلمان دَ ذکر خير دَ بقا ذريعه اود کومو نيکو اعمالو بنياد هغې اچولې او په کومو خو خصلتونو باندې هغه خلق راپاسوی نود هغې دَ زياتوالي او ډيروالي سبب دې. په خلاف دَ اهل جاهليت، دَ هغوی دَ کسر سلاح په فعل کښې دې خبرې ته اشاره ده چه د هغوی اعمال ختم اودَ هغوی دَ خير آثار به ضائع او ناپيد شي.

نوعلامه ابن المنير اسکندرانی رحمه الله فرمائی ((وفی إبقاء السلاح عنوان للمسلم علی إبقاء ذکره، واستبقاء أعماله الحسنة التی سنها للناس، وعادته الجميلة التی حمل عليها العباد، بخلاف أهل الجاهلية ففی فعلهم ذلك إشارة إلی انقطاع أعمالهم وذهاب آثارهم))(۱)

## ۸۶-بَاب: تَفَرُّقِ النَّاسِ عَنِ الإِمَامِ عِنْدَ القَائِلَةِ وَالاِسْتِظْلاَلِ بِالشَّجَرِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودلي دی چه دَ اسلام مجاهدين کله چه د جهاد وخت نه وی او فارغ وخت وی نو هغوی دې دَ آرام دَ پاره اخوا ديخوا خواره شي خو چه دَ ناڅاپي حملې وغيره انديښنه نه وی نو په دې کښې هيڅ خرابی نشته.

حضرت شيخ الحديث محمدزکريا کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه په شارحينو کښې چا هم دَ دې ترجمه غرض او مقصد طرف ته توجه نه ده ورکړې او زما په نزد دَ ټولونه بهتره توجيه دلته دا ده چه امام بخاری رحمه الله دَ دې ترجمة الباب په ذريعه دَ دې وهم دَ لرې کولو طرف ته اشاره کړيده چه دَ سنن ابوداؤد په روايت سره پيدا کيږی. (۲)

ابوداؤد کښې حضرت ابوثعلبه الخشنی رضی الله عنه روايت دې چه:

((کان الناس إذا نزلوا منزلا-وقال عمرو: وکان الناس إذا نزل رسول الله صلی الله عليه وسلم منزلا- تفرقوا فی الشعاب والأودية، فقال رسول الله صلی الله عليه وسلم إن تفرقکم فی هذه الشعاب والأودية إنما ذلکم من الشيطان ولم ينزل بعد ذلك منزلا إلا انضم بعضهم إلی بعض حتی يقال: لو بسط عليهم ثوب لعمهم))(۳)

يعنی صحابه کرام رضی الله عنهم به چه کله په يومنزل کښې کوزيدل، دَ امام ابوداؤد شيخ عمرو فرمائی چه کله به رسول الله صلی الله عليه وسلم په يو منزل کوزيدو نو صحابه کرام رضی الله عنهم به چرته په کندو او واديانوکښې خوريدل نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ستاسو خلقو دې کندو او واديانوکښې خوريدل بې شکه دَ شيطان دَ طرف نه دی. دې نه پس چه به کله هم رسول الله صلی الله عليه وسلم په يو منزل باندې ډيره واچوله نو ټول خلق به په خپل مينځ کښې يوځائ شو، تردې پورې وئيلی شوی دی چه که يوه کپړا په هغه ټولو خوره شوې وې نو هغه ټول په هغه کپړا کښې پټيدې شو.

---

۱) (شرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۰) وتعليقات لامع الدراری (ج۷ص۲۴۲)-

۲) (الأبواب والتراجم (ج۱ص۱۹۸)-

۳) (سنن أبی داؤد أبواب الجهاد باب مايؤمر من انضمام العسکر وسعته رقم (۲۶۲۸)-

د دې روایت خو دا معلومه شوه چه د اسلام د مجاهدینو په اوزګار وخت کښې اخوا دیخوا خوریدل او ګډوډ کیدل جائز نه دی، نو امام بخاری رحمه الله دلته روایت باب ذکر کولو سره اوفرمائیل چه دا جائز دی.

**یو تعارض او د هغې حل:** تاسو اوس اوکتل چه امام بخاری رحمه الله خود دې قائل دې چه د لښکر د اوزګارتیا په وخت د آرام کولو په غرض یوخوا بل خوا خوریدل جائز دی او امام ابوداؤد د دې د عدم جواز قائل دې. نو اوس د صحیح بخاری او سنن ابی داؤد په تراجم باب کښې تعارض واقع کیږی. تردې پورې چه د دواړو روایتونه هم خپل مینځ کښې متعارض دی. د حضرت جابر رضی الله عنه روایت د جواز طرف ته اشاره کوی نو د سنن ابوداؤد روایت کښې ممانعت دې.

د دې تعارض جواب دا دې چه د دواړو روایتونو محمل جدا جدا دې. د ابوداؤد شریف روایت په کوم کښې چه د اخوادیخوا خوریدلو ممانعت دې، تعلق په یوځائ کښې د کوزیدلو د شروع وختونونه دې، مطلب دا چه کله هم لښکر یو ځائ کښې ډیره واچوله نو زر اخوا دیخوا نه دی کیدل پکار بلکه هم نزدې اوسیدل پکار دی چه سلطان یا مشر ته په مشوره کولو کښې تکلیف پیښ نشی.

اوس چه ترکومې د ګډوډ کیدلو او خوریدلو د اجازت تعلق دې لکه چه د باب روایت په دې واضح دلالت کوی نود دې تعلق د ډیرې اچولو نه پس وختونو سره دې. مثلاً قیلوله یا نور ضروریاتود پاره هم په یو وخت کښې خلق مشغول شی، غالباً هم دې طرف ته امام بخاری رحمه الله هم اشاره کړیده چه په ترجمه کښې دا الفاظ هم دی. ((عند القائلة والاستظلال بالشجر)).

حضرت شیخ الحدیث محمد زکریا کاندهلوی رحمه الله د دې مذکوره تعارض جواب ورکولو کښې فرمائی:

((فیمکن أن یجاب عنه بأن المنع عن التفرق إنما هو عند ابتداء النزول لمصالح تقتضیه کأن یکون جمیع العسکر بمرأی من الإمام لیراقبهم ویشاورهم ونحو ذلك من الفوائد، وأما جواز التفرق فالمراد به التفرق بعد النزول مجتمعا فی وقت آخر للقیلولة وغیرها من الحاجات، ولعل الإمام البخاری إلیه أشار بقوله فی الترجمة: عند القائلة والاستظلال بالشجر)) (١)

د جواب خلاصه دا شوه چه د سنن ابوداؤد د روایت تعلق په یوځائ کښې د کوزیدونه پس دې او په روایت باب کښې چه کوم حکم بیان شویدې هغه د روستو اوقاتو دې.

[٢٧٥٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا سِنَانُ بْنُ أَبِي سِنَانٍ وَأَبُو سَلَمَةَ أَنَّ جَابِرًا أَخْبَرَهُ

حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سِنَانِ بْنِ أَبِي سِنَانٍ الدُّؤَلِيِّ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا (٢) أَخْبَرَهُ أَنَّهُ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى

---

١ ) (الأبواب والتراجم (ج١ص١٩٨)-

٢ ) (قوله: ان جابر بن عبدالله رضی الله عهنما: الحدیث مرتخریجه آنفاقیل بابین-

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الْعِضَاهِ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ ثُمَّ نَامَ فَاسْتَيْقَظَ وَعِنْدَهُ رَجُلٌ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ بِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ سَيْفِي فَقَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ قُلْتُ اللّٰهُ فَشَامَ السَّيْفَ فَهَا هُوَ ذَا جَالِسٌ ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ [ر: ۲۷۵۳]

**تنبیه:** حدیث باب دلته امام بخاری رحمه الله په دوو سندونو سره ذکر کړیدې. یو خو بالکل هم هغه سند دې چه اوس «باب من علق سیفه بالشجر...» لاندې تیرشو. دونم سند کښې هم دوه صرف داسې حضرات، دی چه په اول سند کښې نشته یوموسی بن اسماعیل اوبل ابراهیم بن سعد.

دٔ موسی بن اسماعیل نه مراد تبوذکی بصری رحمه الله دې، دٔ هغوی حالات «بدء الوحی» څلورم حدیث کښې تیرشویدې.(۱)

او ابراهیم بن سعد نه مراد ابواسحاق ابن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دٔ دوی تذکره «کتاب الإیمان باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال» لاندې تیره شویده. (۲)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دٔ حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت ظاهر دې چه په دې جمله کښې دې.«فتفرق الناس فی العضاه یستظلون بالشجر»(۳)

## ۸۷-بَاب: مَا قِيلَ فِي الرِّمَاحِ

**دٔترجمة الباب مقصد:** دٔ حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمهما الله وغیره رائې دا ده چه امام بخاری رحمه الله دلته دٔ رماح استعمال او هغه خپل ځان سره دٔ کیخودلو فضیلت بیانوی.(۴)

اوحضرت فقیه النفس مولانا رشیداحمد گنگوهی رحمه الله فرمائی چه دٔ امام بخاری مقصد دا بیانول وی چه دٔ نیزې استعمال او دٔ دې ځان سره ساتل جائز دی او دا دٔ توکل منافی نه دی.

«کما مر قوله فی لبس البیضة» (۵)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله دٔ حضرت گنگوهی رحمه الله رائې ته ترجیح ورکړیده. دٔ دې وجه دا ده چه امام بخاری رحمه الله په باب کښې دوه احادیث نقل کړی دی، یو دٔ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما او دونم دٔ حضرت ابوقتاده رضی الله عنه. اودٔ حافظ ابن حجر موقف دٔ ابن عمر رضی الله عنهما دٔ حدیث باره کښې خو صحیح کیدیشی لیکن دٔ ابوقتاده رضی الله عنه دٔ حدیث باره کښې نه ځکه چه په هغې کښې دٔ فضیلت وغیره باره کښې دٔ سر نه ذکر نشته اونه په دې باندې څه دلالت شته. په دې وجه بهتر توجیه دا ده چه دا اوونیلې شی چه دٔ بیان مقصد جواز دې نه چه دٔ فضیلت بیان. هغه فرمائی:

---

۱) (کشف الباری (ج۱ص۴۳۳)-
۲) (کشف الباری (ج۲ص۱۰۷)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۱)-
٤) (فتح الباری (ج۶ص۹۸) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۱) وشرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۳)-
۵) (لامع الدراری (ج۷ص۲۴۲)-

((قال الحافظ: ((باب ما قيل في الرماح)) أي في اتخاذها واستعمالها من الفضل، وهكذا قال العيني وغيره،

فحملوا الترجمة على الفضل، لكنه لايظهر إلا من حديث واحد.....))(۱)

**قوله: وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُعِلَ رِزْقِي تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِي وَجُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلَى مَنْ خَالَفَ أَمْرِي:** او دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعا روايت دې چه نبى اكرم ﷺ فرمائيلى دى زما رزق زما دَ نيزې دَ لاندې مقرر كړې شويدې او چه څوك زما دَ حكم خلاف ورزى كوى په هغه باندې ذلت او رسوائى مقررشويده.

**دَ حضرت ابن عمر رضى الله عنهما دَ مذكوره تعليق تخريج:** دَ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا تعليق امام احمد رحمه الله په خپل مسند كښې (۲) او حافظ ابوبكر بن ابى شيبه خپل (مصنف (۳) كښې موصولاً نقل كړيدې.(۴)

مصنف رحمه الله خودلته دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ حديث يوه حصه تعليقًا نقل كړيده او پوره حديث شريف داسې دې:

((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم بعثت بين يدى الساعة بالسيف حتى يعبد الله وحده لاشريك له، وجعل رزقي تحت ظل رُمحي وجعل الذلة والصغار على من خالف أمري، ومن تشبه بقوم فهو منهم)) (۵)

او امام ابوداؤد رحمه الله هم دَ دې حديث صرف آخرى حصه يعنى ((ومن تشبه بقوم فهو منهم)) موصولاً نقل كړيده. (۶)

**دَ مذكوره تعليق تشريح او مطلب:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا تعليق په دوو جملو مشتمل دې.

① ((جعل رزقي تحت ظل رمحي)) ② ((وجعل الذلة والصغار على من خالف أمري))

په اولنئى جمله كښې دَ مختلفو امورو طرف ته اشاره ده، مثلاً په دې كښې دَ نيزې فضيلت بيان كړې شويدې. او دا خودلې شوى دى چه دَغنائمو حلت دې امت محمديه على صاحبها الصلوة والسلام سره مخصوص دې. مسلم شريف او جامع ترمذى (۷)كښې دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع روايت دې چه نبى اكرم ﷺ فرمائيلى ((وأحلت لي الغنائم....))

---

۱) (تعليقات لامع الدرارى (ج۷ص۲۴۲) والأبواب والتراجم (ج۱ص۱۹۸)-
۲) (مسند الإمام أحمد (ج۲ص۵۰)-
۳) (مصنف ابن أبى شيبة (ج۴ص۲۲۲) كتاب الجهاد باب ماذكر فى فضل الجهاد رقم (۱۹۴۳۰)-
۴) (تغليق التعليق(ج۳ص۴۴۵)-
۵) (مسند الإمام أحمد (ج۲ص۵۰)-
۶) (سنن أبى داؤد أبواب اللباس باب فى لبس الشهرة رقم (۴۰۳۱)-
۷) (الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة رقم (۱۱۶۷) والترمذى فى جامعه أبواب السير باب ماجاء فى الغنيمة رقم (۱۵۵۳)-

او نور ئی دا هم بیان کړی دی چه د نبی اکرم ﷺ رزق نیزې سره تړلې شوې وو. همدغه وجه ده چه بعض علماؤ افضل ترین کټه غنیمت ګرځولې دې. په (شرح المواهب) کښې دی:
((أفضله (أی الکسب) الجهاد، ثم التجارة، ثم الحراثة، ثم الصناعة)) (۱)

**صرف نیزه ذکر کولوکښې حکمت:** بیا تاسو دلته ګورئی چه حضور ﷺ صرف نیزه ذکر کړیده چه د دې د لاندې زما رزق مقرر کړېشویدې د جنګ نور آلات یعنی تورې وغیره متعلق ئی نه دی فرمائیلی چه زمارزق د دې د لاندې مقرر کړېشویدې.

د دې وجه دا ده چه د اهل عرب معروف عادت دا وو چه هغوی به د نیزې په څوکه کښې جنګی جهنډا لګوله. په نیزه باندې د جهنډې لګولو سره د دې سورې خورېږی په دې وجه د رزق نسبت هغه طرف ته کول ډیر مناسب شو څکه چه د جهاد په وجه حاصل شوې مال (غنیمت) هم زیات وی. (۲)

البته یو حدیث چه د حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ نه روایت دې په هغې کښې د تورې د سورې هم ذکر دې. د حدیث الفاظ دا دی: ((الجنة تحت ظلال السیوف)) (۳) نو د رزق نسبت خو د نیزې د سورې طرف ته شوې دې لکه مونږ اوس بیان کړو چه د نیزې نه مراد جهنډا ده. خو د جنت نسبت د تورې سورې طرف ته شویدې څکه چه د شهادت سبب اکثر توره جوړېږی. (۴)

**د تعلیق د دوئمې جملې تشریح:** د ابن عمر ﷺ د تعلیق دوئمه جمله ((وجعل الذلة والصغار علی من خالف أمری)) ده، د صغار معنی د جزیه ادا کول دی. (۵)

او مطلب دا دې چه څوك زما راوړلې شوی احکامات نه منی، د هغې نه اعراض او ډډه کوی، په هغوی به ذلت مسلط کولې شی او په هغوی به د جزې ادا کول لازمېږی.

**د تعلیق ترجمة الباب سره مطابقت:** د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ پورته ذکر شوې تعلیق مناسبت ترجمة الباب سره په دې جمله کښې دې. ((جعل رزقی تحت ظل رمحی)) خواه که د فضیلت رماح مراد واخستې شی یا جواز ((کما مر الآن فی غرض ترجمة الباب))-

[۲۷۵۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۶) أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ أَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِينَ وَهُوَ

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۹۸) والدر المختار (ج۵ص۳۲۸)-
۲) (فتح الباری (ج۶ص۹۸)-
۳) (الدحدیث أخرجه البخاری کتاب الجهاد باب الجنة تحت بارقة السیوف رقم (۲۸۱۸)-
۴) (فتح الباری (ج۶ص۹۸)-
۵) (حواله بالا وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۲) وشرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۰)-
۶) قوله: عن أبی قتادة رضی الله عنه: الحدیث مر تخریجه فی کتاب جزاء الصید باب إذا صاد الحلال فأهدی-

غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَاسْتَوَى عَلَى فَرَسِهِ فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ فَأَبَوْا فَسَأَلَهُمْ رُمْحَهُ فَأَبَوْا فَأَخَذَهُ ثُمَّ شَدَّ عَلَى الْحِمَارِ فَقَتَلَهُ فَأَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَى بَعْضٌ فَلَمَّا أَدْرَكُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ قَالَ إِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ أَطْعَمَكُمُوهَا اللَّهُ

وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ فِي الْحِمَارِ الْوَحْشِيِّ مِثْلُ حَدِيثِ أَبِي النَّضْرِ قَالَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ [ر:١٧٢٥]

## تراجم رجال

**١- عبدالله بن يوسف:** دا عبدالله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دي.

**٢- مالك:** دا امام مالك بن انس بن مالك رحمه الله دي. دَدې دواړوحضراتومختصره تذکره ((بدءالوحی)) په ړومبی حديث کښې راغلې ده. (١)

**٣- ابوالنضر:** دا ابوالنضر سالم بن ابى اميه مولى عمر بن عبيدالله رحمه الله دي. (٢)

**٤- نافع:** دا ابومحمد نافع بن عباس مولى ابى قتاده مدنى رحمه الله دي. (٣)

**٥- ابوقتاده رضي الله عنه:** دا مشهور صحابى حضرت قتاده حارث بن ربعى انصارى رضي الله عنه دي. (٤)

اودَ حضرت ابوقتاده رضي الله عنه نه مروى حديث باب تشريح (كتاب جزاء الصيد) (٥) ورسره (كتاب الذبائح والصيد) (٦) کښې تيرشوى دى.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمهما الله خودا فرمائيلى دى چه دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت ((فسألهم رمحه فأبوا)) کښې دې. (٧)
ليکن ښکاره چه مونږ دَ باب په شروع کښې دَ حضرت شيخ الحديث رحمه الله په حوالې سره دا بيان کړې چه دې دواړو حضراتو دترجمة الباب مقصد بيان کړيدې، دَ هغې په اعتبار سره دَ حضرت ابوقتاده رضي الله عنه دَ هغه حديث ترجمة الباب سره مناسبت نه صحيح کيږي. خو که دَ حضرت گنگوهى رحمه الله رائې وړاندې کړيشى نو ترجمة الباب سره مناسبت بالکل صحيح کيږى هغوى فرمائيلې وو چه دلته امام بخارى رحمه الله دَ نيزې دَ استعمال جواز خودلې دې

---

١) (کشف البارى (ج١ص٢٨٩-٢٩٠) دَامام مالک رحمه الله نورحالاتودَپاره اوګورئ کشف البارى (ج٢ص٨٠)-
٢) (دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب المسح على الخفين-
٣) (دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب جزاء الصيد باب لايعين المحرم الحلال فى قتل الصيد-
٤) (دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب النهى عن الاستنجاء باليمين-
٥) (صحيح البخارى کتاب جزاء الصيد باب إذا صاد الحلال فأهدى للمحرم الصيد أكله-
٦) (کشف البارى کتاب الذبائح والصيد (ج١٣ص١٩٢)-
٧) (فتح البارى (ج٦ص ٩٩) وعمدة القارى (ج١٣ص١٩٢)-

کوم چه د حدیث نه واضح دي.

((ومن زید بن أسلم عن عطاء بن یسار عن أبي قتادة في الحمار الوحشي مثل حدیث أبي النضر قال: هل معکم من لحمه شئ))

**دپورتنی تعلیق تخریج:** دَ حضرت ابوقتاده رضی الله عنه دا تعلیق امام بخاری رحمه الله موصولاً (کتاب الذبائح) (۱) امام مسلم رحمه الله (کتاب الحج) (۲) او امام مالک رحمه الله (موطا) کښې (کتاب الحج) (۳) کښې ذکر کړی دی.(۴)

## ۸۸- بَاب: مَا قِيلَ فِي دِرْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقَمِيصِ فِي الْحَرْبِ

**دَترجمة الباب مقصد:** دَ امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب په دوو جزونو مشتمل دي. یوخو ((ماقیل في درع النبي صلی الله علیه وسلم)) دي او دوئم ((والقمیص في الحرب)) دي.

حافظ صاحب علامه عینی اوهغوي اتباع کښې علامه قسطلانی او محشی بخاری حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه دَ اول جز مقصد خو دا بیانول دی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه زغره وه هغه دَ څه څیز نه جوړه وه.(۵)

اودَ دوئم جز مقصد په جنګ کښې قمیص او دَ دې دَ اغوستلو حکم بیانول دی. ښکاره خبره ده چه جائز دی.

خود دې بزرګانو عالمانو بیان کړیشوی مقصدترجمه په قول دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله او حضرت شیخ الحدیث رحمه الله دَ اشکال نه خالی نه دې. ځکه چه دَ دې خبرې ذکر چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم زغره دَ څه څیز وه، دَ دې په رومبی روایت کښې دَ سر نه هیڅ ذکر نشته نو په دې وجه دَ دوی دَ دې قول وجه معلومه نه ده،البته دا خبره کولې شی چه دَ حضرت عائشه رضی الله عنها دَ روایت نه معلومیږی چه زغره دَ اوسپنې وه نو دوئم روایت به په دې باندې محمول کولې شی او دا به وئیلی شی چه دَ عائشه رضی الله عنها په روایت کښې دَ نبی صلی الله علیه وسلم زغره دَ اوسپنې نه جوړه شوې وه نودَ باب نور روایات په کوم کښې چه درع لفظ راغلې دې هلته به هم دَ اوسپنې زغره مراد وی.

حضرت ګنګوهی رحمه الله دَ ترجمة الباب مقصد دا بیان کړیدې چه امام بخاری رحمه الله مقصد دا ذکر کول دی چه نبی صلی الله علیه وسلم سره زغره وه. هغوی فرمائی :

---

۱) (صحیح البخاری کتاب الذبائح باب ماجاء في الصید رقم (۵۴۹۱)-

۲) (صحیح مسلم کتاب الحج باب تحریم الصید...رقم (۲۸۵۳)-

۳) (موطاالإمام مالک کتاب الحج باب مایجوز للمحرم أکله من الصید رقم (۷۸)-

۴) (تغلیق التعلیق (ج۲ص۴۴۶) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۲)-

۵) (فتح الباری (ج۶ص۹۹) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۲) وإرشاد الساری (ج۵ص۱۰۱)وحاشیة السهار نفوری علی البخاری (ج۱ص۴۰۸)-

((الظاهر أن المراد بذلك إثبات أن النبی صلی الله علیه وسلم کان له درع، وبذلك تنطبق الروایات، وما قال المحشی: إن المقصود بیان أن درعه مم کانت؟ فلا یدری وجهه، إذ لا یناسبه الروایة الأولی، إلا أن یقال: إثبات أنها کانت من حدیث یکفی ولوفی رویة، ثم تحمل بقیة الروایات علیه، وإن لم تذکر فیها مم کانت؟)) (۱)

حضرت شیخ الحدیث ﷫ هم دَ حضرت گنگوهی ﷫ دا رائې راجح گرځولې ده او فرمائیلی دی چه دَ باب ټول روایات کتلو نه پس هم دغه خبره متعین معلومیږی چه امام بخاری ﷫ دلته دا ثابت کول غواړی چه حضور ﷺ سره زغره وه او دَ دې استعمال دَ توکل خلاف نه دی. (۲)

او تاسو دَ ترجمة الباب په مقصد کښې دا هم وئیلې شئ چه امام بخاری ﷫ دا خودل غواړی چه مسلمانانو له خپل ځان سره زغره ساتل پکار دی چه په میدان جنګ په کار راشی اورسول الله ﷺ دَ پوره توکل دَ وصف نه باوجود زغره استعمال کړیده نو مونږ له هم دَ هغوی دَ سنتو اتباع کول پکار دی.

**قوله:** وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا خَالِدٌ فَقَدْ احْتَبَسَ أَدْرَاعَهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ: [ر: ۱۳۹۹] : او حضرت نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه پاتې شو خالد نو هغه خپلې زغرې دَ الله تعالی په لار کښې وقف کړې دی.

**دَ پورتنی تعلیق تخریج:** امام بخاری ﷫ چه دلته کوم تعلیق ذکر کړیدې دا دَ حضرت ابوهریره ﷛ دَ حدیث شریف یوه ټکړه ده کومه چه امام بخاری ﷫ موصولاً (کتاب الزکاة) کښې ذکرکړیده. دَ دوی نه علاوه دَ اصحاب سته نه امام مسلم، ابوداؤد او نسائی ﷭ هم دَ حضرت ابوهریره ﷛ دا تعلیق په (کتاب الزکاة) کښې موصولاً نقل کړیدې. (۳)

**دَمذکوره تعلیق دلته دَ ذکرکولو مقصد:** مصنف ﷫ دَ حضرت ابوهریره ﷛ دا پورته ذکر شوې تعلیق دلته ذکر کولو سره دې خبرې طرف ته اشاره کړیده چه څنګه چه پخپله نبی ﷺ زغره اچولې ده دغه شان دَ زغرې ذکر ئې هم په خپله ژبه مبارکه سره کړیدې او دَ دې نسبت ئې خپلو بعضو بهادرانو صحابه کرامو طرف ته کړیدې مثلاً حضرت خالد بن ولید ﷛. دینه معلومه شوه چه دَ زغرې اچول مشروع دی او دا دَ توکل نه خلاف نه ده. (۴)

---

۱) (لامع الدراری (ج۷ص۲٤۲)-
۲) (تعلیقات لامع الدراری (ج۷ص۲٤۲)-
۳) (انظر الصحیح البخاری کتاب الزکاة باب قول الله تعالی ﴿وفی الرقاب والغارمین﴾ رقم (۱٤۶۸) وصحیح مسلم کتاب الزکاة باب فی اتقدیم الزکاة ومنعها رقم (۲۲۷۷) وسنن أبی داؤد أبواب الزکاة باب فی تعجیل الزکاة رقم (۱۶۲۳) وسنن النسائی کتاب الزکاة باب إعطاء السید المال بغیر اختیار المصدق رقم (۲٤۶۶)-
٤) (فتح الباری (ج۶ص۹۹)-

[۲۷۵۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (۱) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اللَّهُمَّ إِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَدْ أَلْحَحْتَ عَلَى رَبِّكَ وَهُوَ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُولُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ وَقَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَوْمَ بَدْرٍ [۴۸۷۷،۴۸۷۵،۳۹۵۳]

## تراجم رجال

۱- محمد بن المثنی: دا ابوموسی محمدبن المثنی بن عبید عنزی رحمه الله دې.

۲- عبدالوهاب: دا ابومحمد عبدالوهاب بن عبدالمجید بن الصلت ثقفی رحمه الله دې. د دې دوارو حضراتو اجمالی تذکره ((کتاب الإیمان باب حلاوة الإیمان)) کښې راغلې ده. (۲)

۳- خالد: دا مشهور محدث ابوالمنازل خالد بن مهران حذاء بصری رحمه الله دې.

۴- عکرمه: دا مشهورامام حدیث وتفسیر ابوعبدالله عکرمه مولی ابن عباس رحمه الله دې. د دې دوارو حضراتو حالات ((کتاب العلم، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: اللهم علمه الکتاب)) لاندې تیرشوی دی. (۳)

۵- ابن عباس: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. د دوی حالات ((بدء الوحی)) خلورم حدیث په ذیل کښې او ((کتاب الإیمان باب کفران العشیر...)) لاندې تیرشوی دی. (۴)

د حدیث ترجمه: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم کله په یوه قبه کښې دننه وو اوفرمائیل نې اې الله! تا چه کومه وعده او عهد کړیدې زه تانه د هغې د پوره کیدو درخواست کوم. اې الله! که ته غواړې چه د نن نه پس دې په زمکه ستا عبادت نه وې نو (بیا خو تیک ده چه دا لږ شان مسلمانان هم ختم شي) نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د هغوی صلی الله علیه وسلم لاس اونیولو او وئې وئیل یا رسول الله! هم دومره دعا ستاسو دپاره کافی ده. بې شکه هغوی صلی الله علیه وسلم د خپل پروردګار په وړاندې ډیره ژړا او زاری کړیده. هغه وخت حضور صلی الله علیه وسلم په

---

۱) (قوله: عن ابن عباس رضی الله عنهما: الحدیث أخرجه البخاری أیضًا کتاب المغازی باب قول الله تعالی ﴿إذ تستغیثون ربکم فاستجاب لکم إنی ممدکم بألف من الملائکة....﴾ رقم (۳۹۵۳) وکتاب التفسیر باب قوله: ﴿سیهزم الجمع﴾ رقم (۴۸۷۵) وباب قوله ﴿بل الساعة موعدهم والساعة أدهی وأمر﴾ رقم (۴۸۷۷)-

۲) (کشف الباری (ج۲ص۲۵-۲۶)-

۳) (کشف الباری (ج۳ص۳۶۱-۳۷۰)-

۴) (کشف الباری (ج۱ص۴۳۵) و(ج۲ص۲۰۵)-

زغره كښې وو تاسو ﷺ دې وينا كولو سره د قبې نه راو وتلو چه زر به دا ډله اوتختولې شي اوهغوی به شاكړې بلكه قيامت د هغوی وعده ده او قيامت ډير سخت او ترېخ څيز دې.
د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دې حديث كښې ذكر شوې واقعه د (غزوه بدر) متعلق ده او د دې تشريح هم (غزوه بدر) لاندې راغلې دی. (۱)

**دحديث نه مستنبط فائدې:** خو يو څوفائدې دحديث نه مستنبط كيږی دهغې ذكر كولې شي:

① علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه د حديث نه زغره ساتل او په دې كښې د جنګ كولو جواز معلوميږی. (۲)

② په حديث كښې د دې خبرې دلالت دې چه د بشرى نفوسو په يو وخت او يك دم ويره نه لرې كيږی ګورئی دلته د رسول الله ﷺ د پاره د الله تعالى د طرف نه د نصرت وعده ده او هم د دې وعدې پوره كولو حضور ﷺ درخواست هم كوی. نو چه كله حضور ﷺ د كافرانو شمير او لښكر ته اوكتل نو هغوی ته طبعى ويره اوشوه او دا د نبوت منافى نه ده. دغه شان واقعه په قرآن كريم كښې د حضرت موسى عليه السلام هم ذكر دې چه كله جادو ګرو خپلې رسئ او همساګانې واچولې نو هغوی ويره محسوس كړه، نو الله تعالى هغه ته اوخودل چه هغه ستا امداد كونكې دې او هم هغه اورى او وينى. د الله تعالى ارشاد دې: ﴿فأوجس في نفسه خيفة موسى﴾ (۳)

په اصل كښې دا د شيطان د طرف نه وسوسه وی چه هغه ئې په بنديګانو باندې اچوی، خاص توګه باندې د الله تعالى په خاص بنديګانو باندې، ليكن الله تعالى هغوی لره دنيا او آخرت كښې د كلمې په بركت ثابت قدم ساتى او د هغوی قدمونه د شيطانى وسوسې نه خوزوی. (۴)

**قوله: وقال وهيب: حدثنا خالد يوم بدر:**

**د مذكوره تعليق تخريج:** امام بخاری رحمه الله وهيب بن خالددا تعليق كتاب التفسير كښې موصولاً نقل كړيدې. (۵)

**د مذكوره تعليق مقصد:** د وهيب بن خالد په دې تعليق كښې خالد نه مراد ابن مهران الحذاء دې. خالد الحذاء نه د باب داروايت دوو حضراتو عبدالوهاب بن عبدالمجيد الثقفى او وهيب روايت كوی.

اود امام بخاری رحمه الله د دې تعليق نه مقصد دا دې چه د وهيب په روايت كښې ((وهو في قبة)) نه پس (يوم بدر) اضافه هم ده. (۶)

---

۱ ) (كشف البارى كتاب المغازى ص ۶۴)-
۲ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۳)-
۳ ) (طه:۶۷)-
۴ ) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۴) وكشف البارى (ج۱ص۳۹۱)-
۵ ) (صحيح البخارى كتاب التفسير باب قوله ﴿سيهزم الجمع﴾ رقم (۴۸۷۵)-
۶ ) (فتح البارى ((ج۶ص۱۰۰)-

غالبا حدیث باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله شیخ محمد بن المثنی نه ذهول شویدې. ځکه چه د محمد بن المثنی شیخ عبدالوهاب نه دا روایت هم نورو دوو حضراتو محمد بن عبدالله بن حوشب (۱) او اسحاق بن راهویه (۲) روایت کړیدې.د دې دواړو حضراتو په روایت کښې هم د (یوم بدر) اضافه روایت ده. (۳)

**دا حدیث د صحابو د مراسیلو نه دې:** د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دا حدیث د مراسیل صحابه نه دې. ځکه چه په دې موقع (غزوه بدر) باندې هغه حاضر نه وو، هغه وخت به د هغه عمر دغه ځلور پنځه کاله وی، د دې د پاره پخپله د اوریدو خو هیڅ احتمال نشته. غالبًا هغوی به دا حدیث د حضرت عمر رضی الله عنه یا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه اوریدلې وی. په مسلم شریف کښې ابوزمیل عن ابن عباس په طریق سره روایت دې. (۴)

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: ((حدثني عمر: لما كان يوم بدر نظر رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى المشركين وهم ألف، وأصحابه ثلثمائة وتسعة عشر رجلاً، فاستقبل القبلة، ثم مد يديه، فلم يزل يهتف بربه حتى سقط رداؤه من منكبيه.....)) (۵)

یعنې ما ته حضرت عمر رضی الله عنه بیان اوکړو چه د بدر په ورځ کله رسول الله صلی الله علیه وسلم مشرکانو طرف ته اوکتل چه هغوی زر کسان د‌ی او هغوی صلی الله علیه وسلم سره صرف ۳۱۹ دی نو هغوی صلی الله علیه وسلم قبلې طرف ته مخ کړو بیائې خپل لاسونه د الله تعالی په دربار کښې خواره کړل او باربار ئې خپل رب ته زاری کوله او رابللو ئې تردې پورې چه د هغوی څادر مبارک د هغوی د اوږې مبارکې نه پریوتلو. او د ابن عباس رضی الله عنهما عادت همدغه دې چه هغه اکثر واسطې د مینځ نه حذف کوی اود هغوی اکثر روایات مرسل دی. (۶)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د دې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې: ((وهوفي الدرع)).(۷)

[۲۷۵۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ(۸) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِرْعُهُ مَرْهُونَةٌ عِنْدَ يَهُودِيٍّ بِثَلَاثِينَ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ

---

۱) (انظر صحیح البخاری کتاب المغازی باب قول الله تعالی ﴿إذ تستغیثون ربکم....﴾ رقم (۳۹۵۳)-
۲) (انظر صحیح البخاری کتاب التفسیر باب قوله ﴿بل الساعة موعدهم ...﴾ رقم (۴۸۷۷)-
۳) (فتح الباری (ج۶ص۱۰۰)-
۴) (فتح الباری (ج۷ص۲۸۸) وعمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۳)-
۵) (الصحیح المسلم کتاب الجهاد باب الإمداد بالملائکة فی غزوة بدر، وإباحة الغنائم رقم (۴۵۸۸)-
۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۳)-
۷) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۳)-
۸) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحدیث مرتخریجه فی کتاب البیوع باب شراء النبی صلی الله علیه وسلم بالنسیئة-

# تراجم رجال

۱- محمدبن کثیر: دا ابوعبدالله محمدبن کثير عبدی بصری رحمه الله دي. دَ دوی تذکره ((کتاب العلم باب الغضب والموعظة في التعليم إذا رأى....)) کښې تيره شويده.(۱)

۲- سفيان: ابن عيينه رحمه الله مراد دي.دَ دوی حالات ((بدء الوحی)) په اول حديث کښې او ((کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا.....)) لاندې تيرشوی دی.(۲)

۳- الاعمش: دا ابومحمدسليمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دي. اعمش سره معروف دي. دَ دوی تذکره ((کتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم)) په ذيل کښې راغلی دی.(۳)

۴- ابراهيم: دا ابوعمران ابراهيم بن يزيدنخعی رحمه الله دي اودَ دوی تذکره هم ((کتاب الإيمان)) په مذکوره باب کښې راغلې ده.(۴)

۵- الاسود: دا مشهور فقيه اسود بن يزيد بن قيس نخعی رحمه الله دي.(۵)

۶- عائشه: دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابوبکرصديق رضي الله عنها ده.دَدوی تذکره ((بدء الوحی)) دَ دوئم حديث لاندې تيره شويده.(۶)

دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ دې حديث تشريح (کتاب البيوع) (۷) کښې او (کتاب المغازی) (۸) کښې راغلې ده.

**وَقَالَ يَعْلَى حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ دِرْعٌ مِنْ حَدِيدٍ وَقَالَ مُعَلًّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ وَقَالَ رَهَنَهُ دِرْعًا مِنْ حَدِيدٍ** [ر: ۱۹۶۲]

يعلى نه مراد ابن عبيدبن ابی عبيدابويوسف الطنافسی رحمه الله دي.اومعلى نه ابن اسدمراددي.(۹)

**دَپورته ذکرشوو دواړو تعليقاتو تخريج:** امام بخاری رحمه الله پورته دوه تعليقات ذکر کړی دی. يو دَ يعلى او دوئم دَ معلى. اولنې تعليق امام بخاری رحمه الله موصولاً (کتاب العلم) (۱۰) کښې او

---

۱) (کشف البارى (ج۱ص۲۳۸) و (ج۳ص۵۳۶)-
۲) (کشف البارى (ج۳ص۱۰۲)-
۳) (کشف البارى (ج۲ص۲۵۱)-
۴) (کشف البارى (ج۲ص۲۵۳)-
۵) (دَ دوی دَ حالاتودپاره اوګورئ کتاب العلم باب من ترک بعض الإختيار مخافة أن يقصر...-
۶) (کشف البارى (ج۱ص۲۹۱)-
۷) (صحيح البخاری کتاب البيوع باب شراء النبی صلى الله عليه وسلم بالنسيئة-
۸) (کشف البارى کتاب المغازی (ص۶۹۰)-
۹) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۴)-
۱۰) (صحيح البخاری کتاب المسلم باب الکفيل فی السلم رقم ۲۲۵۱)-

دونم ني (کتاب الاستقراض) (۱)کښې ذکر فرمائيلې دې. (۲)

**ددوارو تعليقاتو ذکر کولومقصد:** دَ دې دوارو تعليقاتو ذکر کولو مقصد واضح دې چه پورته کوم مسند روايت تيرشويدې په هغې کښې دَ ((درع)) ذکر وو او دې تعليقاتو ذکر کولو سره امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړی چه هغه زغره چه يهودی سره ني ګانړه ايخودې وه دَ اوسپنې وه.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت ((دروعه مرهونة..)) کښې دی، دَ کوم نه چه معلوميږی چه هغوی ﷺ سره زغره وه اوهغه دَ اوسپنې وه. (۳)

[۲۷۶۰] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۴) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ مَثَلُ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ قَدْ اضْطَرَّتْ أَيْدِيَهُمَا إِلَى تَرَاقِيهِمَا فَكُلَّمَا هَمَّ الْمُتَصَدِّقُ بِصَدَقَتِهِ اتَّسَعَتْ عَلَيْهِ حَتَّى تُعَفِّيَ أَثَرَهُ وَكُلَّمَا هَمَّ الْبَخِيلُ بِالصَّدَقَةِ انْقَبَضَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ إِلَى صَاحِبَتِهَا وَتَقَلَّصَتْ عَلَيْهِ وَانْضَمَّتْ يَدَاهُ إِلَى تَرَاقِيهِ فَسَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فَيَجْتَهِدُ أَنْ يُوَسِّعَهَا فَلَا تَتَّسِعُ [ر: ۱۳۷۵]

## تراجم رجال

۱- **موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسماعيل تبوذکی بصری رحمه الله دې. دَ ده اجمالی تذکره ((بدء الوحی)) په څلورم حديث لاندې راغلې ده. (۵)

۲- **وهيب:** داوهيب بن خالد بن عجلان باهلی رحمه الله دې. دَ دوی اجمالی حالات ((کتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فی الأعمال)) لاندې تيرشوی دی. (۶)

۳- **ابن طاوس:** دا عبدالله بن طاوس بن کيسان اليمانی رحمه الله دې. (۷)

۴- **أبيه:** دَ ابيه نه مراد طاوس بن کيسان يمانی جندی حميری رحمه الله دې. (۸)

---

۱) (صحيح البخاری کتاب الاستقراض... باب من اشترىٰ بالدين وليس عنده ثمنه رقم (۲۳۸۶)-
۲) (تغليق التعليق (ج۳ص۴۴۷)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۱۹۴)-
۴) (قوله: عن أبی هريرة رضی الله عنه: الحديث مرتخريجه فی کتاب الزکاة باب مثل البخيل والمتصدق-
۵) (کشف الباری (ج۱ص۴۳۳)-
۶) (کشف الباری (ج۲ص۱۸)-
۷) ( دَ دوی دَ حالاتودپاره اوګورئ کتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الإفاضة-
۸) (دَدوی دَحالاتودَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر

د- **ابوهريره:** دامشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. دَ ده حالات ((**كتاب الإيمان باب أمور الإيمان**)) لاندې تيرشوى دى. (۱)

او دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت شوي حديث مكمل تشريح (**كتاب الطلاق**) (۲) او (**كتاب اللباس**) كښې راغلى ده. (۳)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ دې حديث ترجمة الباب سره مطابقت ((**عليهما جبتان من حديد**)) كښې دې.

او هغه داسې چه ((**جبتان**)) كښې دوه روايتونه دى. يو خودَ باء سره يعنى ((**جبتان**)) نو دا ((**جبة**)) تثنيه ده او دَ دې مناسبت دَ ترجمه جز ثانى يعنى **القميص فى الحرب** سره دې.

او دا لفظ دَ نون سره ((جنتان)) هم مروى دې. چه دَ جنة تثنيه ده، دَ دې معنى ډهال ده. او ډهال ځنګه چه انسان دَ دښمن دَ وار نه بچ كوى دغه شان زغره هم بچ كوى نو مناسبت دَ ترجمې اول جز سره په دې معنى حاصل دې. (۴)

## ۸۹- بَاب: الْجُبَّةِ فِي السَّفَرِ وَالْحَرْبِ

**دترجمة الباب مقصد:** حضرت مصنف رحمه الله دَ دې ترجمة الباب لاندې دا خودل غواړى چه دَ سفر او جنګ په موقع باندې جبه اچول جائز دى په دې كښې هيڅ بديت نشته.

[۲۷۶۴] **حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ أَبِي الضُّحَى مُسْلِمٍ هُوَ ابْنُ صُبَيْحٍ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ حَدَّثَنِي الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ(۵) قَالَ انْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ ثُمَّ أَقْبَلَ فَلَقِيتُهُ بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ شَأْمِيَّةٌ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ فَذَهَبَ يُخْرِجُ يَدَيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ فَكَانَا ضَيِّقَيْنِ فَأَخْرَجَهُمَا مِنْ تَحْتُ فَغَسَلَهُمَا وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَعَلَى خُفَّيْهِ** [ر:۱۸۰]

## تراجم رجال

۱- **موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دې. دَ دوى حالات اجمالاً ((**بدء الوحى**)) څلورم حديث لاندې بيان شوى دى. (۶)

---

۱) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۱)-
۲) (كشف البارى كتاب الطلاق (ص۵۱۹)-
۳) (كشف البارى كتاب اللباس (ص۱۵۸-۱۶۱)-
۴) (فتح البارى (ج۶ص۱۰)-
۵) (وله: المغيرة بن شعبة رضى الله عنه: الحديث: مرتخرجه فى كتاب الوضوء باب الرجل يوضى صاحبه-
۶) (كشف البارى (ج۱ص۴۳۳)-

۲- **عبدالواحد:** داابوبشر عبدالواحد بن زیاد بصری رحمه الله دی. دَ دوی تفصیلی تذکره ((کتاب الایمان باب الجهاد من الایمان)) لاندې تیره شویده.(۱)

۳- **الاعمش:** داابومحمدسلیمان بن مهران رحمه الله دی. دَ دوی حالات ((کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم)) کښې راغلی دی.(۲)

۴- **ابوالضحی مسلم بن صبیح:** دا ابوالضحی مسلم بن صبیح العطار الکوفی رحمه الله دی.(۳)

۵- **مسروق:** دا امام ابوعائشه مسروق بن اجدع بن مالك همدانی رحمه الله دی. دَ دوی تذکره ((کتاب الایمان باب علامة المنافق)) لاندې تیره شویده.(۴)

۶- **المغیره بن شعبه:** دا مشهورصحابی حضرت مغیره بن شعبه بن ابی عامر رضی الله عنه دی.(۵)

دَ حدیث باب تشریح روستو مختلفو مقاماتو کښې تیره شویده، اودَ دې څه تشریح (کتاب اللباس) کښې هم راغلې ده. (۶)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې. ((وعلیه جبة شامیة)). ظاهره ده چه دا واقعه دَ سفر ده او دَ غزوې ده. او حضور ﷺ جبه اغوستې ده. نو معلومه شوه چه په سفرکښې او په غزوه کښې جبه اغوستلو کښې څه بدیت نشته. (۷)

## ۹۰- بَاب: الْحَرِيرِ فِي الْحَرْبِ

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی چه ریښمینې جامې دَ جنګ په حالت کښې اچول صحیح دی.(۸)

[۲۷۶۲/۲۷۶۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا (۹) حَدَّثَهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ فِي قَمِيصٍ مِنْ حَرِيرٍ مِنْ حِكَّةٍ كَانَتْ بِهِمَا

---

۱ ) (کشف الباری (ج۲ص۳۰۱)-

۲ ) (کشف الباری (ج۲ص۲۵۱)-

۳ ) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الصلاة باب الصلاة فی الجبة الشامیة-

٤ ) (کشف الباری (ج۲ص۲۸۱)-

۵ ) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب الرجل یوضئ صاحبه-

۶ ) (کشف الباری کتاب اللباس (ص۱۶۲-۱۶۳)-

۷ ) (عمدة القاری (ج١٤ص ۱۹۵)-

۸ ) (حواله بالا-

۹ ) (قوله: أنسا رضی الله عنه: الحدیث: أخرجه البخاری أیضًا کتاب الجهاد... [بقیه حاشیه په بله صفحه..

# تراجم رجال

۱- احمدبن المقدم: دااحمدبن المقدم بن سلیمان بن اشعب بصرى رحمه الله دى.(۱)

۲- خالد: داخالد بن حارث بن سلیم هجیمى رحمه الله دى. (۲)

۳- سعید: داابوالنصر سعید بن ابى عروبه یشکرى بصرى رحمه الله دى. (۳)

۴- قتاده: داقتاده بن دعامه سدوسى بصرى دى.

۵- انس: دا مشهور صحابى حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دى. د دى دواړو حضراتو تذکره ((کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه....)) لاندې تیره شویده. (۴)

**قوله:** أن النبي صلى الله عليه وسلم رخص لعبدالرحمن والزبير في قميص من حرير من حكة كانت بهما: حضرت انس رضی الله عنه فرمائى چه نبى کریم صلی الله علیه وسلم حضرت عبدالرحمن بن عوف او حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنهما ته د خارښ د وجه ریښمى قمیص اغوستلو اجازت ورکړې وو.

تنبیه: حضرت امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب د دې مقصد دپاره قائم کړې ووچه په جنګ کښې ریښمى لباس استعمالول جائز دى. اود دې دپاره ئى د حضرت انس رضی الله عنه دا پورتنې حدیث د دلیل په توګه پیش کړې وو. دا مسئله مختلف فیها ده چه په بیمارئى سفر او جنګ وغیره کښې خالص ریښمى لباس استعمالول جائز دى که نه؟

نوجمهورائمه سره د صاحبینو د دې د جواز قائل دى اوامام مالک او امام اعظم رحمه الله د عدم جواز. د دې مسئلې تفصیل په (کتاب اللباس) کښې راغلې دې.(۵)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت د حدیث په دې حصه کښې دې. ((فى قميص من حرير من حكة)) دې نه معلومه شوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دې دواړو حضراتو ته د ریښمى لباس اغوستلو اجازت کړې وو چه د جواز دلیل دې. او ترکومې چه د دې خبرې تعلق دې چه دلته خو د حرب او جنګ هډو ذکر نشته نود دې جواب دا دې چه د

.....بقیه حاشیه] باب الحرير فى الحرب رقم (٢٩٢٠-٢٩٢٢) وكتاب اللباس باب مايرخص للرجال من الحرير للحكة رقم (٥٨٣٩) ومسلم كتاب اللباس باب إباحة لبس الحرير للرجل إذا كانت به حكة أونحوها رقم (٥٤٢٩) وأبوداؤد أبواب اللباس باب فى لبس الحرير لعذر رقم (١٧٢٢) والنسائى كتاب الزينة باب الرخصة فى لبس الحريررقم(٥٣١٢) وابن ماجه كتاب اللباس باب من رخص فى لبس الحرير رقم (٣٥٩٢)

١ ) (د دوى د حالاتود پاره اوګورئ كتاب البيوع باب من لم ير الوساوس ونحوها من المشبهات-

٢ ) (د دوى د حالاتود پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب فضل استقبال القبلة-

٣ ) (د دوى د حالاتود پاره اوګورئ كتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد.....-

٤ ) (كشف البارى (ج٢ص٣-٤)-

٥ ) (د مسئلې د تفصیل او فریقینو دلائلو د پاره اوګورئ کشف البارى كتاب اللباس (ص١٩١)-

باب په وړاندې روايت كښې د دې خبرې وضاحت راخي چه حضرت انس رضي الله عنه پخپله فرمائي چه په يو جنګ كښې دا دواړه حضرات ما پخپله او ليدل چه هغه قميصونه د دوى په بدنونو باندې وو. ((فرأيته عليهما فى غزاة))-

[۲۷۶۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ (۱) ح حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرَ شَكَوَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي الْقَمْلَ فَأَرْخَصَ لَهُمَا فِي الْحَرِيرِ فَرَأَيْتُهُ عَلَيْهِمَا فِي غَزَاةٍ

## تراجم رجال

۱- ابوالوليد: دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى رحمه الله دې. د دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار)) لاندې تيره شوې ده.(۲)

۲- همام: دا ابوعبدالله همام بن يحيى بن دينار بصرى رحمه الله دې.(۳)

۳- محمد بن سنان: دامحمد بن سنان رحمه الله دې. د دوى تذكره ((كتاب العلم باب من سئل علما وهو مشتغل في حديثه.....)) كښې راغلې ده.(۴)

د حضرت قتاده او انس رضي الله عنهما د پاره سابقه سند اوګورئ.

**قوله:** أن عبدالرحمن بن عوف والزبير شكوا إلى النبى صلى الله عليه وسلم-يعنى القمل: حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه حضرت عبدالرحمن بن عوف او زبير بن عوام رضي الله عنهما نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته د سپګو شكايت اوكړو.

**كلمه "شكوا" كښې د نسخو اختلاف:** پورته په حديث كښې ((شكوا)) لفظ روايت دې خو د ابوذر او اصيلى په نسخو كښې ((شكيا)) صيغه تشنيه سره دې. علامه ابن التين رحمه الله اولنې صحيح ګرځولې دې ځكه چه د هغه فعل لام كلمه واو دې. لكه د الله تعالى د دې قول ﴿دَعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا﴾ (۵) كښې دى. (۶)

خو دلته يوه نسخه صحيح او نورې غلط ګرځولو هيڅ وجه نشته ځكه چه دا كلمه واو او ياء دواړو سره استعماليږى، نو وئيلى شى ((شكيتُ وشكوتُ)) (۷)

---

۱ ) (قوله: أنس رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه فى الحديث السابق-

۲ ) (كشف البارى (ج۲ص۳۸)-

۳ ) (د دوى د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلاة باب من نسى صلاة فليصل إذا ذكر....-

۴ ) (كشف البارى (ج۳ص۵۳)-

۵ ) (الاعراف:۱۸۹)-

۶ ) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۹۶) وشرح القسطلانى (ج۵ص۱۰۳)-

۷ ) (حواله بالا-

((يعنى القمل)) دا دَ يو راوى تفسيرى جمله ده او خودل دا دى چه دې دواړو حضراتو صحابه کرامو چه دَ رسول الله ﷺ نه ګيله کړې وه دَ هغې سبب سپګې وې.(۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت** : دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې. ((فرأيته عليهما فى غزاة)) چه هغه قميص ما په يوه غزوه کښې دَ هغه په بدن اوليدو. (۲)

[۲۷۴۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ أَخْبَرَنِي قَتَادَةُ أَنَّ أَنَسًا (۳) حَدَّثَهُمْ قَالَ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فِي حَرِيرٍ

## تراجم رجال

۱- مسدد: دامسدد بن مسرهد بن مسربل رحمه الله دې.

۲- يحيى: داابوسعيد يحيى بن سعيد القطان رحمه الله دې.دَدې دواړوحضراتو اجمالى تذکره ((کتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه....)) لاندې راغلې ده.(۴)

۳- شعبه: داامير المؤمنين فى الحديث شعبه بن الحجاج عتکى رحمه الله دې. دَده تذکره ((کتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې راغلې ده. (۵)

حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ (۶) رَخَّصَ أَوْ رُخِّصَ لَهُمَا لِحِكَّةٍ بِهِمَا [۵۵۰۱]

## تراجم رجال

۱- محمدبن بشار: دامشهور امام حديث محمدبن بشار بن عثمان عبدى رحمه الله دې. دَ دوى تذکره ((کتاب العلم باب ما كان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة....)) لاندې راغلې ده.(۷)

۲- غندر: داابوعبدالله محمد بن جعفر هذلى غندر رحمه الله دې. دَ دوى حالات ((کتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې راغلى دى. (۸)

---

۱) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۹۶)-
۲) (حواله بالا-
۳) (قوله: أنسا رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه آنفا أول الباب-
۴) (کشف البارى (ج۲ص۳۰۲)-
۵) (کشف البارى (ج۱ص۴۷۸)-
۶) (قوله: عن أنس رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه آنفا-
۷) (کشف البارى (ج۳ص۲۵۸)-
۸) (کشف البارى (ج۲ ص۲۵۰)-

**قوله: رخّص أو رُخّص لهما الحكة بهما:** كله ((أو)) دَ شك دپاره ده. اودلته راوى ته شك كيږى چه ((رخص)) صيغه معلوم سره ده يا مجهول سره ده. (۱)

البته همدغه روايت امام احمد رحمه الله هم دَ غندر نه نقل كړيدې. دَ هغې الفاظ دا دى: ((رخص رسول الله صلى الله عليه وسلم))(۲) دې نه معلومه شوه چه شك محمد بن بشار ته شويدې. او صحيح لفظ ((رخص)) صيغه معلوم سره دې.

هم دغه روايت امام بخارى رحمه الله (كتاب اللباس) كښې هم((عن وكيع عن شعبة)) په طريق سره نقل كړيدې، په دې كښې هم صيغه دَ معلوم ده.(۳)

**دَ ريښمين لباس دَ اجازت سبب څه وو؟:** امام بخارى رحمه الله دَ حضرت انس رضى الله عنه دا حديث باب په پنځو مختلفو طرقو سره نقل كړيدې. دَ دې ټولو مجموعى مضمون او حاصل همدغه دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عبدالرحمن بن عوف او زبير بن عوام رضى الله عنهما ته دَ ريښمين لباس اغوستلو اجازت كړې وو.

اوس سوال دا دې چه دَ دغه اجازت سبب څه وو.آيا خارښ دَ دې اجازت سبب جوړشوې وو لكه چه دَ باب اول او آخرى طريق كښې راغلى دى (حكة خارښ ته وائى) يا دَ دې سبب سپګې وې لكه چه دَ باب په دريم طريق كښې دى. (۴)

دَ دې سوال مختلف محدثينو حضراتو جواب وركړيدې چه دَهغې تفصيل دا دې:

① ابن التين رحمه الله حكه يعنى دَ خارښ والا روايت راجح ګرځولې دې، فرمائى چه كيديشى چه يوراوى دَ دې تفسير كړې وى او هسې دَ هغه نه غلطى شوې وى. (۵)

② علامه داؤدى رحمه الله دَ دواړو قسم رواياتو په مينځ كښې داسې تطبيق وركړيدې چه دَ دې خبرې احتمال دې چه يو صاحب سره يو علت وى او بل سره بل. (۶)

③ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى ((لامنافاة بينهما ولامنع لجمعهما)) (۷) يعنى دواړو علتونوكښې څه منافات نشته او نه دا دواړه په يو سړى كښې جمع كيدو كښې څه ممانعت شته.

④ كله كله دَ خارښ سبب سپګې هم وى.لكه چه تجربه په دې شاهد ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دواړو قسم رواياتوكښې تطبيق داسې هم ممكن دې چه دَ خارښ سبب سپګې

---

۱) (عمدة القارى (ج ١٤ص١٩٧) وفتح البارى (ج٦ص١٠١)-

۲) (مسندالإمام أحمد(ج٣ص٢٥٥) رقم (١٣٧١٧)-

۳) (صحيح البخارى كتاب اللباس باب مايرخص للرجال من الحرير للحكة رقم (٥٨٣٩)-

٤) (فتح البارى (٦ص١٠١) وعمدة القارى (١٤ص١٩٦)-

۵) (حواله بالا-

( ۶(حواله بالا وشرح القسطلانى (ج۵ص١٠٣) ومثله عن ابن العربى حيث قال: د وردأنه أرخص لكل منهما فالإفراد يتضى أن لكل حكمة-

۷) (شرح الكرمانى (ج۵ص١٧٦) وعمدة القارى (ج ١٤ص١٩٦)-

وې نو کله د سبب طرف ته د علت نسبت اوکړيشو او کله د مسبب طرف ته. فرمائی:

((قلت: ويمكن بأن الحكة من القبل فنسبت العلة تارة إلى السهب، وتارة إلى سهب السهب))(۱)

علامه عينى رحمه الله د حافظ صاحب کرمانی قول راجح ګرځولې دې. (۲)

## ۹۱-بَاب: مَا يُذْكَرُ فِي السِّكِّين

دترجمة الباب مقصد: امام بخارى رحمه الله دلته دا فرمائی چه د جهاد او قتال په موقع باندې چاقو خان سره اوساتلې شی نو جائز دې. (۳)

ښکاره ده چه چاقو د فائدې څيز دې او په وخت په کار راځی. په ميدان جهاد کښې ډيرې موقعې داسې هم پيښيږی چه کله د نورو وسلو استعمال ممکن پاتې نشی نو هغه وخت چاقو کار ورکوی.

[۲۷۶۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ(۴) قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مِنْ كَتِفٍ يَحْتَزُّ مِنْهَا ثُمَّ دُعِيَ إِلَى الصَّلَاةِ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ

حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ وَزَادَ فَأَلْقَى السِّكِّينَ [ر:۲۰۵]

## تراجم رجال

۱- عبدالعزيز بن عبدالله: داابوالقاسم عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى قرشی اويسی مدنی رحمه الله دې. (۵)

۲- ابراهيم بن سعد: داابواسحاق ابراهيم بن سعدبن عبدالرحمن بن عوف زهری رحمه الله دې. ددوی تذکره ((کتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فی الأعمال)) لاندې تيره شويده.(۶)

۳- ابن شهاب: دامحمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې. د ده اجمالی حالات ((بدء الوحی)) د دريم حديث لاندې تيرشوی دی. (۷)

۴- جعفر بن عمروبن اميه الضمری: داجعفر بن عمروبن اميه بن خويلد المدنی رحمه الله دې.(۸)

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۱۰۱) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۹۶) وإرشاد السارى (ج۵ص۱۰۳)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۱۹۶)-
۳) (عمدة القارى(ج۱۴ص۱۹۷) وشرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۴)-
۴) (قوله: عن أبيه: الحديث مرتخريجه فی كتاب الوضوء باب من لم يتوضأ من لحم الشاة والسويق-
۵) (د دوی د حالاتو دپاره اوګورئ کتاب العلم باب الحرص على الحديث-
۶) (کشف البارى (ج۲ص۱۲۰)-
۷) (کشف البارى (ج۱ص۳۲۶)-
۸) (ددوی حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الوضوء باب من لم يتوضأ من لحم الشاة والسويق-

۵-ابيه: «أب» نه مراد حضرت عمرو بن اميه بن خويلد الضمرى المدنى رضي الله عنه دى. (۱)
د دې سند د ټولو رجالو تعلق مدينې منورې سره دې. علامه عينى رحمه الله فرمائى «هذا الإسناد كله مدنيون» (۲)

**قوله: قال: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم يأكل من كتف يحتز منها، ثم دعى إلى الصلاة فصلى ولم يتوضأ:** حضرت عمرو بن اميه رضي الله عنه فرمائى چه ما نبى كريم ﷺ ته اوكتل غوښه ئې خوړله او پريكوله ئې، بيا هغوى د مانځه د پاره راوغوښتې شو نو هغوى ﷺ مونځ اوكړو او (دنوى سر نه ئې) اودس اونه كړو.

تنبيه: دحديث باب سره دوه مشهورې مسئلې متعلق دى يوه «الوضوء مما مست النار» اود دې د تفصيل مقام (كتاب الوضوء) دې. دوئمه مسئله په چړې او كانټې سره د خوراك حكم. د دې تفصيل (كتاب الأطعمة) كښې دې. (۳)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت د حديث په معنى كښې دې. ځكه چه د حضور ﷺ غوښه پريكول اوخوړل ظاهره ده چه هم په چاړه سره وه او په دې باندې راتلونكې طريق دلالت كوى كوم كښې چه «فألقى السكين» راغلې دې.
او امام بخارى رحمه الله دا باب د جهاد په ابواب كښې د دې د پاره ذكر كړيدې چه چاقو هم د وسلې يو قسم دې.
دغه شان علامه عينى رحمه الله فرمائى :
«مطابقته للترجمة تؤخذ من معنى الحديث لأن احتزازه صلى الله عليه وسلم من كتف الشاة كان بالسكين، ويشهد له الطريق الآخر الذى يأتى، وفيه: فألقى السكين، ووجه إدخال هذا الباب بين أبواب الجهاد من حيث إن السكين أيضا من أنواع السلاح» (۴)

«**حدثنا ابواليمان اخبرنا شعيب عن الزهري وزاد: فالقى السكين**»: دا د حضرت عمرو بن اميه ضمرى رضي الله عنه د حديث يو بل طريق دې اودا طريق امام بخارى رحمه الله ځكه ذكر كړيدې چه ترجمه او حديث كښې مطابقت پيداشى چه په دې كښې صراحت سره د سكين لفظ موجود دې او په وړاندينى روايت كښې د دې صراحت نه وو. (۵)
او د زاد چه كوم فعل دى په هغې كښې دا دريواړه احتمالات دى چه د هغې فاعل زهرى وى، جعفر بن عمرو وى يا د امام بخارى رحمه الله شيخ ابواليمان. (۶)

---

۱) (حواله بالا-
۲) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۹۷)-
۳) (كشف البارى كتاب الأطعمة (ص ۱۱۱)-
۴) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۹۷)-
۵) (حواله بالا وإرشاد السارى (ج ۵ ص ۱۰۴)-
۶) (عمدة القارى (ج ۱۴ ص ۱۹۷)-

# ۹۲- باب: ما قيل في قتال الروم

**دَترجمة الباب مقصد** حضرت امام بخارى رحمه الله دَ ې ترجمة الباب لاندې دَ اهل روم خلاف دَ جهاد فضيلت بيانول غواړى.(۱)

او حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى چه دَ امام بخارى رحمه الله دَ دې باب دَ ترجمه نه مقصد دَ هغه قومونوبيان كول دى چه كومو سره نبى اكرم صلى الله عليه وسلم (يا دَ هغه امت) جنګ كړيدې. (۲)

**دَ روميانودَ نسل تحقيق:** علامه جوهرى رحمه الله فرمائى چه اهل روم، روم بن عيصو بن اسحاق بن ابراهيم دَ اولاد نه دې. (۳) او علامه رقاشى رحمه الله فرمائى چه دا ابن ليطابن يونان بن يافث بن نوح عليه السلام دَ اولاد نه دى. (۴)

دا هم وئيلې شوى دى چه اهل روم دَ خپل جداعلى رومى طرف ته منسوب كيږى.دوى ته روماس هم وئيلې شو او همدغه سړې دَ مشهور ښار روم بانى دې. (۵)

خو دَ حضرت شاه صاحب وينا دا ده چه روم په اصل كښې دَ مشهور ملك اټلى لقب وو. كله چه په دې كښې بلوې راپيدا شوې او هغوى دَ اختلافاتو ښكار شو نو څه خلقو اټلى پريخودو او قسطنطنيه كښې آباد شو نو روميان هم نصارى دى.(فيض البارى (ج۳ص۴۳۷)-

[۲۷۶۶] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيُّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ أَنَّ عُمَيْرَ بْنَ الْأَسْوَدِ الْعَنْسِيَّ حَدَّثَهُ أَنَّهُ أَتَى عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ وَهُوَ نَازِلٌ فِي سَاحَةِ حِمْصَ وَهُوَ فِي بِنَاءٍ لَهُ وَمَعَهُ أُمُّ حَرَامٍ قَالَ عُمَيْرٌ فَحَدَّثَتْنَا أُمُّ حَرَامٍ(۶) أَنَّهَا سَمِعَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ الْبَحْرَ قَدْ أَوْجَبُوا قَالَتْ أُمُّ حَرَامٍ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا فِيهِمْ قَالَ أَنْتِ فِيهِمْ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ مَدِينَةَ قَيْصَرَ مَغْفُورٌ لَهُمْ فَقُلْتُ أَنَا فِيهِمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ لَا [ر: ۲۶۳۶]

## تراجم رجال

۱- اسحاق بن يزيد الدمشقي: دا ابوالنصر اسحاق بن ابراهيم بن يزيد فراديسى رحمه الله دې. اكثر دَ نيكه طرف ته منسوب شوې او په اسحاق بن يزيد سره بللې شى. (۷)

---

۱) (عمدة القارى (ج ۱٤ص۱۹۷) وفتح البارى (ج۶ص۱۰۲)-
۲) (فيض البارى (ج۳ص۱۳۷)-
۳) (حواله بالا وحاشية الجمل على الجلالين(ج۶ص۸۶)-
٤) (عمدة القارى (ج ۱٤ص۱۹۷) وفتح البارى (ج۶ص۱۰۲)-
۵) (حواله بالا-
۶) (قوله: ام حرام: الحديث مر تخريجه فى أوائل الجهاد باب دلدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء-
۷) (دَ دوى دَ حالاتودپاره اوګورئ كتاب الزكاة باب ما أدى زكاته فليس بكنز-

۲- يحيى بن حمزة: دا ابوعبدالرحمن يحيى بن حمزه بن واقد حضرمى رحمه الله دى. (۱)

۳- ثور بن يزيد: دا ابوخالد ثور بن يزيد كلاعى حمصى رحمه الله دى. (۲)

۴- خالد بن معدان: دا ابوعبدالله خالد بن معدان حمصى كلاعى رحمه الله دى. (۳)

۵- عمير بن الاسود العنسى: دادَ شام مشهور عابد او زاهد مخضرم تابعى حضرت عمير بن الاسود، شامى، دمشقى، حمصى رحمه الله دى. دَ دوى كنيت ابوعبدالرحمن او ابوعياض دى. او همدې عمرو بن الاسود رحمه الله هم دى. (۴)

دوى دَ حضرت عمر، ابن مسعود، معاذ بن جبل، عبادة بن صامت، عرباض بن ساريه، معاويه، عبدالله بن عمرو بن عاص، جناده بن اميه، ابوهريره، ام المؤمنين عائشه او ام حرام بنت ملحان رضي الله عنهم نه دَ حديث روايت كوى.

اودَ دوى نه دَ دوى خوئ حكيم بن عمير، مجاهد، خالدبن معدان، شريح بن عبيد كثيربن ابى كثير، نصر بن علقمه، ابراهيم بن مسلم، هجرى او زياد بن فياض رحمهم الله وغيره روايت كوى. (۵)

ابن سعد رحمه الله فرمائى ((كان قليل الحديث، ثقة)) (۶)

عجلى رحمه الله فرمائى ((شامى تابعى ثقة)) (۷)

ابن حبان په (كتاب الثقات) كښې دَ هغوى ذكر كړيدې او فرمائيلى دى ((من عباد أهل الشام وزهادهم)) (۸)

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى ((أجمعوا على أنه كان من العلماء الثقات)) (۹)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ((ثقة عابد)) (۱۰)

دَ مسند احمد رحمه الله په روايت كښې دى چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ هغه باره كښې فرمائيلى دى ((من سره أن ينظر إلى هدى رسول الله صلى الله عليه وسلم فلينظر إلى هدى عمرو بن الأسود)) (۱۱)

---

۱) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب الجنائز باب ماينهى من الحلق عند المصيبة-

۲) (دَ دوى دَ حالاتودَپاره اوګورئ كتاب البيوع باب كسب الرجل وعمله بيده-

۳) (حواله بالا-

۴) (تهذيب الكمال (ج۲۱ص۵۴۳) وسير أعلام النبلاء (ج۴ص۷۹)-

۵) (شيوخ او تلامذه دَ پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۱ص۵۴۴)-

۶) (طبقات ابن سعد (ج۷ص۵۴۵)-

۷) (تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۱ص۵۴۵)-

۸) (الثقات لابن حبان (ج۵ص۱۷۱)-

۹) (تهذيب الكمال (ج۸ص۵)-

۱۰) (التقريب (۴۱۸) رقم (۴۹۸۹)-

۱۱) (مسند الإمام أحمد (ج۱ص۱۸) حيلة الأولياء (ج۵ص۱۵۶) والكاشف (ج۲ص۷۲)-

يعنى چه څوك په دې خبره كښې خوشحالي محسوس كوى چه د رسول الله ﷺ اخلاق ته اوګورى نو هغوى دې د عمرو بن الاسود رحمه الله اخلاق او سيرت ته اوګورى. يعنى د هغوى اخلاق مبارك او سيرت بعينه د رسول الله ﷺ د اخلاق او سيرت مطابق وو. هغه د رسول الله ﷺ د اخلاقو نمونه وه.

عبدالرحمن بن جبير فرمائى چه عمرو بن الاسود د حج نه پس، كله مدينې منورې ته اورسيدو نو مونځ كولو كښې په هغه باندې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نظرپريوتلو، تپوس ئې اوكړو دا څوك دې؟ اوخودلې شو چه د شام اوسيدونكې دې، عمرو بن الاسود نوم ئې دې نو حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل:

((مارأيت أحداً أشبه صلاةً، ولاهدياً، ولاخشوعاً، ولالبسةً برسول الله صلى الله عليه وسلم من هذا الرجل)) (۱)

يعنى مونځ، اخلاق سيرت، خشوع، او لباس كښې د دې سړى نه ډير د رسول الله ﷺ مشابه ما بل څوك نه دى ليدلى.

د امام ترمذى رحمه الله نه علاوه باقى اصحاب اصول سته د دوى نه روايات اخستى دى. (۲) او په بخارى شريف كښې د دوى نه صرف يو حديث يعنى حديث باب مروى دې. (۳)

د حضرت معاويه رضي الله عنه د حكومت په زمانه كښې د هغوى انتقال اوشو (۴) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

تنبيه: ابوموسى المدينى رحمه الله د ابن ابى عاصم په حواله سره نقل كړى دى چه حضرت عمير بن الاسود صحابى وو ليكن دا صحابى نه وو، بلكه د صحابه كرامو نه روايت كوى. ابوموسى رحمه الله فرمائى: ((وليس بصحابي، إنما يروى عن الصحابة)) (۵)

**قوله: أنه أتى عبادة بن الصامت، وهو نازل في ساحة حمص، وهو في بناء، ومعه أم حرام:** عمير بن الاسود رحمه الله فرمائى چه هغه حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه له لاړو كوم وخت چه هغه د حمص په غاړه په خپل يو محل كښې وو او هغه سره د هغه بى بى حضرت ام حرام رضي الله عنها هم وه.

د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه حالات (كتاب الإيمان) كښې (۶) او د حضرت ام حرام رضي الله عنها تذكره (كتاب الجهاد) په شروع كښې راغلې دى. (۷)

**قوله: ثم قال النبي صلى الله عليه وسلم: أول جيش من أمتي يغزون**

---

۱) (سير أعلام النبلاء (۴ص۷۹)-
۲) (الكاشف (ج۲ص۷۲) وتهذيب الكمال (ج۲۱ص۵۴۵)-
۳) (عمدة القارى (۱۴ص۱۹۸) وفتح البارى (ج۶ص۱۰۲)-
۴) (تهذيب الكمال (ج۲۱ص۵۴۵) وسير أعلام النبلاء (ج۴ص۸۱)-
۵) (تهذيب التهذيب (ج۸ص۵)-
۶) (كشف البارى (ج۲ص۴۸)-
۷) (كتاب الجهاد باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء-

مدینة قیصر مغفورلهم، فقلت: أنافیهم یارسول الله؟ قال: لا: بیا نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو، زما په امت کښې د ټولو نه اول کوم خلق چه د قیصر په حکومت کښې جهاد کوی د هغوی ښښنه شویده. ماعرض اوکړو یارسول الله! آیا زه په هغوی شامل یم؟ هغوی اوفرمائیل نه. په حدیث باب کښې مدینه قیصر نه مراد قسطنطنیه ده، چه د قیصر دارالخلافه او پایه تخت وو. (۱)

او په حدیث کښې امت محمدیه د هغه لښکر د پاره د ښښنې وعده او زیرې ورکړې شویدې. څوك چه په هغه ښاندې په رومبی ځل حمله اوکړې او هلته جنګ اوکړې.

**دینه کومه غزوه مراد ده؟**: د جمهورو شارحینو په دې اتفاق دې چه دلته د قسطنطنیه اولنئی غزا مراد ده او د اکثرومورخینو اتفاق دې چه دا اولنه غزا چه د قیصر خلاف شوې وه د دې مشری یزید بن معاویه کړې وه او دا د ۵۲ هجری واقعه ده. (۲)

او په دې غزوه کښې جلیل القدر صحابه کرام مثلاً حضرت ابوایوب انصاری، ابن عباس، ابن عمر، ابن الزبیر اوحسین بن علی رضی الله عنهم هم شریك وو. (۳)

**د حدیث باب نه د یزید په فضیلت باندې استدلال**: د دې نه علامه مهلب رحمه الله د یزید بن معاویه په فضیلت او نجات باندې استدلال کړیدې. ځکه چه هغه د دغه لښکرامیر ووکوم چه په رومبی ځل د قیصر په حکومت د قبضې د پاره جنګ کړې وو. (۴)

خو د مؤرخینو دا قول ډیرو علماؤ ردکړې دې، چه د هغې مختلف وجوهات لاندې ذکر دی.

① د قیصر خلاف جنګ کونکی لښکر په تعیین کښې مختلف روایات دی. ځکه چه په قسطنطنیه باندې د قبضې جنګ د حضرت معاویه رضی الله عنه په دور خلافت کښې څوځل شویدې. او په دې کښې هم څه شك نشته چه په بعض جنګونوکښې یزید بن معاویه امیروو خو د دې نه دا نه لازمیږی چه هغه دې د اولنی لښکر هم امیر وی. علامه عینی لیکلی دی چه حضرت معاویه رضی الله عنه یو لښکر د سفیان بن عوف په مشرئی کښې د قیصر حکومت طرف ته لیګلې وو چه د رومیانو په ښارونوکښې ورننوتلې وو او په دې لښکر کښې حضرت ابن عباس، ابن عمر، ابن الزبیر او ابوایوب انصاری رضی الله عنهم غوندې صحابه کرام هم وو. (۵)

نور فرمائی چه ډیره ښکاره خبره دا دې چه دا ټول صحابه کرام د سفیان سره وو نه چه یزید بن معاویه سره، په دې وجه چه یزید بن معاویه د دې قابل نه وو چه د دغه شان صحابه کرام رضی الله عنهم دې د یزید د حکم لاندې شی. (۶)

---

۱) (فتح الباری (ج۶ص۱۰۶)-

۲) (قال العینی وعزاه إلی صاحب المرأة، انظر عمدةالقاری ((ج۱۴ص۱۹۸) وقال الأثیر: فی سنة تسع وأربعین(۳۹) وقیل سنة خمسین. انظر الکامل (ج۳ص۲۲۷)-

۳) (الکامل (ج۳ص۲۲۷) وتکملة فتح الملهم (ج۳ص۴۵۶)-

۴) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۷)-

۵) (عمدةالقاری (ج۱۴ص۱۹۸)-

۶) (حواله بالا-

② دَ بعض رواياتو نه معلوميږي چه حضرت معاويه رضی الله عنه سفيان بن عوف ليګلي وو بيا ئې وريسې يزيد هم اوليګلو لکه چه ابن الاثير په خپل مشهورتاريخ (الکامل) کښې ذکرکړې دی.(١) که چرې دا روايت صحيح او درست دې نودا په دې خبره دلالت کوی چه رومبې سرې کوم چه قسطنطنيه طرف ته روان شو هغه سفيان بن عوف دې، بيا روستو يزيد بن معاويه د هغه شاته روان شو. نو اوس به دا ونيلې کيږي چه دَ يزيد اوليت او تقدم ثابت نشو بلکه سفيان بن عوف اودَ هغوی ملګرو ته اوليت او مرتبه حاصله شوه.(٢)

③ علامه ابن التين او ابن المنير رحمهم الله فرمائی چه دَ يزيد بن معاويه په دې عموم کښې داخليدلو سره دا نه لازميږي چه هغه دَ څه خاص دليل په وجه دَ دې عموم نه رابهر هم شی. ځکه چه په دې باب کښې دَ اهل علم نه دَ چا هم اختلاف نشته چه دَ نبی اکرم ﷺ دا قول مبارك ((مغفور لهم)) په يو شرط سره تړلې شويدې چه هغه خلقو دَ مغفرت اهل اوقابل هم وی، نو که يو سرې په دې غزوه کښې دَ شرکت نه پس مرتد شی نو دَ ټولو په نزد په دې خبره اتفاق دې چه هغه به په دې عموم کښې نه داخليږي. نو معلومه شوه چه دَ مغفور نه مراد دا

---

١) (قال ابن الأثير الجزري رحمه الله: في هذه السنة(٤٩) سيّر معاوية جيشا كثيفًا إلى بلاد الروم للغزاة، وجعل عليهم سفيان بن عوف، وأمرابنه يزيد بالغزاة معهم، فتثاقل واعتل، فأمسك عنه أبوه، فأصاب الناس في غزاتهم جوع ومرض شديد، فأنشا يزيديقول:

ما إن أبالي بما لاقت جموعُهم بالغذ قدونة من حمى ومن موم

إذا اتكأت على الأنماط مرتفقا بدّير مرانٍ عندی أم كلثوم

وأم كلثوم امرأته..... فبلغ معاوية شعره، فأقسم عليه ليلحقن بسفيان في أرض الروم ليصيبه ما أصاب الناس، فسار ومعه جمع كثير، أضافهم إليه أبوه، وكان في هذا الجيش ابن عباس، وابن عمر، وابن الزبير، وأبوايوب الأنصاري، وغيرهم......فأوغلوافي بلادالروم حتى بلغوا القسطنطنية فاقتل المسلمون والروم..... إلخ. الكامل (ج٣ص٢٢٧) وانظرأيضًا معجم البلدان للحموي(ج٢ص٥٣٤) كلمة دير مران و(ج٤ص ١٨٨) كلمة غذقدونة. علامه ابن الاثير جزری رحمه الله فرمائی چه هم په دې کال يعنی ٤٩ هجری کښې حضرت معاويه رضی الله عنه دَ غزوې دَ پاره يو لوئ لښکر دَ بلاد روم طرف ته روان کړو او سفيان بن عوف ئې دَ دې لښکر امير مقرر کړو او خپل خوئ يزيد ته د دې خلقو سره په غزوه کښې د شريکيدو حکم اوکړو. ليکن يزيد سستی اختيار کړه او بهانې مانې ئې لټولې. د يزيد پلار معاويه رضی الله عنه هغه په خپل حال پريخودو. په دې جنګ کښې خلقو ته ډيره ولږه او مرض اولګيدو نو يزيد دا شعرونه ونيل: "مقام غذقدونه کښې چه د هغوی لښکر ته کومه تبه وغيره پريشانی وشوه د هغې ماته هيڅ پرواه نشته ځکه چه په دير مروان مقام باندې په قالين باندې بنه په مزه کښې تکيه وهلې يم، زما سره ام کلثوم ده. او ام کلثوم د يزيد د ښځې نوم دې..... حضرت معاويه رضی الله عنه ته چه کله دَ يزيد دا شعرونه اورسيدل نو هغه دَ يزيد نه قسم واخستو چه هغه به دَ روم په زمکه باندې دَ سفيان بن عوف سره ملاويږي. نو هغه يو لښکر جرار ځان سره بوتلو کوم چه د هغه پلار د امداد په توګه هغه سره کړې وو. په دې لښکر کښې حضرت ابن عباس، ابن عمر، ابن الزبير او ابوايوب انصاری رضی الله عنهم وغيره هم شامل وو...... نو دا خلق بلاد روم کښې دننه شو او تردې چه قسطنطنيه ته اورسيدل نو مسلمانانو او روميانو په مينځ کښې سره جنګ وشو.....

٢) (تکملة فتح الملهم (ج٣ص٤٥٧)-

دي چه په ده كښې د مغفرت شرط هم موندلې شى.(۱)
د دې دريو وجوهاتو په بنا اكثر علماء كرامو د علامه مهلب رحمه الله قول رد كړيدې.
ليكن روايات خو په دې باره كښې مختلف دى چه په قسطنطنيه باندې كوم لښكر او رومبى ځل حمله كړې وه. په هغې كښې د ډيرو احتمالاتو ګنجائش هم دې. مګر په هغې كښې اكثر په دې خبره دلالت كوى چه د رومبى لښكر مشرى د يزيد په لاس كښې وه د څه تائيد چه مسند احمد (۲) طبقات ابن سعد (۳) او البداية والنهاية (۴) د رواياتو نه كيږى.

د يزيد بن معاويه د نبى اكرم ﷺ د قول ((مغفورلهم)) په عموم كښې د داخليدلو يا نه داخليدلو باندې د تولو نه بهتر او معتدل قول د حضرت شاه ولى الله محدث دهلوى رحمه الله دې. فرمائى:

((قوله: ‹‹مغفورلهم››، تمسك بعض الناس بهذا الحديث فى نجاة يزيد، لأنه كان من جملة هذا الجيش الثانى، بل كان رأسهم ورئيسهم على مايشهد به التواريخ، والصحيح أنه لايثبت بهذا الحديث إلا كونه مغفوراله ما تقدم من ذنبه على هذه الغزوة، لأن الجهاد من الكفارات، وشأن الكفارات إزالة آثار الذنوب السابقة عليها، لاالواقعة بعدها، نعم، لوكان مع هذا الكلام أنه مغفور له إلى يوم القيامة يدل على نجاته، وإذا ليس فليس، بل أمره مفوّض إلى الله تعالى فيما ارتكبه من القبائح بعد هذه الغزوة، من قتل الحسين رضى الله عنه، وتخريب المدينة، والإصرار على شرب الخمر، إن شاء عفا عنه، وإن شاء عذبه، كما هو مطرد فى حق سائر العصاة..))(۵)

يعنى د رسول الله ﷺ مبارك ارشاد ((مغفورلهم)) نه بعضو خلقو د يزيد د نجات استدلال كړيدې. ځكه چه هغه هم د دې دوئم لښكر يوحصه وو، بلكه د لښكر مشر او قائد وو لكه چه د تاريخ كتابونه په دې ګواه دى. خو صحيح خبره دا ده چه د دې حديث نه صرف دومره ثابتيږى چه په دې غزوه كښې د شركت نه وړاندې كومه د هغه ګناه وه هغه معاف كړيشوه ځكه چه جهاد د كفاراتو د قبيل نه دې او د كفاراتو شان دا وى چه د هغې نه وړاندې كومه ګناه شوې وى هغه ختمه كړى نه چه روستو واقع شوى ګناهونه ختمه وى. اوكه دې كلام سره دا هم وې چه د قيامته پورې د هغه مغفرت وشو نو دا حديث د يزيد په نجات باندې دلالت كوى خو كه دا خبره نه وى نو هغه هم نشته. (يعنى چه كله ترقيامت پورې د مغفرت

---

۱) (حواله بالا وفتح البارى (ج۶ص۱۰۲) وعمدة القارى (ج۱۴ص۱۹۹) وأوجز المسالک (ج۸ص۳۸۲) وتعليقات لامع الدرارى (ج۷ص۲۴۴)-
۲) أخرج الإمام أحمد فى مسنده (ج۵ص۴۲۳) بسنده عن أبى ظبيان قال: غزا أبوأيوب مع يزيد بن معاوية...
۳) (أخرج ابن سعد فى طبقاته (ج۳ص۴۸۵) بسنده عن محمد قال: شهد أبوأيوب بدراً......... قال: فمرض، وعلى الجيش يزيدبن معاوية، فأتاه يعوده.... په دې روايت كښې د مرض نه مراد د ابوايوب انصارى مرض الموت دې. او دا د تولو په نزد مسلمه ده چه د حضرت ابو ايوب انصارى رضى الله عنه مرګ د قسطنطنيه په غزوه كښې شوې دې-
۴) (البداية والنهاية (ج۸ص۵۸-۵۹)-
۵) (رسالة شرح التراجم أبواب البخارى المطبوع مع صحيح البخارى (ص۳۱)-

ذکر نشته نو د یزید نجات هم ثابت نه دي) بلکه یزید چه د دې غزوې نه پس د کومو قبائحو ارتکاب کړې دي د هغه معامله د الله تعالی په حواله ده، لکه د حضرت امام حسین بن علی رضی الله عنهما شهادت، په مدینه منوره کښې تخریب کاری او فساد او په شرابو څکلو باندې اصرار وغیره کول، که الله تعالی اوغوښتل نو هغه به معاف کړی یا به سزا ورکړی، لکه چه د نورو ټولو ګناهګاراتو باره کښې حکم دې.

**په خلیفه یزید بن معاویه باندې لعنت کولو حکم:** خلیفه یزید بن معاویه باندې لعنت کول جائز دی که نه؟ مشهوره اختلافی مسئله ده. په کومه کښې چه د امت اکثر خلق د افراط او تفریط ښکار دی. یوه طبقه خو هغه ده چه په یزید باندې لعنت کول حق ګنړی او دونمه ډله هغه ده چه دهغه د بعض فضائلو اومناقبو قائله ده اوپه هغه باندې لعنت کول جائزنه ګنړی. مونږ دلته دا مسئله واضح کولو د پاره د حضرت فقیه النفس رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله د فتاوې مجموعه (فتاوی رشیدیه) نه یو اوږد اقتباس نقل کړیدې، چه د سوال او جواب په صورت کښې دې. په څه سره چه د دې مسئلې د حقیقت او په حکم په پوهیدلو کښې مدد ملاوشی:

سوال: یزید چا چه حضرت امام حسین رضی الله عنه شهید کړې وو هغه د لعن قابل دې که نه؟ اګرکه په لعنت کولو کښې احتیاط کول پکار دی. لیکن ډیرو اکابرِ دین په یزیدباندې لعنت کول تحریر کړی دی.لکه حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه د شهادت په شپه ما یو غیبی آواز واوریدو چه وئیلې:

| | |
|---|---|
| أیها القاتلون جهلا حسینا | بشروا بالعذاب والتذلیل |
| قد لُعنتم علی لسان ابن داود | وموسی و حامل الإنجیل |

((کذا فی تحریر الشهادتین))(۱) ((وصواعق محرقة)) او امام جلال الدین سیوطی رحمه الله (تاریخ الخلفاء) کښې تحریرفرمائی ((قال صلی الله علیه وسلم: من أخاف أهل المدینة أخافه الله، وعلیه لعنة الله والملائکة والناس أجمعین)) (رواه مسلم)(۲)

((وکان سبب خلع أهل المدینة له أن یزید أسرف فی المعاصی)) (۳)

او په دونم ځائ کښې فرمائی ((فقتل وجیء برأسه فی طست حتی وضع بین یدی ابن زیاد، لعن الله قاتله وابن زیاد، ومعه یزید.....))(۴)

او بعض محققین په شان د امام جوزی رحمه الله (۵)

---

( ۱)(دلائل النبوة للأصبهانی (ج۲ص۵۵۳) الصواعق المحرقة (ص۲۱۸)-

۲ ) (الحدیث أخرجه مسلم فی صحیحه، کتاب الحج باب من أراد أهل المدینة بسوء..... رقم (۱۳۸۷-۱۳۸۸)

۳ ) (تاریخ الخلفاء للإمام سیوطی (ص۲۰۹)-

٤ ( حواله بالا(ص۲۰۷)-

٥ ) (النبراس شرح شرح العقائد (ص۳۳۱)-

او ملا سعد الدین تفتازانی (۱) وغیرهما رحمهم الله هم د لعن قائل دی. مولانا قاضی ثناء الله صاحب پانی پتی رحمه الله خپلو مکتوباتو کښې لیکی:

«وجه قول جواز لعن آنست که ابن جوزی روایت کرده که قاضی ابویعلی درکتاب خود "معتمدالاصول" بسندخود ازصالح بن احمدبن حنبل روایت کرده که گفتم پدر خود راکه اے پدر! مردم گمان می برندکه ما مردم یزید رادوست می داریم.احمدگفت که اے پسر!کسے که ایمان بخدا و رسول داشته باشد اورا دوستی یزید چگونه رواباشد؟ وچرالعنت نه کرده شود برکسیکه خدا بروئے درکتاب خود لعنت کرده؟ گفتم درقرآن کجابریزید لعنت کرده است؟ احمد گفت ﴿فهل عسیتم إن تولیتم الخ﴾ (۲) او په بل مکتوب.... کښې دی:

غرض که کفر بریزید از روایت معتبره ثابت می شود، پس او مستحق لعن است، اگرچه درلعن گفتن فائده نیست، لیکن «الحب فی الله والبغض» مقتضی آنست (۳) والله أعلم-

د دې مذکوره عبارتونونه معلومیږی چه بعض حضرات د کفر هم قائل وو او بعض حضراتو اکابردین لعن جائزنه ګڼړلو. د دې دپاره چه د یزید د کفر حال محقق نه دې نو هغه د لعن قابل نه دې، نو یزیدته کافر وئیل یا لعن کول جائز دی که نه؟ مدلل ارقام اوفرمائی.

جواب: صحیح حدیث دې چه کله څوك په چا لعنت کوی نو که هغه سړې د لعنت قابل دې نو په هغه باندې لعن پریوزی ګنی نو په لعنت کونکی باندې رجوع کیږی. (۴)

نو چه ترکومې د یو سړی کفر محقق شوې نه وی په هغه باندې لعنت نه دی کول پکار څکه چه په خپل ځان د لعنت کیدو اندیښنه ده. نو د یزید هغه کارونه که هر څومره د لعن کولو موجب دی خو چه چاته د محقق اخبارونه او قرائنو نه معلومه شوه چه هغه په دغه مفاسدو

---

۱) (قال العلامة سعدالدین التفتازانی فی شرح العقائد (ص۱۱۶) وانما اختلفوا فی یزید بن معاویة حتی ذکر فی الخلاصة وغیره أنه لاینبغی اللعن علیه ولاعلی الحجاج، لأن النبی علیه السلام نهی عن لعن المصلین، ومن کان من أهل القبلةو ومانقل من النبی علیه السلام من اللعن لبعض من أهل القبلة فلما أنه یعلم من أحوال الناس مالا یعلمه غیره، وبعضهم أطلق اللعن علیه، لما أنه کفرحین أمر بقتل الحسین،واتفقوا علی جواز اللعن علی من قتله أو أمربه، أو أجازه، ورضی به، والحق أن رضا یزید بقتل الحسین واستشاره بذلک وإهانة أهل بیت النبی علیه السلام مما تواتر معناه، وإن کان تفاصیله أحاداً، فنحن لانتوقف فی شأنه بل فی إیمانه لعنة الله علیه وعلی أنصاره وأعوانه- دا خود علامه تفتازانی رحمه الله موقف شو لیکن علامه زبیدی رحمه الله په (اتحاف) کښې د علامه تفتازانی رحمه الله په موقف باندې رد کولو سره د تفتازانی رحمه الله د عبارت نقل کولو نه پس لیکی: أنظر هذاالکلام من هذاالمحقق، مع أنه من کبار أئمة الشافعیة وقواعد مذهبه تقتضی عدم اللعن. اتحاف السادة المتین (ج۹ص۲۰۶) کتاب آفات اللسان، الآفة الثامنة: اللعن-

۲) (الصواعق المحرقة (ص۲۲۰)-

۳) (أخرجه الإمام ابوداود فی سننه عن أبی ذر رضی الله عنه أن رسول الله ﷺ قال: أفضل الأعمال الحب فی الله والبغض فی الله. کتاب السنة باب مجانبة أهل الأهواء وبغضهم رقم (۴۵۹۹)- مقتضی آنست))

۴) (عن أبی الدرداء رضی الله عنه قال: سمعت رسول الله ﷺ یقول: إن العبد إذا لعن شیئا صعدت اللعنة إلی السماء.....فإذا لم تجد مساغارجعت إلی الذی لُعِن، فإن کان لذلک، وإلارجعت إلی أهلها. انظر سنن أبی داؤد کتاب الأدب باب فی اللعن رقم (۴۹۰۵)-

راضي او خوشحاله وو او هغه ئې ښه او جائز ګڼړلې وو او بغير د توبې نه مړشو نو هغه د لعن د جواز قائل دي او مسئله هم داسې ده، چه کوم علماء په دې کښې تردد کوی چه په اول کښې هغه مؤمن وو د دې نه پس هغه د دې افعالو مستحق وو که نه وو او ثابته شوه که نه، تحقيق نه دې شوې. نو بغير د تحقيق نه د دې امر لعن جائز نه دې. د علماؤ هغه ډله په وجه د حديث د مسلم د لعن نه منع کوی او دا مسئله حق هم ده. نود جواز او عدم جواز مدار په تاريخ باندې دې او مونږ مقلدينوته احتياط په سکوت کښې دې ځکه که لعن کول جائز دی نو لعن نه کولو کښې هم څه بدی نشته. لعن کول نه فرض دی، نه واجب، نه سنت نه مستحب، محض مباح دی اوکه هغه محل نه دې نو پخپله په معصيت کښې اخته کيدل ښه نه دی. فقط والله اعلم. (۱)

**د بحث خلاصه**: د يزيدباره کښې د دې سوال او جواب خلاصه دا شوه چه په دې مسئله کښې د امت د علماؤ درې موقفه دی: ① لعنت بريزيد ② عدم لعنت ③ توقف او سکوت.

بعض علماء په يزيدباندې د لعنت وئيلو قائل دی لکه امام احمد، علامه ابن الجوزی، علامه تفتازانی، قاضی ابويعلی موصلی، کياالهراسی اوقاضی ثناءالله پانی پتی رحمهم الله وغيره(۲) اود بعضو علماؤ وينا ده چه په يزيد باندې لعنت کول جائز نه دی لکه امام غزالی (۳) علامه ابن تيميه، حافظ ابن حجر هيثمی او حافظ ابن الصلاح رحمهم الله وغيره (۴) بلکه بعض خلق خود هغه د بعض فضائلو او مناقبو هم قائل دی لکه چه د علامه مهلب رحمه الله قول چه اوس لږ وړاندې تيرشو.

او جمهورمحققين دريم موقف ته ترجيح ورکړې چه په دې مسئله کښې سکوت اختيار کړيشي. متقدمينو کښې مصطفی بن ابراهيم تونسی حنفی، امام قاسم بن قطلوبغا(۵) علامه زبيدی(۶) رحمهم الله او متاخرينوکښې مولانا ابوالحسنات عبدالحئ لکهنوی، حضرت شيخ الحديث محمد زکريا (۷) حکيم السلام مولانا محمدطيب (۸) حکيم الامت مولانا اشرف علی تهانوی (۹) رحمهم الله اود نورو علماء ديوبند هم دغه مسلك دې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**: ترجمة الباب سره د حديث مطابقت د رسول الله صلی الله عليه وسلم

---

۱ ) (فتاوی رشيديه مبوب (ص۷۶-۷۸) وتاليفات رشيديه (ص۸۳-۸٤)-

۲ ) (حواله بالا البداية والنهاية (ج۸ص۲۲۳) شهيدکربلا اور يزيد (ص۱٤۱) والنبراس (ص۳۳۱) وحياة الحيوان (ج۲ص۱۵۷) باب الفاء کلمة الفهد-

۳ ) (إحياء العلوم الدين (ج۳ص ۱۲۵)-

٤ ) (إتحاف السادة المتقين (ج۹ ص ۲۰۵)-

۵ ) (حواله بالا (ص۲۰۷)-

۶ ) (قال الإمام الزبيدی رحمه الله وهناک قول ثالث وهو: التوقف وتفويض أمره إلی الله..... حواله بالا ) ص۲۰۶)

۷ ) (تعليقات لامع الدراری (ج۷ص۳٤۶) وذکر الشيخ عبدالحئ فی فتاواه (مجموعة الفتاوی (ج۱ص۶۱) عن المسامرة وشرحه أن الطرقة الثابتة القديمة فی شأن يزيد التوقف ورجع أمره إلی الله-

۸ ) (شهيدکربلا اور يزيد (ضص۱٤۶)-

۹ ) (إمداد الفتاوی (ج۱ص٤۲۶) وأيضاً انظر لهذه المسألة الصواعق المحرقة (ص۲۱۸-۲۲۱)-

دي جمله ((أول جيش من أمتي يغزون مدينة قيصر مغفور لهم)) کښې دي. دلته د روميانو سره د جهاد فضيلت بيان کړېشوې دې. او (مدينه قيصر) نه قسطنطنيه مراد ده چه نن صبا د استنبول په نوم مشهور دې.

## ۹۳- باب: قِتَالِ الْيَهُودِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب لاندې امام بخاري رحمه الله د يهودو متعلق د نبي اکرم ﷺ يوه پيشنګوئي بيانول غواړي چه مسلمانان به يهودو سره جنګ کوي او دا هم د نبي عليه السلام د معجزاتو نه يوه معجزه ده د کومې ښکاره کيدنه چه په انشاء الله په راتلونکې زمانه کښې کيږي. (۱)

[۲۷۶۷] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْفَرْوِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا(۲) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُقَاتِلُونَ الْيَهُودَ حَتَّى يَخْتَبِيَ أَحَدُهُمْ وَرَاءَ الْحَجَرِ فَيَقُولُ يَا عَبْدَ اللَّهِ هَذَا يَهُودِيٌّ وَرَائِي فَاقْتُلْهُ[۳۳۹۸]

## تراجم رجال

۱- **اسحاق بن محمد الفروي:** دا ابويعقوب اسحاق بن محمد بن اسماعيل بن ابي فروه رحمه الله دې. دې د خپل قرنيکه ابوفروه طرف ته منسوب کيدلو سره فروي بانديې بللې شي. (۳)
د ده نه امام بخاري رحمه الله په واسطه سره هم روايت کړيدې. (۴)
هم د ده د نوم په شان يو بل راوي هم دې. اسحاق بن عبدالله بن ابي سفروه چه ضعيف دې او دې (ابن عبدالله) د اسحاق بن محمد د پلار تره دې. (۵) په دې وجه د اشتباه نه بچ کيدل پکار دي. (۶)

۲- **مالك:** دامشهورامام فقيه مدينه حضرت مالك بن انس رحمه الله دې. د ده تذکره ((بدء الوحي)) د دونم حديث لاندې تيره شويده. (۷)

---

۱) (عمدة القاري (ج ١٤ص١٩٩)-
۲) (قوله: عن عبدالله بن عمررضی الله عنهما: الحديث أخرجه البخاري أيضًا كتاب المناقب باب علامات النبوة في الاسلام رقم (٣٥٩٣) ومسلم كتاب الفتن باب لاتقوم الساعة حتى يمر الرجل يقبر الرجل فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء رقم (٧٣٣٥) والترمذي كتاب الفتن باب ماجاء في علامة الدجال رقم (٢٢٣٦)
۳) (عمدة القاري (ج ١٤ص١٩٩) وفتح الباري (ج٦ص١٠٣)-
٤) (فتح الباري (ج٦ص١٠٣)-
۵) (حواله بالا-
۶) (اسحاق بن محمد الفروي، د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ کتاب الصلح باب قول الإمام لأصحابه.
۷) (کشف الباري (ج١ص٢٩٠) و کشف الباري (ج٢ص٨٠)-

۳- نافع: دا مشهور تابعی حضرت نافع مولی ابن عمر رحمه الله دې. (۱)

۴- عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې. دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب الإيمان وقول النبی صلی الله عليه وسلم: بنی الإسلام علی خمس)) لاندې تيرشوی دی. (۲)

**قوله:** أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: تقاتلون اليهود: رسول الله ﷺ ارشاد دې چه تاسو خلق به يهوديانو سره قتال او جهاد كوئی.

دلته نبی اكرم ﷺ اګرچه مخامخ ناستو صحابه كرامو رضوان الله عليهم اجمعين ته خطاب اوفرمائيلو ليكن مراد ترينه نور امتيان دی. ځكه چه په حديث كښې ذكر شوې واقعه دَ حضرت عيسى عليه السلام دَ آسمان نه دَ تشريف راوړلو نه پس ښكاره كيږی او مسلمانان به هغه سره وی او يهوديان ((لعنة الله عليهم)) به دجال ((أعاذنا الله الجميع من فتنته)) سره وی. (۳)

**قوله:** حتى يختبئ أحدهم وراء الحجر فيقول: يا عبدالله، هذا يهودي ورائي فاقتله:
تردې چه د دې يهوديانونه به څوك د كاڼړی شاته پټ شی نو هغه كاڼړې به وائی اې د الله تعالى بنده دا زما شاته يهودی پټ شويدې دا قتل كړه.

مطلب دا چه مسلمانان به يهوديان يو يو راغونډوی او قتل كوی به ئی نو يهوديان به دَ پټيدلوَ پاره دَ كاڼړو آسرا اخلی خو هلته به هم نشی بچ كيدلی. ځكه چه همدغه كاڼړی دَ كوم شاته چه دوی پناه اخستې وی هغه به مسلمانان راغواړی او خودنه كوی چه دلته زما شاته يو يهودی پټ ناست دې دا قتل كړه او دا صورت حال به هغه وخت پيښيږی كله به چه حضرت عيسى عليه السلام دجال ملعون قتل كړې وی. دَ سنن ابن ماجه په روايت كښې دَ حضرت ابوامامه الباهلی رضي الله عنه نه په دې سلسله كښې دا تفصيل هم نقل دې:

((.... قال عيسى عليه السلام: افتحوا الباب، فيفتح، ووراءه الدجال، معه سبعون ألف يهودی، كلهم ذو سيف محلى وساج، فإذا نظر إليه الدجال ذاب كما يذوب الملح فی الماء، وينطلق هاربا، ويقول عيسى عليه السلام: إن لی فيك ضربة لن تسبقنی بها، فيدركه عند باب اللد الشرقی فيقتله، فيهزم الله اليهود، فلا يبقى شيء مما خلق الله عزوجل يتوارى به يهودی إلا أنطق الله ذلك الشيء، لا حجر، ولا شجر، ولا حائط، ولا دابة إلا الغرقدة، فإنها من شجرهم، لا تنطق، إلا قال: يا عبدالله المسلم، هذا يهودی، فتعال اقتله)) (۴)

حضرت عيسى عليه السلام به فرمائی چه دروازه كولاؤ كړئی، نو دروازه به كولاؤ كړيشی اودَ هغه شاته به دجال وی چا سره چه به اويا زره يهوديان وی ټولو سره به مزين توري او شنه

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فی المسجد-
۲) (كشف الباری (ج۱ص۶۳۷)-
۳) (عمدة القاری (ج۱۴ص۹۹) وفتح الباری (ج۶ص۱۰۳) وإرشاد الساری (ج۵ص۱۰۵)-
۴) (سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عيسى بن مريم وخروج يأجوج.... رقم (۴۰۷۷)-

څادرونه وی. کله چه دجال دوی ته اوګوری نو داسې به ویلې شی لکه چه مالګه په اوبو کښې ویلی کیږی او تښتی به، او عیسی علیه السلام به فرمائی چه زه به په تاباندې یو داسې ګذار کوم په کوم کښې چه به ته زمانه وړاندې والې اونه کړې شې. نو هغه علیه السلام به دجال د مقام لد مشرقی دروازې سره راګیرکړی او هغه به قتل کړی، الله تعالی به یهودیانو ته شکست ورکړی، نو د الله تعالی په مخلوقاتو کښې به داسې یوڅیز پاتې نشی د کوم شاته چه به چرته یو یهودی پټ شوې وی مګر دا چه الله تعالی به هغه څیز ګویان کړی، نه کاڼړې، نه ونه، نه څه ښناور او نه چرته دیوال بغیر د غرقده نه ځکه چه هغه د یهودیانو د ونونه یوه ونه ده چه خبرې به نه کوی،خوهریو څیز به دا وائی اې د الله تعالی مسلمانانو بندیګانو دا یهودی دې راشه دا قتل کړه.

د سنن ابن ماجه د ذکر شوی روایت نه دا هم معلومه شوه چه یهودیانوته به هیڅ څیز پناه نه ورکوی سوا د غرقد (۱)

**د کاڼړی د وینا مطلب:** لکه څنګه چه اوس تیرشو چه کاڼړی به خپل شاته پټ شوی یهودیان ښکاره کوی او وائی به ((یاعبدالله، هذایهودی ورائی فاقتله)) نو په دې کښې دوه احتمالات دی:

① دا کلام په حقیقت باندې محمول دې او په دې کښې هیڅ استعاد نشته چه الله تعالی به دوی ته د وینا طاقت وری او کاڼړی به وائی ((وهوعلی کل شئ قدیر)) (۲)

② دا هم ممکنه ده چه دا کلام په مجاز باندې محمول وی او په دې کښې دې خبرې ته اشاره وی چه د یهودیانو جرړې به پریکړې شی او هغوی به بالکل ختم کړیشی. (۳)

علامه عینی رحمه الله اولنی احتمال ته ترجیح ورکړې ده ځکه چه دا خبره خو واضحه ده چه د الله تعالی د پاره خو دا کار څه مشکل نه دې چه هغه کاڼړو له د خبرو طاقت ورکړی. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې ((تقاتلون الیهود)) (۵) چه په دې کښې د مستقبل متعلق یو خبر ورکړیشوې دې. چه مسلمانانو تاسو به یهودیانو سره جنګ کوئی په کوم کښې چه به آخر کار فتح هم ستاسو مقدر وی.

**د حدیث باب یو خصوصیت:** د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا حدیث د امام مالك د مرویاتو نه دې لیکن په موطا کښې نشته، نو دا د هغه احادیثونه دې د کومو تحدیث چه امام مالك رحمه الله د موطا نه بهر کړیدې.

او اسحاق بن محمد امام مالك رحمه الله نه د دې حدیث په روایت کښې متفرد هم نه دې بلکه د

---

۱) (غرقد یو قسم ازغنه ونه ده، علامه طیبی فرمائی ((هو ضرب من شجر العضاه وشجر الشوک والغرقدة واحدة)) انظر الکاشف عن حقائق السنن (ج ۱۰ص۷۵)-

۲) (عمدة القاری (خ ۱۴ص۱۹۹) وشرح الأبی علی مسلم (ج۷ص۲۵۷)-

۳) (حواله بالا-

۴) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۱۹۹)-

۵) (حواله بالا-

هغه متابعت ابن وهب، معن بن عيسى، سعيد بن داؤد او وليد بن مسلم كريدي. د دې تولو متابعانو تخريج امام دارقطنى رحمه الله (غرائب مالك) كښې كړيدې خو اسماعيلى صرف د ابن وهب طريق ذكر كړيدې. (۱)

[۲۷۶۸] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۲) عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا الْيَهُودَ حَتَّى يَقُولَ الْحَجَرُ وَرَاءَهُ الْيَهُودِيُّ يَا مُسْلِمُ هَذَا يَهُودِيٌّ وَرَائِي فَاقْتُلْهُ

## تراجم رجال

۱- **اسحاق بن ابراهيم:** دا اسحاق بن ابراهيم بن مخلدبن ابراهيم رحمه الله دې. په ابن راهويه سره مشهور دې، د دوى تذكره ((كتاب العلم باب فضل من علم وعلم)) لاندې تيره شوې. (۳)

۲- **جرير:** دا ابوعبدالله جريربن عبدالمجيد بن قرط رحمه الله دې. د دوى تذكره ((كتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أياما معلومة)) په ذيل كښې راغلې. (۴)

۳- **عمارة بن القعقاع:** داعمارة بن القعقاع بن شُبرمه كوفى رحمه الله دې. د دوى حالات ((كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان)) لاندې تيرشوى دى. (۵)

۴- **ابوزرعه:** دا مشهور محدث حضرت ابوزرعه عمرو بن جرير رحمه الله دې. د دوى حالات هم ((كتاب الإيمان)) په پورتنى باب كښې تيرشوى دى. (۶)

۵- **ابوهريرة:** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. د دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تيرشوى دى. (۷)

**قوله:** عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: لاتقوم الساعة.....: حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه حضور اكرم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى قيامت به ترهغه وخته پورې نه قائميږى تركومې چه تاسو يهوديانو سره جنګ اونه كړئى، او تردې چه هغه كاڼړى د كوم

---

۱) (فتح البارى (ج۶ص۱۰۳)-

۲) (قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه مسلم كتاب الفتن باب لاتقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر الرجل فيتمنى أن يكون مكان الميت من البلاء رقم (۷۳۳۹)-

۳) (كشف البارى (ج۳ص۴۲۸)-

۴) (كشف البارى (ج۲ص۲۶۸)-

۵) (كشف البارى (ج۲ص۳۰۳)-

۶) (حواله بالا (ص۳۰۴)-

۷) (كشف البارى (ج۱ص۶۵۹)-

شاته چه یهودی پټ شوې وی به وائی اې مسلمانه دا زما شاته یهودی پټ شوې ناست دې دا قتل کړه.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د دې حدیث مفهوم او مضمون هم هغه دې چه د تیر شوی حدیث وو، البته دا خبره ښکاره کړیشویده چه دواړواحادیثوکښې د یهودیانو سره د جنګ ذکر دې او دا به قیامت سره نزدې وی اود قیامت د واقع کیدو د پاره به د علامت په توګه وی.

**اسلام به د عیسیٰ علیه السلام د نازلیدوپورې باقی وی:** په احادیث باب کښې دې طرف ته اشاره ده چه د اسلام دین به د حضرت عیسیٰ علیه السلام د نازلیدلو پورې باقی وی ځکه چه هم هغه به دجال سره جنګ کوی او یهودیان ځوک چه به د دجال منونکی او تابعدار وی د هغوی به هم جرړې پرې کوی.(۱)

په دې سلسله کښې به نورتفصیل انشاء الله کتاب المناقب کښې (باب علامة النبوة) لاندې راځی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې او هغه د حدیث په دې جمله کښې دې. ((لاتقوم الساعة حتی تقاتلوا الیهود....)). (۲)

## ۹۴- بَاب: قِتَالِ التُّرْكِ

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې ترجمة الباب نه امام بخاری رحمه الله د یو روایت د تضعیف طرف ته اشاره کړیده. په کوم کښې چه راځی ((أتركوا الترك ماتركوكم)) یا ((اتركوا الترك ماودعوكم)) (۳) یعنی چه ترکومې ترک تاسو پرېږدی نو ترهغه وخت پورې تاسوهم هغوی سره څه غرض مه کوئ. د دې روایت نه خو دا معلومیږی چه ترکیانو سره جنګ نه دی کول پکار، نو امام بخاری رحمه الله دلته دا ښائی چه نه که چرې موقع راشی نو هغوی سره هم په جنګ کولو کښې څه بدی نشته. ځکه چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم پخپله د قیامت په علاماتوکښې د دې ذکر کړیدې چه په راتلونکی زمانه کښې به قیامت سره نزدې نزدې ترکیانو سره هم قتال او جهاد وی.

**د ترکیانو د نسل باره کښې تحقیق:** د ترکیانو په اصل کښې اختلاف دې چه دوی د چا نسل سره تعلق لری. علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه ترک د حضرت ابراهیم علیه السلام د یوې وینځې (قنطوراء) د نسل نه دی، د دې وینځې ډیر زیات اولاد اوشو او هم د دې د نسل نه ترک هم دی. (۴)

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۱۰۷) وفتح الباری (ج۶ص۱۰۳) وعمدة القاری (ج۱٤ص۱۹۹)-

۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۹۹)-

۳) (الحدیث أخرجه أبوداؤد فی سننه، أبواب الملاحم باب فی النهی عن تهییج الترک والحبشة رقم (٤۳۰۲) والنسائی فی الصغری، أبواب الجهاد باب غزوة الترک والحبشة رقم (۳۱۷۸) والبیهقی فی سننه الکبری (ج۹ص۱۷۶) کتاب السیر باب ماجاء فی النهی عن تهییج الترک والحبشة، والسیوطی فی اللآلی المصنوعة فی الأحادیث الموضوعة (ج۱ص۸) بقیة المناقب، وقال: موضوع، والکنانی فی تنزیه الشریعة المرفوعة (ج۲ص۳۲) باب فی مناقب ومثالب متفرقة، و(ج۲ص۲۱۳) کتاب النکاح الفصل الثالث وابن الجوزی فی الموضعات (ج۲ص۲۳۵) کتاب الجهاد باب فی السبی والطبرانی فی الکبیر (ج۱۹ص۳۷۵) رقم (۸۸۲)

٤) (عمدة القاری (ج۱٤ص۱۹۹) وفتح الباری (ج۶ص۱۰٤)-

او علامه كراع رحمه الله فرمائى چه ترك هم هغه خلق دى كومو ته چه (ديلم) وائى خو په دې قول باندې دا اعتراض شويدې چه ديلم دَ تركو يو قسم دې. (١)
علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي چه ترك دَ يافث بن نوح عليه السلام اولاد نه دى او دَ دوى ډير زيات قسمونه دى. په دوى كښې دَ ښاريوخلق، دَقلعه ګانو اوسيدونكى او دَ غرونو په څوكو اوسيدونكى هم دى او دَ صحراګانو اوسيدونكى هم. (٢)
او دَ حافظ وهب بن منبه رحمه الله قول دې چه ترك دَ ياجوج او ماجوج دَ تره خامن دى. داسې اوشوه چه كله حضرت ذوالقرنين سكندرى ديوال جوړ كړو نو دَ ياجوج ماجوج څه كسان غائب وو، نو هغوى ئى بهر پريخودل په دې وجه هغوى ته ترك وائى.(٣)

[٢٧٦٩] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُولُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ (٤) قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ تُقَاتِلُوا قَوْمًا يَنْتَعِلُونَ نِعَالَ الشَّعَرِ وَإِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ تُقَاتِلُوا قَوْمًا عِرَاضَ الْوُجُوهِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ [٣٣٩٧]

## تراجم رجال

١- ابوالنعمان: دا ابوالنعمان محمدبن الفضل سدوسى رحمه الله دې.دَ دوى تذكره ((كتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: الدين النصيحة...)) لاندې راغلې ده. (٥)

٢- جريربن حازم: دا ابوالنضر جرير بن حازم بن زيد ازدى بصرى رحمه الله دې. (٦)

٣- حسن: دا مشهور تابعى حضرت حسن بصرى رحمه الله دې، دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا....﴾)) لاندې تيرشوى دى. (٧)

٤- عمروبن تغلب: دا عمرو بن تغلب عهدى ضمرى رضي الله عنه دې. (٨)

قوله: قَالَ: قَالَ النبى صلى الله عليه وسلم: إن من أشراط الساعة أن

---

١ ) (حواله بالا-
٢ ) (حواله بالا-
٣ ) (عمدة القارى (ج١٤ص٢٠٠) وفتح البارى (ج٦ص ١٠٤)-
٤ ) (قوله: عن عمرو بن تغلب رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى المناقب باب علامات النبوة فى الإسلام رقم (٣٥٩٢) وابن ماجه أبواب الفتن باب الترک رقم (٤٠٩٨)-
٥ ) (كشف البارى (ج٢ص٧٦٨)-
٦ ) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فى المسجد-
٧ ) (كشف البارى (ج٢ص٢٢٠)-
٨ ) (دَ دوى دَ حالاتو دَ پاره اوګورئ كتاب الجمعة باب من قال فى الخطبة بعد الثناء: أمابعد-

**تقاتلوا قوما ينتعلون نعال الشعر:** حضرت عمرو بن تغلب ﷺ فرمائي چه نبی کريم ﷺ فرمانيلي چه بيشکه د قيامت په علاموکښې يوه علامه دا هم ده چه تاسو به داسې قوم سره جنګ کوئ چه د ويښتو څپلئ به اچوي.

**د ويښتو څپلې اچولومطلب:** قاضي عياض رحمه الله د حديث د دې جملې «ينتعلون نعال الشعر» دوه مطلبونه بيان کړي دي.

① يو دا چه هغه خلق به د ويښتونه رسئ اوغړي بيابه د دغه رسو نه څپلئ جوړوي.

② دا هم وئيلې شوي دي چه د هغوي د سر ويښته به ډير ګڼ او اوږده وي چه کله هغوي ويښته رازوړندوي نوهغه به د لباس په شان وي چه دهغوي د پښو پورې به وي دڅپلويه شان(۱) ياد داسې څرمنو چه په هغې ويښته لګيدلې وي هغه څپلئ به استعمالوي. چه د هغوي په علاقو داسې سختنه واوره وريږي چه په نورو علاقو کښې نه وي، نو د دې د پاره چه پښې د واورې د سختئ او نقصان نه بچ کړيشي.

**قوله: وإن من أشراط الساعة أن تقاتلوا قوما عراض الوجوه، كأن وجوههم المجان المطرقة:** او بيشکه د قيامت د علامونه (دا هم ده چه) تاسو به يو داسې قوم سره جنګ کوئ د چا مخونه چه به پلن وي لکه چه هغه پلن ډهالونه دي.

**د "المجان المطرقة" معنی:** «المجان» جمع د مجن ده، د دې معنی ډهال ده.

اود «المطرقة» په راء کښې دوه احتمالات دي. تخفيف سره مُطْرَقة ده يا تشديد سره مطَرّقة ده.

(۲) که د تشديد سره وي نو «المجان المطرقة» معنی ده هغه ډهال چه په يو بل باندې ورختلې او قط په قط وي. ابن قرقول دا قول د بعض خلقو طرف ته منسوب کړيدې(۳)

او که چرې مطرقة بغيرد تشديد نه وي نو علامه خطابی رحمه الله د دې معنی دا بيان کړيده چه هغه ډهال په کوم چه اوسپنه خيژولې شوې وي(۴) کيږي داسې چه اوسپنه پلنه کړي او هغه په ډهال وغيره باندې وراوخيژوي. د دې د پاره چه غشې وغيره په دې اثر اونه کړي.

همدغه معنی ډيره واضحه ده. اکثرو شارحينو حضراتو همدغه معنی بيان کړيده.

**تشبيه په کوم څيز کښې ده؟:** حديث شريف کښې نبی اکرم ﷺ د ترک قوم د مخونود پلنوالی د هغه ډهال سره تشبيه ورکړيده په کوم چه اوسپنه ورخيژولې شوې وي. نو علامه خطابی فرمائي لکه چه څنګه ډهال راپړسيدلې وي دغه شان به د دوی مخونه پلن او اننګی راپړسيدلی وي. (۵)

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱٤ص ۲۰۰)-

۲) (عمدة القاری(ج ۱٤ص ۲۰۰)-

۳) (حواله بالا-

٤) (أعلام الحديث(ج۲ص٤٠٥) وحواله بالا-

٥) (حواله بالا-

او قاضي بيضاوى رحمه الله فرمائي چه نبي عليه السلام د هغوى مخونوته د ډهال سره تشبيه ورکړې وه چه خورشوې وى او ګول وى او دا تشبيه د مخونو د مضبوطيا او د غوښې په زياتوالى کښې دى. (۱)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت د حديث په معنى کښې دى. ځکه چه نبى اکرم ﷺ ارشاد ((عراض الوجوه، كأن وجوههم المجان المطرقة)) د ترکو صفت دې. (۲)

لکه څنګه چه د باب په وړاندينى حديث شريف کښې په صراحت سره راغى.

[۲۷۷۰] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ الْأَعْرَجِ قَالَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۳) قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْأَعْيُنِ حُمْرَ الْوُجُوهِ ذُلْفَ الْأُنُوفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعَرُ [۲۷۷۱، ۳۳۹۴-۳۳۹۶]

## تراجم رجال

۱- **سعيد بن محمد:** دا امام سعيد بن محمد بن سعيد جرمى کوفى رحمه الله دې. ابومحمديا ابوعبيدالله ددوى کنيت دې. (۴)

دې د عبدالرحمن بن عبدالملک بن ابجر، ابو تميله يحيى بن واضح، يعقوب بن ابراهيم بن سعد، ابواسامة، مطلب بن زياد، ابوعبيده الحداد، حاتم بن اسماعيل، يحيى بن سعيدالاموى او امام ابويوسف رحمهم الله نه د حديث روايت کوى.

او د هغه نه امام بخارى، امام مسلم، ذهلى، ابوزرعه، عبدالله بن احمد، عبدالاعلى بن واصل، ابن ابى الدنيا، عباس دورى رحمهم الله او يولوئ ډله روايت کوى. (۵)

امام ابوداؤد او امام ابن ماجه رحمهما الله د ده نه د امام ذهلى په واسطه روايت اخستې دې. (۶)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي ((صدوق)) (۷)

---

۱) (عمدة القارى (ج۱٤ص۲۰۰) وفتح البارى (ج۶ص۱۰٤) وشرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۸۰)-

۲) (عمدة القارى (ج۱٤ص۲۰۰)-

۳) (قوله: أبوهريرة رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا كتاب الجهاد باب قتال الذين ينتعلون الشعر رقم (۲۹۲۹) وكتاب المناقب باب علامات النبوة فى الإسلام رقم (۳۵۹۰،۳۵۸۷-۳۵۹۱) ومسلم كتاب الفتن باب لا تقوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر.... رقم (۷۳۱۰) وأبوداؤد أبواب الملاحم باب فى قتال الترک رقم (۴۳۰۳) والترمذى أبواب الفتن باب ماجاء فى قتال الترک رقم (۲۲۱۶) والنسائى كتاب الجهاد باب غزوة الترک والحبشة رقم (۳۱۷۹) وابن ماجه أبواب الفتن باب الترک رقم (۴۰۹۶، ۴۰۹۸)-

٤) (سير أعلام النبلاء (ج۱ص۶۳۷) وتهذيب الكمال (ج۱۱ص۴۵) تاريخ بغداد (ج۹ص۸۷)-

۵) (شيوخ او تلامذه د پاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۱۱ص۴۵-۴۶)-

۶) (تهذيب الكمال (ج٤ص۷۶)-

۷) (تاريخ بغداد (ج۹ص۸۸) وتهذيب الكمال (ج۱۱ص۴۶)-

امام ابوزرعه دمشقي رحمه الله فرمائي «سألت ابن نمير وابن أبي شيبة عنه، فأثنيا عليه، وذاكرت أحمد بن حنبل عنه بأحاديث، فعرفه، وأثنى عليه، وقال: صدوق، كان يطلب معنا الحديث» (١)

يعني دَ ابن نمير او ابن ابى شيبه نه ما دَ هغوى باره كښې تپوس اوكړو نو دې دواړو دَ سعيد بن محمد تعريف اوكړو. اودَ هغوى نه روايت شوى بعضو احاديثو باره كښې ما دَ احمد بن حنبل رحمه الله سره مذاكره اوكړه نو هغه دې اوپيژندلو.دَ هغه تعريف ئې اوكړو او وئې فرمائيل چه هغه صدوق دې،هغه به زمونږ سره سره حديث طلب كول.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائي «ثقة»(٢)

دې نه علاوه ابوحاتم (٣) علامه ذهبى (٤) او ابن حبان رحمه الله هم دَ دوى توثيق كړيدې. (٥)

ليكن په هغوى باندې څه نه څه دَ تشيع هم غلبه وه. (٦)

خو ډيرو ائمه رجالو دَ حديث دَ ده توثيق كړې دې نو دې په دې وجه ډير خطرناك نه دې. (٧)

دَامام بخارى نه علاوه امام مسلم،ابوداؤد اوابن ماجه رحمهم الله هم ددوى نه روايت اخستې دى.(٨)

دَ دوى انتقال په كال ٢٣٠ هـ كښې شويدې. (٩) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

٢-يعقوب: داابويوسف يعقوب بن ابراهيم بن سعد بن ابراهيم زهرى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره «كتاب العلم باب ماذكرفي ذهاب موسى صلى الله عليه وسلم..»لاندې تيره شوې ده.(١٠)

٣-أبي: داابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَ دوى مختصر تذكره «كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان...»(١١) لاندې او تفصيلى حالات «كتاب العلم» په مذكوره باب كښې راغلى دى. (١٢)

---

١) تهذيب الكمال (ج١١ص٤٦) وسير أعلام النبلاء (ج١٠ص٦٣٨)-
٢) (تاريخ بغداد (ج٩ص ٨٨) وحواله بالا-
٣ ) (تهذيب الكمال (ج١١ص٤٦) وتهذيب التهذيب (ج٤ص٧٧)-
٤ ) (الكاشف (ج١ص٤٤٣) وميزان الاعتدل (ج٢ص١٥٧) وسير أعلام النبلاء (ج١٠ص٦٣٧)-
٥ ) (تهذيب الكمال (ج١١ص٤٦) وتهذيب التهذيب (ج٤ص٧٧)-
٦ ) (تهذيب الكمال (ج١١ص٤٦) وتهذيب التهذيب(ج٤ص٧٧)وتعليقات تهذيب الكمال (ج١١ص ٤٦)-
٧) قال ابراهيم بن عبدالله بن ابراهيم المخزومي: كان سعيدالجرمي إذا قدم بغداد نزل على أبي، وكان أبوزرعة الرازي يجيئ، كل يوم ينتقي عليه ومعه نصف رغيف، وكان إذا حدث فجاء ذكر النبي صلى الله عليه وسلم سكت، وإذا جاء ذكر علي بن أبي طالب، قال: صلى الله عليه وسلم. انظر تاريخ بغداد (ج٩ص٨٨) وتهذيب الكمال (ج١١ص٤٦) وكشف البارى كتاب العلم (ج٣ص١٣٧)-
٨ ) (تهذيب الكمال(ج١١ص٤٥) والكاشف (ج١ص٤٤٣)-
٩ ) (سير أعلام النبلاء (ج١٠ص٦٣٨)-
١٠ ) (كشف البارى(ج٣ص٣٣١)-
١١ ) (كشف البارى (ج٢ص١٢٠)-
١٢ ) (كشف البارى (ج٣ص٣٣٣)-

۴- صالح: داابوصالح بن كيسان مدنى رحمه الله دې. دَ دوى حالات ((كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال)) لاندې تيرشوى دى.(۱)

۵- الاعرج: داابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنى قرشى رحمه الله دې. دَ دوى مختصر تذكره ((كتاب الإيمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم)) كښې راغلې.(۲)

۶- ابوهريرة: دامشهورصحابى حضرت ابوهريره رضى الله عنه دې، دَ ده حالات ((كتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې راغلى دى.

**قوله**: قال أبوهريرة رضى الله عنه: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا تقوم الساعة حتى تقاتلوا الترك صغار الأعين، حمر الوجوه، ذلف الأنوف، كأن وجوههم المجان المطرقة: حضرت ابوهريره رضى الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى قيامت به تر هغه وخته پورې نه قائميږى تركومې پورې چه تاسو دَ وړوستر ګو، سرو مخونو او هوارو پوزو والا تركيانو سره جنګ اونه كړئى لكه چه دَ هغوى مخونه پلن پلن ډهالونه دى. دلته په دې حديث كښې دَ دې خبرې تصريح راغله چه په تيرشوى حديث كښې قوماً راغلې وو هغې نه مراد ترك دى، بيا دَ تركو دَ نورو صفتونو ذكر دې چه هغوى دَ وړو ستر ګو والا دى، سره مخونه به ئې وى او دَ هغوى پوزې به هوارې وى.

دَ ذلف الانوف تحقيق: دَ **ذلف** ذال دَ معجمه په ضمه سره **أذلف** جمع ده او دَ **الأذلف** معنى دَ وړې او هوارې پوزې والا، په نورو الفاظوكښې چيټې پوزې والا هم وئيلى شى. (۳)

او **أنوف** جمع دَ **أنف** ده.لكه چه دَ **فلس** جمع **فلوس** ده، دَ دې معنى پوزه ده. پوزې ته **أنف** ځكه وائى چه په مخ باندې دَ ټولو نه ښكاره او وړاندې راوتلې څيز هم پوزه ده. او هر اول او وړاندې زيات شوى څيز ته **أنف** وائى.(۴)

**قوله**: ولاتقوم الساعة حتى تقاتلوا قوماً نعالهم الشعر: او قيامت به تر هغه وخته پورې قائم نشى تركوم وخت پورې چه تاسو يوداسې قوم سره جنګ اونه كړئى دَ چا څپلئى چه به دَ ويښتو وى.

دَ دې جملې تشريح په دَ ماقبل په حديث كښې راغلې ده.

---

۱ ) (كشف البارى (ج۲ص۱۲۱)-

۲ ) (كشف البارى (ج۲ص۱۱)-

۳ ) (عمدة القارى (ج۱۴ص۲۰۱) وفتح البارى (ج۹ص۱۰۵) وشرح الأبى والسنوسى على مسلم (ج۷ص۲۵۲)-

۴ ) (عمدة القارى (ج ۱۴ص ۲۰۱)قال الخليل: أنف اللحية طرافها وأنف كل شئ أوله... وأنف الجبل أوله وما بذالك منه.انظر معجم مقابيس اللغة مادة أنف (ج ۱۴ص ۲۰۰)-

**په حديث كښې ذكرشوى صفات د كوم قوم دى؟** د حضرت عمرو بن تغلب او حضرت ابوهريره رضي الله عنهما د حديث نه معلوميږى چه هغه قوم د چا مخونه چه د پلنوډهالونو په شان وى او د كوم قوم څپلئى چه د ويښتو وى په دې كښې فرق دې او د دواړو مصداق جدا جدا قومونه دى.ځكه چه حضور ﷺ دواړه قومونه جدا جدا مستقلاً ذكر كړى دى. نو د حديث دوه جزونه دى:

**((إن من أشراف الساعة أن تقاتلوا قوما ينتعلون نعال الشعر))** او **((وإن من أشراط الساعة أن تقاتلوا قوما عراض الوجوه، كأن وجوههم المجان المطرقة)) ((كما فى حديث عمرو بن تغلب رضى الله عنه))**

نو حافظ ابن حجر اود بعض نورو محدثينو رائې ده چه دا د دوو مختلفو ډلو يا قومونو طرف ته اشاره ده. د حديث اولنئ جمله تركوسره متعلق دې، د كوم تصريح چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث كښې هم موجود ده اود دوئمې جملې تعلق بابك خرمى فرقې سره ده.(١)

**بابک الخرمی اود هغه فرقه:** د خليفه مامون الرشيدپه زمانه كښې يو سړې تيرشوې دې. د كوم نوم چه بابك وو او خرمي – بضم ډوله وتشديد ثانيه (٢) سره مشهور وو. دا د يو زنديق قسم فرقې مشر وو، په كوم كښې چه محرمات حلال وو. د مامون په زمانه كښې دې فرقې ښه غلبه او قوت حاصل كړو اود عجم ډير ښارونه مثلاً "طبرستان" او "رى" وغيره باندې قابض شو او آخر په كال ٢٢٢هـ كښې دخليفه معتصم په زمانه كښې دې جهنم ته اورسيدلو. (٣)

امام اسماعيلى د محمدبن عباد په طريق سره نقل كړى دى هغه فرمائى چه ماته دا خبره رارسيدلې ده چه د بابك د ملګرو څپلئى د ويښتو وې. (۴)

د اسماعيلى د دې طريق نه استدلال كولو سره حافظ ابن حجر پورتنې قول پيش كړيدې. خود علامه عينى او حافظ قسطلانى رحمهما الله ميلان هغه طرف ته دې چه د دواړو جملو مصداق هم يو قوم يعنى ترك دى. (۵)

د مسلم شريف د بعض رواياتو نه هم د علامه عينى وغيره د رائې تائيد كيږى خاص كر د حضرت ابوهريره رضي الله عنه داروايت چه د سهيل عن أبيه په طريق سره مروى دې، دهغې الفاظ دادى:

**((لا تقوم الساعة حتى يقاتل المسلمون الترك قوما وجوههم كالمجان المطرقة، يلبسون الشعر، ويمشون فى الشعر)) (۶)**

---

١ ) (فتح البارى (ج٦ص ١٠٤) وعمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٠)-

٢ ) (قال الإمام ياقوت الحموى: خُرَّم ..... وهو رستاق بأردبيل؟ قال نصر: وأظن الخرّمية الذين كان منهم بابك الخرّمى نسبوا إليه وقيل:الخرمية فارسى معناه:الذين يتبعون الشهوات ويستبيحونها. معجم البلدان (ج٢ص ٣٦٢)-

٣ ) (فتح البارى (ج٦ص ١٠٤) وعمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠١)-

٤ ) (حواله بالا-

٥ ) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٠) وإرشاد السارى (ج٥ص ١٠٦)-

٦ ) (صحيح مسلم كتاب الفتن باب لاتوم الساعة حتى يمر الرجل بقبر أخيه... رقم (٧٣١٣)-

اوګورئی په دې روایت کښې د ترکو همدغه صفت بیان کړیشویدې چه هغوی ویښته اغوندی او په ویښتو کښې ګرځی، یعنی د هغوی په بدنونوباندې د ویښتو لباس او په پښوکښې د ویښتو څپلئی به وی.
خو په دې دواړو قسم روایتونوکښې داسې تطبیق ورکولې شی چه د ویښتو اغوستل ترک او غیر ترک په مینځ کښې مشترك څیز دې. کله ئی د ترکو د علامت په توګه ذکر کړو او کله د نورو قومونو د علامت په توګه لبس شعر ذکر کړې شو (۱)
په دې وجه په روایاتوکښې هیڅ منافات نشته اونه د یو راجح او بل مرجوح ګرځولو ضرورت دې.
**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت د باب وړاندینې حدیث په مقابله کښې زیات ښکاره دې ځکه چه هلته د "ترك" تصریح نشته خو دلته د "ترك" تصریح هم موجود ده.(۲)
د باب په دواړو روایتونوکښې حضور د ترکیانو سره جنګ کولو ذکر فرمائیلې دې نو که موقع راشی نو هغوی سره په جنګ کولو کښې هیڅ بدیت نشته.
**د ترکو متعلق احادیثوباره کښې یو وضاحت:** نبی اکرم ﷺ په مختلفو احادیثوکښې د ترکو په واضح الفاظوکښې خرابې بیان کړیدې او هغوی سره ئی د جنګ فضیلت خودلې دې. د دې همدغه وجه ده چه هغه وخت هغوی د کفر او شرك په تیارو کښې ډوب شوې وو لیکن د نن معامله څه بل څه ده چه هغوی ټول مسلمانان شوی دی، په دې وجه مناسب همدغه ده چه د هغوی د بدنامئی علامت لرې کړې شي.
حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه ماته د یو قوم متعلق دا علم نشته چه هغه ټول په ټول مسلمانان شوی وی، سوا د عربو، ترکو او افغانیانو، نو په دوی کښې چه چا هم کفر اختیارکړو نو هم د اسلام د قبلولو نه پس ئی کړیدې یعنی په شروع کښې هغوی هم مسلمانان وو. په فیض الباری کښې دی:
((وإنما وردت الأحاديث في ذمهم لكونهم كفاراً إذ ذاك، أما اليوم فإنهم أسلموا جميعًا، فينبغي أن يرتفع عنهم ميسم السوء، ولا أعرف قوما أسلموا كلهم إلا العرب والترك والأفغان، فإنه لم يكفر من كفر منهم إلا بعد إسلامه))(۳)

## ۹۵- بَاب: قِتَالِ الَّذِينَ يَنْتَعِلُونَ الشَّعَرَ

**د ترجمة الباب مقصد:** اوس په تیرشوی باب کښې دا خبره راغلې ده چه حافظ صاحب د دې امر قائل دې چه هغه خلق کوم چه د ویښتو څپلئ اچوی د ترکو نه علاوه خوك بل قوم دې. په دې صورت کښې به د ترجمة الباب مقصد دا وی چه تیر شوې باب د ترکیانو سره د

۱) (تکملة فتح الملهم (ج۶ص۲۲۷)-
۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۲۰۱)-
۳) (فیض الباری (ج۳ص۴۳۸)-

جنګ کولو باره کښې وو چه یوه زمانه به داسې راشي چه تاسو به ترکیانو سره جنګ کوئی او دا به ((اشراط الساعة)) (دَ قیامت دَ علامونه) وی.

اوس دلته دا ترجمه قائمولو سره دا خبره فرمائی چه دَ قیامت دَ علامونه یوه داهم ده چه مسلمانان به دَ ویښتو څپلنی اچونکو سره جنګ کوی.

خو دَ علامه عینی او حافظ قسطلانی رحمهما الله رائې خودا وه چه چه په تیر شوی باب کښې ذکر کړ یشوی صفوتونه هم دَ یو قوم یعنی ترکو دی نو موجوده باب به دَ اشکال نه خالي نه وی ځکه داسې به ترجمه مکرر یعنی په دوئم ځل شي. ښکاره خبره ده چه کله ترك او دَ ویښتو څپلنی اچونکی خلق یو قوم دې نو دَ نوې سر نه دَ ترجمه قائمولوهیڅ ضرورت نشته؟ (۱)

دَ دې اشکال (تکرار ترجمه) ختمولوکوشش خو علامه عینی ښه کړیدې لیکن دَ دې هیڅ فائده نشته، مثلاً فرمائی:

((أی هذا باب فی بیان قتال القوم الذین ینتعلون الشعر، وهم أیضًا من الترك کما ذکرناه، ولکن لما روی الحدیث المذکور فی الباب السابق عن أبی هریرة رضی الله عنه من وجه آخر عقدله هذه الترجمة لأن لفظ أبی هریرة فی الحدیث الماضی: «لاتقوم الساعة حتی تقاتلوا قومًا نعالهم الشعر»، وقع فی آخر الحدیث، وهو فی هذا الحدیث وقع فی صدره)) (۲)

یعنی دا باب دَ هغه خلقو سره دَ جنګ په باره کښې دې چه دَ ویښتو څپلنی به نې اچولې وی او هغه هم دَ ترکونه دی لکه چه مونږ ذکر کړل، لیکن امام بخاری رحمه الله دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه په وړاندینی باب کښې ذکر شوې حدیث دلته ذکر کړو نو دَ دې دَ پاره نی جدا ترجمه قائمه کړه ځکه چه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ حدیث دا الفاظ ((لاتقوم الساعة حتی تقاتلوا قومًا نعالهم الشعر)) دَ تیرشوی باب دَ حدیث په آخرکښې راغلې وو او همدغه الفاظ دَ حدیث باب په شروع راغلی دی.

ګورئې دَ دې خبرې په ظاهره هیڅ فائده نه ښکاری چه دَ یو حدیث په یو طریق کښې یوه جمله دَ حدیث په شروع کښې وی او هم هغه جمله په بل طریق کښې آخره کښې راغلې وی اودَ دې دَ پاره دَ جدا باب قائمولو ضرورت پریوځی. په دې وجه حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا کاندهلوی رحمه الله فرمائی ((وهذا کما تری لایجدی شیئا))(۳)

حضرت کاندهلوی رحمه الله نور فرمائی چه زما په نزد ډیر بهتردا دی چه اووئیلې شی چه دَ امام بخاری دا مستقل ترجمه دَ دې خبرې اشارې کولو دپاره فرمائیلې ده چه دَ ویښتو څپلنی اچونکو په مصداق کښې اختلاف دې، لکه چه په تیرشوی باب کښې دَ هغې څه لږ ډیر تفصیل راغلې دې او یوقول داهم دې چه دا دَ خوارجو سره تعلق لرونکې یو قوم دې. (۴)

---

۱) (الأبواب والتراجم (ج۱ص۱۹۹)-
۲) (عمدة القاری (ج۱٤ص۲۰۲)-
۳) (الأبواب والتراجم (ج۱ص۱۹۹)-
٤) (حواله بالا-

دا خبره هم کولې شي چه مصنف رحمه الله دلته کومه ترجمه قائمه کړیده دا د ترکود ترجمه نه عام ده یعنی یو خو ترک داسې قسم څپلئی اچوی په کومو چه ویښته وی او که نور خلق هم داسې وی نو هغوی سره به هم جنګ کولې شي.

[۲۷۷۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۱) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعَرُ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ

## تراجم رجال

۱- علي بن عبدالله: دا امام علی بن عبدالله ابن المدینی رحمه الله دې. د ده حالات ((کتاب العلم باب الفهم في العلم)) لاندې تیرشوی دی. (۲)

۲- سفیان: دا امام سفیان بن عُیَینه رحمه الله دې، د دوی حالات ((بدء الوحی)) کښې د ړومبی حدیث په ضمن کښې مختصراً (۳) او ((کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا....)) په ذیل کښې تفصیلاً راغلی دی. (۴)

۳- زهري: دا مشهور امام حدیث ابن شهاب زهری رحمه الله دې. د دوی تذکره ((بدء الوحی)) د دریم حدیث په ذیل کښې اجمالاً راغلې ده. (۵)

۴- سعید بن المسیب: دا امام التابعین حضرت سعید بن المسیب قرشی مخزومی رحمه الله دې. د دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب من قال: إن الإیمان هو العمل)) لاندې راغلې ده. (۶)

۵- أبي هریرة: وړاندینې سند اوګورئی (۷)

د حدیث مکمله تشریح اوس په تیرشوی باب کښې بیان کړیشوه.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث ترجمه سره مطابقت واضح دې چه په دې جمله کښې دې: ((لاتقوم الساعة حتی تقاتلوا قوما نعالهم الشعر))-

قَالَ سُفْيَانُ وَزَادَ فِيهِ أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً صِغَارَ الْأَعْيُنِ ذُلْفَ الْأُنُوفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ [ر: ۲۷۷۰]

---

۱) (قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث مر تخريجه آنفا في الباب السابق-
۲) (کشف الباری (ج۳ص۲۹۷)-
۳) (کشف الباری (ج۱ص۲۳۸)-
٤) (کشف الباری (ج۳ص۱۰۲)-
۵) (کشف الباری (ج۱ص۳۲۶)-
۶) (کشف الباری (ج۲ص۱۵۹)-
۷) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۹)-

**د مذكوره عبارت مقصد:** دامام بخارى رحمه الله مقصد د دې عبارت نه دا دې چه سفيان بن عيينه دَ حضرت ابوهريره رضى الله عنه دا حديث په بل طريق باندې نقل كړيدې. يو طريق خو هغه دې چه دَ باب په شروع كښې تيرشو او دوئم دَ **أبوالزناد عن الاعرج** دې. او په دې دوئم طريق كښې دَ ابوالزناد نه دا اضافه هم شويده. ((**صغار الأعين، ذلف الأنوف، كأن وجوههم المجان المطرقة**)) چه دَ هغوى سترګې به وړې او پوزې چتې وى لكه چه دَ هغوى مخونه پلن پلن ډهالونه دى.
بيا دونمه خبره دا ده چه دا تعليق نه دې لكه چه صاحب التلويح علامه علاء الدين مغلطائى رحمه الله ته دا مغالطه لګيدلې ده بلكه سابقه سند سره موصول دې. (١)

**دَ "رواية" مطلب:** حافظ ابن حجر فرمائى چه دَ حضرت سفيان بن عُيينه دا قول ((**رواية**))**عن النبى صلى الله عليه وسلم** په عوض كښې دې. اسماعيلى دا روايت دَ ((**محمد بن عبادة عن سفيان**)) په طريق سره په دې الفاظو نقل كړيدې.((**عن النبى صلى الله عليه وسلم**)) دغه شان دَ تيرشوى باب دوئم حديث كوم چه دَ الاعرج نه مروى دې په دې كښې هم ((**قال رسول الله صلى الله عليه وسلم**)) الفاظ وارد شوى دى.(٢)

دَ حافظ دَ دې ارشاد خلاصه دا شوه چه حضرت ابوهريره رضى الله عنه كوم دا الفاظ ((**صغار الأعين، ذلف الأنوف، كأن وجوههم المجان المطرقة**)) اضافه كړى دى دا اضافه ئى دَ خپل طرف نه نه ده كړې او دا دَ هغه خپل قول نه دې بلكه دا الفاظ هم دَ نبى اكرم صلى الله عليه وسلم نه مروى دى او دَ هغوى نه ئى مرفوعا نقل كوى، نو حاصل دا چه ((رواية)) لفظ دَ حديث مرفوع كيدلو دَپاره راوړلې شو. او علامه كرمانى رحمه الله دَ دې لفاظ تشريح په بل انداز كښې فرمائيلې. هغوى ليكى:

((**قوله: "رواية"، بالنصب، أى زاد على سبيل الرواية، لا على طريق المذاكرة، أى قاله عن النقل والتحمل، لاعند القال والقيل**)) (٣)

يعنى دَ ((رواية)) لفظ منصوب دې او مطلب دا دې چه هغه دا زياتوالې روايت كولو سره نقل كړيدې،صرف دَ حديث دَ مذاكرې په توګه نه، يعنى هغوى دا اضافه نقل و اداء حديث په وخت كښې ارشاد فرمائى.

خو په تيرشوى او زمونږ دَ دې باب په روايت كښې فرق دې چه په دې كښې ((**حمر الوجوه**)) زياتوالې مروى دې او ((**صغار الأعين**)) الفاظ په دې كښې نشته، دَ كوم اضافه چه زمونږ دَ وړاندې په دې باب-كښې موجود دى.(٤)

---

١) (فتح البارى (ج٦ص١٠٥) وتغليق التعليق (ج٣ص٤٤٧)-
٢) (فتح البارى (٦ص١٠٥) وفتح المغيث بشرح ألفية الحديث (ج١ص١٤٤) النوع الرابع من الفروع السبعة
٣) (عمدة القارى (ج١٤ص٢٠٢) وشرح الكرمانى (ج١٢ص١٧٩)-
٤) (فتح البارى (ج٦ص١٠٥)-

## ٩٦- بَاب: مَنْ صَفَّ أَصْحَابَهُ عِنْدَ الْهَزِيمَةِ وَنَزَلَ عَنْ دَابَّتِهِ وَاسْتَنْصَرَ

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب لاندې امام بخارى دا خودلى دى كه سرې د پښيمانتيا او ماتى په وخت كښې خپل هغه ملګرى چه روستوشوى نه دى د نوې سر نه صف بندى اوكړى، د سورلئى نه راكوز شى او د دښمن په مقابله كښې د الله تعالى نه مدد اوغواړى نو د دې اصل په سنت كښې موجود دې. اود باب لاندې مصنف رحمه الله د غزوه حنين مشهوره واقعه بيان كړيده.(١)

ليكن امام بخارى رحمه الله چه كوم صورت دلته بيان كړيدې دا څه قانون نه دې چه هم داسې به كولې كيږى لكه چه نبى اكرم ﷺ په جنګ حنين كښې كړى وو. بلكه د مصنف رحمه الله مقصد دا دې كه چرې داسې د هزيمت نه پس چرته دوباره د حملې كولې اهتمام وى نو په دې كښې هيڅ نقصان نشته اود دې اصل په سنت كښې موجود دې نو په دې وجه د دې خبرې هم ګنجائش شته.

[٢٧٧٢] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ الْحَرَّانِيُّ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ(٢) وَسَأَلَهُ رَجُلٌ أَكُنْتُمْ فَرَرْتُمْ يَا أَبَا عُمَارَةَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنَّهُ خَرَجَ شُبَّانُ أَصْحَابِهِ وَأَخِفَّاؤُهُمْ حُسَّرًا لَيْسَ بِسِلَاحٍ فَأَتَوْا قَوْمًا رُمَاةً جَمْعَ هَوَازِنَ وَبَنِي نَصْرٍ مَا يَكَادُ يَسْقُطُ لَهُمْ سَهْمٌ فَرَشَقُوهُمْ رَشْقًا مَا يَكَادُونَ يُخْطِئُونَ فَأَقْبَلُوا هُنَالِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَابْنُ عَمِّهِ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَقُودُ بِهِ فَنَزَلَ وَاسْتَنْصَرَ ثُمَّ قَالَ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ ثُمَّ صَفَّ أَصْحَابَهُ [ر: ٢٧٠٩]

## تراجم رجال

د حديث باب داسندبالكل په هغه حضراتوباندې مشتمل دې ((كتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان)) كښې هم تيرشوې دې او د ټولو رجالو د سند حالات هم راغلى دى.(٣)

**تنبيه:** په حديث باب كښې ذكر كړيشوې واقعې تفصيل (كتاب المغازى) كښې "غزوه حنين"(٤) لاندې راغلې دې، دغه شان د حديث د بعضو جملو او اجزاؤ تشريحات روستو هم په (كتاب الجهاد) كښې ((باب من قاد دابة غيره فى الحرب)) لاندې ذكر كړې شوې دې. خو چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې كوم حديث ذكر كړيدې په هغې كښې د څه نورو جملو اضافه هم ده. د هغې تشريح مونږ دلته لاندې بيان كوو.

---

١ ) (فتح البارى (ج ٦ص ١٠٥)-
٢ ) (قوله: البراء رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه فى كتاب الجهاد باب من قاد دابة غيره فى الحرب-
٣ ) (كشف البارى (ج٢ص ٣٢٦-٣٧٦)-
٤ ) (كشف البارى كتاب المغازى (ص٥٣٣-٥٣٥)-

**قوله: قال: لا، والله، ما ولى رسول الله صلى الله عليه وسلم، ولكنه خرج بان أصحابه وخفافهم حسرا، ليس بسلاح:** حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائى نه، قسم په الله! رسول الله ﷺ نه ده شاګړې خو د هغوى كم عمره اصحاب چا سره چه وسله نه وه هغوى ورسره راغلې وو، نو هغوى تلې وو.

**دَ "خفافهم" تحقيق:** زمونږ په هندى نسخوكښې ((ولكنه خرج شبان أصحابه)) نه پس ((وأخفافهم)) لفظ وارد شوې دې او اخفاف جمع دَ خفيف ده.(۱)

بيا چه كومې نورې نسخې دى په هغې كښې دوه الفاظ وارد شوى دى اخفاء او خفاف، نو په اكثرو نسخوكښې خو اخفاء ده چه دَ خف جمع ده او دَ خفيف په معنى كښې دې. او دې نه هغه خلق مراددى چه خالى لاس وو اوهغوى سره څه وسله نه وه. يعنى (حسر اليس معهم سلاح)(۲) او دَ ابوذر، مستملى او حموى نسخوكښې خفافهم وارد شوې. (۳) چه دَ خفيف جمع ده او مراد ترينه هم دغه دى كوم چه پورته ذكر شو، هغه خلق كومو سره چه وسله نه وه.

خلاصه دا شوه چه په درې قسمه نسخوكښې درې قسمه الفاظ وارد شوى دى. كومو كښې چه يو ((اخفافهم)) دې كمافى النسخ الهندية خو په اكثرو نسخوكښې دوه الفاظ يعنى ((أخفائهم)) دې او بعض كښې ((خفافهم)) راغلې.

**دَ "حسرا" تحقيق:** حسر جمع دَ حاسر ده اوحاسرمشتق دَ حسر نه دې. دَ كوم معنى چه كولاويدلو او كولاوولو ده. (۴) ليكن دلته مرادحسراخالى لاس كيدل دىيعنى هغوى سره وسله وغيره نه وه. (۵)

دا هم وئيلې شوى دى چه دَ حاسر معنى دا ده چه هغه سړې چا سره چه زغره او ډهال نه وى.(۶) اودا لفظ دَ حاليت په بنا منصوب دې او دَ دې ذوالحال ((شبان أصحابه)) دى. (۷)

**دَ "ليس بسلاح" جملې نحوى تحقيق:** دَ حديث جملې ((ليس بسلاح)) كښې دوه روايتونه دى او دَ دواړو روايتونو په اعتبار سره تركيب نحوى هم مختلف كيږى:

① اكثرو نسخو او رواياتوكښې ((ليس بسلاح)) باء سره دې نو په دې صورت كښې دَ ليس اسم محذوف دې او تقدير عبارت داسې دې: ((ليس أحدهم متلبسا بسلاح)) (۸)

---

۱) (انظر صحيح البخارى(ج۱ص۴۱۰) طبع قديم كتب خانه كراچى)-
۲) (عمدة القارى (ج۱۴ص۲۰۳) وشرح القسطلانى (ج۵ص۱۰۶)-
۳) (حواله بالا وأعلام الحديث(ج۲ص۱۴۰۷) النهاية فى غريب الحديث (ج۲ص۵۴) وتاج العروس (ج۶ص۹۲-۹۳)-
۴) (مصباح اللغات مادة حسر-
۵) عمدة القارى (ج۱۴ص۲۰۳) وشرح الكرمانى (ج۱۲ص۱۸۰) وأعلام الحديث للخطابى (ج۲ص۱۴۰۷)-
۶) (حواله بالا-
۷) (حواله بالا و شرح القسطلانى (ج۵ص۱۰۶)-
۸) (حواله بالا و شرح الكرمانى (ج۲ص۱۸۰)-

② بعضو رواياتو کښي ((حسرا، ليس سلاح)) مروى دي يعنى بغيرد باء او د سلاح د رفع سره نو دا د ليس اسم دي او د دې خبر محذوف دې. يعنى ((ليس سلاح لهم)) (١)

**قوله: فأتوا قوما رماة جمع هوازن وبنى نصر ما يكاد يسقط لهم سهم:** هغوى د قبيله هوازن او بنو نصر مخې ته راغله (هغوى داسې مشاق غشى ويشتونكى وو چه) د هغوى به يو غشې هم خالى نه تلو.

په پورته ذکر شوى عبارت کښي ((رماة)) کوم لفظ وارد شويدې هغه د ((رامٍ)) جمع ده د څه معنى چه ورغورزونكى ده. او دا لفظ خو د ((قوما)) په صفت کښې واقع کيدونکې دې نو په دې وجه منصوب دې او د ((قوما)) د نصب وجه مفعوليت دې. (٢)

او په جمع هوازن او بنى نضر کښې دوه احتماله دى:

① دا دواړه على سبيل البدلية منصوب وى او قوماً مبدل منه وى.

② چه دا دواړه الفاظ مرفوع وى او د مبتدائي محذوف خبرواقع وى يعنى ((هم جمع هوازن وجمع بنى نصر)) نو بهر حال دواړه صورتونه جائز دى. (٣)

**قوله: فرشقوهم رشقا ما يكادون يخطئون:** رشق د باب نصر نه دې، د دې معنى غشي ويشتل او ورغورزول دى. او علامه داؤدي رحمه الله فرمائى چه د حديث د دې جملې مطلب دا دې چه هغوى به ټول په يوځل په مسلمانانو باندې غشى اووروى او د غشو باران به پرې اوكړى. (٤)

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې ((فنزل واستنصر)) (٥) چه نبى كريم ﷺ د خپلې سورلئى (سپين قچر) نه راكوز شو اود الله تعالى نه ئى فتح او امداد اوغوښتلو. اود جنګ په شروع کښې هغوى د ماتى سره مخ شوى وو او همدغه د امام بخارى رحمه الله هم مقصد وو.

## ٩٧- بَاب: الدُّعَاءِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ بِالْهَزِيمَةِ وَالزَّلْزَلَةِ

**د ترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى رحمه الله دا فرمائى چه د وخت امام كه د جنګ په موقع د مشركانو د هزيمت او د هغوى د متزلزل كيدو دعا كوى او د هغوى خلاف بددعا كوى نو دا فعل جائز دې اود نبى عليه السلام نه ثابت دې. (٦)

اود دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله پنځه احاديث ذكر كړى دى لكه چه اوس به ستاسو وړاندې راشى.

١) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٣) وشرح الكرمانى (ج ١٢ص ١٨٠)-
٢) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٣) وإرشاد السارى (ج٥ص ١٠٦)-
٣) (حواله بالا-
٤) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٣) وأعلام الحديث للخطابى (ج٢ص ١٤٠٧)-
٥) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٣) وفتح البارى (ج٦ص ١٠٥)-
٦) (عمدة القارى (ج ١٤ص ٢٠٣) وشرح القسطلانى (ج٥ص ١٠٧)-

[٢٧٧٣] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عِيسَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(١) قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْأَحْزَابِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَلَأَ اللَّهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا شَغَلُونَا عَنِ الصَّلَاةِ الْوُسْطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ [٣٨٨٥، ٤٢٥٩، ٦٠٣٣]

## تراجم رجال

١- ابراهيم بن موسى: دا ابواسحاق الفراء ابراهيم بن موسى بن يزيد التميمى الرازى رحمه الله دي(٢)

٢- عيسى: دا ابوعمرو بن يونس بن ابى اسحاق السبيعى كوفى رحمه الله دي. (٣)

**٣- هشام، دلته د هشام نه څوک مراد دي؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله ته دلته دا وهم اوشو چه هغه دا اوفرمائيل چه د هشام نه دستوائى مراد دي او بيا ئي په امام اصيلى باندي رد اوكړو چه د دي خبري قائل دي چه د هشام نه ابن حسان مراد دي، فرمائى:

((وزعم الأصيلى أنه ابن حسان، ورام بذلك تضعيف الحديث فأخطأ من وجهين.....))(٤)

يعنى د اصيلى ګمان دا دي چه هغه ابن حسان دي او د اصيلى مقصد د دي نه حديث ضعيف ثابتول دي نو هغه په دوه قسمه غلطى اوكړه.

مطلب دا شو چه د حافظ ابن حجر رحمه الله په قول يوه غلطى د اصيلى نه دا اوشوه چه هغه دا اوونيل چه د هشام نه مراد ابن حسان دي. دوئمه غلطى دا اوشوه چه هغه داسي د حديث ضعيف ثابتولو كوشش اوكړو.

دغه شان حافظ ابن حجر فرمائى چه كرمانى دا بهادرى كړي ده چه دائي ونيلى چه د هشام نه مراد ابن عروه دي.(٥)

خود حافظ ابن حجر رحمه الله پورتني تنقيد په دواړو حضراتو محدثينو (يعنى اصيلى او كرمانى) باره كښي صحيح نه دي. دلته وهم او مغالطه هم پخپله هغه ته شويده.

علامه عينى رحمه الله حافظ صاحب دلته د لاس نه كلك نيولي او فرمائيلى دى چه بهادرى خو پخپله حافظ كړيده چه هشام ئى دلته دستوائى ګرځولي دي حالانكه هغه دستوائى نه دي بلكه ابن حسان دي لكه څنګه چه اصيلى ونيلي وو. حافظ جمال الدين مزى رحمه الله په (تحفة

---

١) (قوله: على رضى الله عنه: الحديث: أخرجه البخارى أيضًا كتاب المغازى باب غزوة الخندق رقم (٤١١١) وكتاب التفسير سورة البقرة باب حافظوا على الصلوات.... رقم (٤٥٣٣) وكتاب الدعوات باب الدعاء على المشركين رقم (٦٣٩٦) ومسلم كتاب الصلاة باب الدليل لمن قال: الصلاة الوسطى هى صلاة العصر رقم (١٤٢٠) والترمذى أبواب التفسير باب ومن سورة البقرة رقم (٢٩٧٨) وأبواب الصلاة باب وقت صلاة العصر رقم (٤٠٩) والنسائى كتاب الصلاة باب المحافظة على صلاة العصر رقم (٤٧٤) وابن ماجه أبواب الصلاة باب المحافظة على صلاة العصر رقم (٦٨٤)-

٢) (د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجيله-

٣) (د دوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الأذان باب من صلى بالناس فذكر حاجة فتخطاهم-

٤) (فتح البارى (ج٦ص١٠٦)-

٥) حواله بالا-

الاشراف» (١) كښې دوه ځل (٢) دَدې خبرې تصريح كړيده چه دَهشام نه مرادابن حسان دې. (٣)
علامه كرمانى رحمه الله هم دَ جزم سره نه دى فرمائيلى چه هشام نه هم ابن عروه مراد دې بلكه
هغه داسې وائى: «الظاهر أنه ابن حسان، لكن المناسب لما مرّ فى باب شهادة الأعمى هشام بن عروة» (٤)
په قول دَ علامه عينى رحمه الله دراصل علامه كرمانى رحمه الله ته دا مغالطه او دهوكه په دې وجه
اوشوه چه (كتاب الشهادات) كښې امام بخارى رحمه الله يو روايت «عيسى بن يونس عن هشام عن
أبيه عروة» (٥) په طريق نقل كړى دى. نو علامه كرمانى رحمه الله همدغه اوګنړل چه دلته هم دَ
هشام نه هم ابن عروه مراددې حالانكه حقيقت دَ دې نه خلاف دې او دَ دې نه په قول دَعلامه
عينى دَ علامه كرمانى بهادرى نه ښكاره كيږى، فرمائى:
«ولم يظهر منه تجاسر لأنه لم يجزم أنه هشام بن عروة وإنما غرّته رواية عيسى بن يونس عن هشام عن أبيه عروة
فى الباب المذكور، فظن أنه ههنا أيضا كذلك» (٦)
**دَ حافظ ابن حجرخبردارى:** مونږ پورته دَ حافظ ابن حجر رحمه الله باره كښې دا اووئيل چه هغه ته
دَ هشام بن حسان متعلق وهم پيښ شوى دې چه هغه هشام دستوائى ګرځولې دې. دا
معامله خو دَ (كتاب الجهاد) متعلق ده ليكن چه كله هغه (كتاب المغازى) ته اورسيدو نو
هغه خبردار شو دا ئې اومنله او دَدې خبرې تصريح ئى اوكړه چه داهم هشام بن حسان دې.
ليكى: «هشام: كنت ذكرت فى الجهاد أنه الدستوائى، لكن جزم المزى فى الأطراف بأنه ابن حسان، ثم وجدته
مصرحا به فى عدة طرق، فهذا المعتمد» (٧)
دغه شان په (كتاب الدعوات) كښې هم هغوى دلته دَذكرشوى موقف نه خپله رجوع بيان كړيده (٨)
**آيا هشام بن حسان ضعيف راوى دې؟:** پورته چه مونږ دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په حواله دَ امام
اصيلى رحمه الله كوم موقف نقل كړې وو چه هغوى حديث باب دَ هشام بن حسان دَ وجه نه
ضعيف ګرځولې دې نودَ امام اصيلى دَ دې موقف جواب حافظ رحمه الله پخپله وركړيدې.
هغه فرمائى دَ هشام بن حسان دَحفظ باره كښې سره دَ دې چه بعضو حضراتو كلام فرمائيلې
ليكن چاهم هغه صرف دَ حفظ دَ وجه نه هغه مطلقا ضعيف نه دى ګرځولې بلكه دَ هغه په
بعضو شيوخوكښې هغه ته ضعيف وئيلى. بيا دَ هغه ټولو ائمه رجال و محدثين په دې خبره

١) انظر تحفة الأشراف (ج٧ص٤٢٩-
٢) (قال العينى رحمه الله فى العمدة (ج١٤ص٢٠٣): وكذا نص عليه الحافظ المزى فى الأطراف فى موضعين كما تذكره عن قريب. إلا أن المزى رحمه الله صرح: "ابن حسان" فى ثلاثة مواضع. انظر تحفة الأشراف (ج٧ص٤٢٩-٤٣٠)
٣) عمدة القارى (ج١٤ص٢٠٣) وشرح القسطلانى (ج٥ص١٠٧)-
٤) (شرح الكرمانى (ج١٢ص ١٨١)-
٥) (صحيح البخارى كتاب الشهادات باب شهادة الأعمى ... رقم (٢٦٥٥)-
٦) (عمدة القارى (ج١٤ص٢٠٣)-
٧) (فتح البارى (ج٧ص٤٠٥)-
٨) (فتح البارى (ج١١ص١٩٥)-

کښې اتفاق دې چه د باب په حدیث کښې چه کوم شیخ دې یعنی محمد بن سیرین رحمه الله د هغه باره کښې دا ثبت دی. سعید بن ابی عروبه (۱) فرمائی چه د ابن سیرین نه په روایت کښې د هغه په شاګردانوکښې د هشام نه څوك احفظ نه وو. او یحیی القطان فرمائی چه هشام بن حسان د محمد بن سیرین باره کښې ثقه وو. هغه نورفرمائی چه هغه د ابن سیرین باره کښې زما په نزد عاصم الاحول او خالد الحذاء نه بهتراوخوښ دې.(۲) او امام علی ابن المدینی (۳) فرمائی امام یحیی القطان دهشام بن حسان د امام عطاء نه روایت شوی احادیث به ضعیف ګرځول خو زمونږ اصحابو به هغې ته ثبت وئیل. نور فرمائی چه پاتې شو هغه احادیث کوم چه هغه د محمد بن سیرین نه روایت کوی نو هغه صحیح دی او یحیی بن معین رحمه الله فرمائی چه د هشام بن حسان د دې احادیثونه انکار نشی کولې کوم چه هغه د عطاء، عکرمه او حسن بصری رحمه الله نه روایت کوی.(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله د امام یحیی بن معین رحمه الله د پورته ذکر شوی قول جواب ورکولو سره فرمائی چه امام احمدخودا فرمائی چه ته دهغه د هرقسم څیز (روایت) نه انکار اوکړه نو دا به مومې چه یا خو به ایوب هغه روایت کړې وی او یا عوف (۵) یعنی د هغه متابعت به یو نه یو خامخا کړې وی. ابن عدی رحمه الله فرمائی چه د هغه احادیث مستقیم دی ما په هغې کښې هیڅ منکر شئ نه دې لیدلې.(۶)

پاتې شو عطاء نو په صحیحینو کښې د عطاء نه یو روایت نشته، البته د عکرمه نه په صحیح بخاری کښې د هغه روایات شته لیکن ډیر کم دی او په هغې باندې متابعت هم کړیشویدې. والله اعلم.(۷)

د حافظ صاحب د دې اوږد جواب خلاصه دا شوه چه اولاً خو هشام بن حسان مطلقًا سئ الحفظ او ضعیف راوی نه دې او ثانیًا یوازې په دې بنیاد د هغوی روایات نشی ردکولې.

خاصکر چه هغه دمحمدبن سیرین نه روایت کښې ثقه او ثبت وی. کما صرح به ائمة الرجال وحفاظ الحدیث

۴- **محمد:** دا امام، شیخ الاسلام ابوبکر محمد بن سیرین انصاری بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب اتباع الجنائز من الإیمان)) لاندې تیره شویده.(۸)

---

۱ ) (تهذیب الکمال (ج۳۰ ص۱۸۷)-
۲ ) (تهذیب الکمال (ج۳۰ص۱۸۶)وفتح الباری (ج۱۱ص۱۹۵)-
۳ ) (تهذیب الکمال (ج۳۰ص۱۸۷) والضعفاء الکبیر للعقیلی (ج ٤ص۳۳۵)-
٤ ) ( تهذیب الکمال (ج۳۰ص۱۸۹)-
۵ ) (فتح الباری (ج۱۱ص۱۹۵)-
۶ ) (الکامل لابن عدی (ج۷ص۱۱٤)-
۷ ) (فتح الباری (ج۱۱ص۱۹۵) حافظ رحمه الله فتح الباری (ج۷ص۴۰۵) (کتاب المغازی) کښې خو دا فرمائیلې ووچه د اصیلی د حدیث باب متعلق کوم خیال دی، د دې باره کښې به زه په (کتاب التفسیر) کښې کلام کوم لیکن معلومه نه ده چه هغوی نه څنګه ذهول اوشو چه د (فتح الباری) په (کتاب التفسیر) کښې په دې باره کښې هیڅ بحث نه دې کړې بلکه مونږ ته خو دا بحث د ډیر لټون نه پس په (کتاب الدعوات) کښې ملاؤشو -
۸ ) (کشف الباری (ج۲ص۵۲٤)-

۵-عبيدة: دا ابومسلم عبيدة -بفتح العين المهملة وكسر الباء الموحدة- بن عمرو كوفي دي.(۱)

۶-علي: دا مشهورصحابي د رسول الله ﷺ خوم حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه دي.(۲)

**قوله: قال: لما كان يوم الأحزاب قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ملأ الله بيوتهم.....:** حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ د غزوه احزاب په ورځ اوفرمائيل الله تعالى دې د دغه مشركانو كورونه او قبرونه د أور نه ډك كړي چه هغوى مونږ د صلاة الوسطى نه مشغول او محروم كړو او نمر ډوب شو.

**تنبيه:** په حديث باب كښې د ذكرشوې واقعې تفصيل(كتاب المغازى) (۳)كښې اود صلاة الوسطى متعلق مكمل بحث (كتاب التفسير) (۴) كښې راغلې دې.

**د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:** په حديث شريف كښې بهر حال د دې خبرې بددُعاء (ښيرې) خو شته چه الله تعالى دې د دغه مشركانو كورونه او قبرونه د أور نه ډك كړي ليكن د شكست بددُعاء ئې اونه كړه او ترجمه هم د دې وه.

نو حافظ صاحب او علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د حديث مناسبت د ترجمه سره د زلزله په لفظ كښې دې. هغه داسې چه د هغوى كورونه سوزول اود نفوس ښه جړقولو او خوزولو سبب دې چه د شكست مترادف دى، دغه شان به په ترجمه اوحديث كښې مطابقت اوشى.(۵)

[۲۷۷۳] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۶) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو فِي الْقُنُوتِ اللَّهُمَّ أَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ اللَّهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ اللَّهُمَّ أَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ اللَّهُمَّ سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ [ر: ۹۶۱]

## تراجم رجال

۱-قبيصه: دا ابوعامر قبيصه بن عقبه بن محمد بن سفيان كوفي رحمه الله دي.

۲-سفيان: دا مشهور امام حديث ابوعبدالله سفيان بن سعيدبن مسروق ثوري رحمه الله دي. د دې دواړو حضراتو تذكره ((كتاب الإيمان باب علامة المنافق)) لاندې راغلې.(۷)

---

۱) (د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعر الإنسان-

۲) (د دوى د حالاتودپاره اوګورئ كتاب العلم باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم-

۳) (كشف البارى كتاب المغازى (ص۲۷۷)-

٤) (كشف البارى كتاب التفسير(ص)-

۵) (فتح البارى (ج۶ص۱۰۶) وعمدة القارى (ج١٤ص۲۰۳)-

۶) (قوله:عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه فى الأذان باب بلاترجمة بعد باب فضل اللهم ربنا لك-

۷) (كشف البارى (ج۲ص۲۷۵-۲۸۰)-

**د علامه عينى او قسطلانى تسامح**: دلته علامه عينى رحمه الله (۱) او د هغه په اتباع کښې علامه قسطلانى رحمه الله (۲) نه دا تسامح شویده چه دې دواړو حضراتو په سند کښې ذکر شوی سفیان ابن عیینه ګرځولی حالانکه دا سفیان بن سعید ثوری دې. ځکه چه قبیصه خو د امام ثوری نه روایت کوی لیکن د ابن عُیینه نه نه کوی. نو ائمه رجال مثلاً حافظ مزی (۳) علامه ذهبی (۴) او حافظ ابن حجر(۵) رحمهم الله وغیره د هغه په شیوخو کښې ابن عُیینه چرته هم نه دې ذکر کړې او هرځائ کښې ئې د ثوری تصریح کړیده. د کوم نه چه همدغه معلومیږی چه دلته هم د سفیان نه هم ثوری مراد دې نه چه ابن عیینه.

۳- **ابن ذکوان**: دا عبدالرحمن عبدالله بن ذکوان مدنی قرشی رحمه الله دې. د دوی تذکره ((کتاب الإيمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان)) لاندې تیره شویده. (۶)

۴- **الاعرج**: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دې. د ده تذکره هم په اختصار سره د ((کتاب الإيمان)) د مذکوره باب لاندې تیره شویده. (۷)

۵- **ابوهریره**: دا مشهور صحابی رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. د ده تذکره ((کتاب الإيمان باب أمور الإيمان)) لاندې تیره شویده.(۸)

**د حدیث ترجمه**: حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به په قنوت کښې دا دعا فرمائیله یا الله! سلمه بن هشام ته خلاصې ورکړې یا الله! ولید بن ولید ته خلاصې ورکړې، یا الله! عیاش بن ابی ربیعه ته خلاصې ورکړې یا الله!کمزورو مسلمانانو ته خلاصې ورکړې، یا الله! د قبیله مضر په کافرانو باندې سختې اوکړې، یا الله! په داسې قحط کښې اخته کړې څنګه چه تا د یوسف علیه السلام په زمانه کښې په قحط کښې خلق اخته کړې وو.

مونږ دلته صرف د حدیث په ترجمه باندې اکتفاء اوکړه ځکه چه د حدیث تشریح او په دې کښې د ذکر شوی اعلامو حالات (کتاب الأذان) کښې ذکر دی.(۹)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت**: د حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې ((اللهم اشدد وطأتك على.....)) ځکه چه شدت وطات (نیول) د دې خبرې نه اعم دی چه هغوی په هزیمت یا زلزله سره متصف وی یا د دې نه علاوه په نورو تکلیفونو او مشکلاتو کښې هم اخته وی. مثلاً سخته ګرانی یا د ذلت مرګ وغیره. (۱۰)

---

۱ ) (عمدة القاری (ج ۱۴ص ۲۰۴)-
۲ ) (إرشاد الساری (ج۵ص۱۰۷)-
۳ ) (تهذیب الکمال (ج۲۳ص۴۸۲)-
( ۴(سیر أعلام النبلاء (ج۱۰ص ۱۳۱)-
۵ ) (تهذیب التهذیب(ج۸ص۳۴۷)-
۶ ) (کشف الباری (ج۲ص۱۰)-
۷ ) (کشف الباری (ج۲ص۱۱)-
۸ ) (کشف الباری (ج۱ص۶۵۹)-
۹ ) (صحیح البخاری کتاب الأذان باب یهوی بالتکبیر حین یسجد رقم (۸۰۴)-
۱۰ ) (عمدة القاری (ج ۱۴ص ۲۰۴) ومثله للحافظ فی الفتح (ج۶ص۱۰۶)-

[۲۷۷۵] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا (۱) يَقُولُ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ اللّٰهُمَّ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اللّٰهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ [۳۸۸۹، ۶۰۲۹، ۷۰۵۱، وانظر: ۲۶۶۳]

## تراجم رجال

۱- احمد بن محمد: دا ابوالعباس احمدبن محمد بن موسى المروزى رحمه الله دي. (۲)

۲- عبدالله: دا مشهور امام حضرت عبدالله بن مبارك حنظلى رحمه الله دي. دَ دوى مختصر تذکره ((بدء الوحى)) كښې تيره شويده. (۳)

۳- اسماعيل بن ابى خالد: دا اسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى كوفى رحمه الله دي دَده اجمالى تذکره ((کتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې تيره شويده. (۴)

۴- عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه: دا مشهور صحابى رسول صلى الله عليه وسلم، حضرت عبدالله بن ابى اوفى اسلمى رضي الله عنه دي. (۵)

**قوله:** يقول: دعا رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم الأحزاب على المشركين:

حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه فرمائى چه دَ غزوه احزاب (خندق) په موقع حضور صلى الله عليه وسلم دَ مشركانو خلاف بددعاء اوفرمائيله. دلته حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه دَ غزوه احزاب په موقع دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دَ مشركانو خلاف يوه بددعا ذكر كړيده، دَ كومې الفاظ چه وړاندې په حديث كښې راغلى.

**قوله:** فقال: اللهم منزل الكتاب، سريع الحساب: نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل يا الله!

---

۱) (قوله: عبدالله بن أبى أوفى رضى الله عنه: الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الجهاد باب كان النبى صلى الله عليه وسلم إذ لم يقاتل أول النهار... رقم (۲۹۶۵-۲۹۶۶) وباب لاتتمنوا لقاء العدو رقم (۳۰۲۴-۳۰۲۵) وكتاب المغازى باب غزوة الخندق..... رقم (۴۱۱۵) وكتاب الدعوات باب الدعاء على المشركين رقم (۶۳۹۲) وكتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿أنزله بعلمه والملائكة يشهدون﴾ رقم (۷۴۸۹) كتاب الجهاد باب كراهية تمنى لقاء العدو ولأمر بالصبر عنداللقاء رقم(۴۵۴۲) وباب استحباب الدعاء بالنصر عندلقاء العدو رقم (۴۵۴۳) والترمذى أبواب الجهاد باب ماجاء فى الدعاء عندالقتال رقم (۱۶۷۸) وابن ماجه كتاب الجهاد باب القتال فى سبيل الله سبحانه تعالى رقم (۲۷۹۶)-

۲) (دَ دوى دَ حالاتو دَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب مايقمع من النجات فى السمن-

۳) (كشف البارى (ج۱ص۴۶۲)-

۴) (كشف البارى (ج۱ص۶۷۹)-

۵) دَدوى دَ حالاتو دَپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين: من القبل والدبر

دَ کتاب نازلونکیه! او زر حساب اخستونکیه! دکتاب نه مراد قرآن کریم دې او دَ سریع الحساب نه علامه کرماني رحمه الله دوه مطلبه بیان کړی دی:

① دا مطلب دې «أنه سريع حسابه ومجيئ وقته» دَ الله تعالى حساب او دَ هغې وخت زر راتلونکې دې.

② «أو أنه سريع في الحساب» یا دا چه هغه په حساب کتاب کښې تیز دې. او زر نیول کوی.(۱)

په اولنی صورت کښې به «سريع» دَ حساب صفت وی او په دونم صورت کښې دَ الله تعالى صفت به وی.

**قوله**: اللهم اهزم الأحزاب، اللهم اهزمهم وزلزلهم: یا الله! دې ډلو ته شکست ورکړې یا الله دوی ته شکست ورکړې او وئې خوزوې.

مطلب دا چه یا الله دوی ذره ذره کړې او دَ دې دا غونډه ګډه وډه او خوره کړې دې دپاره چه دوی ته چرته هم آرام او سکون ملاونشی او هغوی چرته هم کلك پاتې نشی. (۲)

او علامه داؤدی فرمائی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مطلوب او مقصود دا وو چه دَ هغوی عقلونه ختم شی او په جنګ کښې دَ هغوی پښې اوخوئیږی.(۳)

نودَ نبی علیه السلام دَ دې بددعا نتیجه ډیره زر ښکاره شوه او الله تعالى یوه ډیره تیزه سیلئی راولیګله، کومې سره چه دَ کفارودَ لښکر ټولې خیمې راوتلې دَ هغوی تنابونه پرې شو، کټونې او نور سازوسامان ئې اوشندلې شو دَ څه په وجه چه کافران بدحواس شو او ویریدل او آخر ټول اوتښتیدل. (۴)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت**: دَ حدیث ترجمه سره مناسبت «اللهم اهزم الأحزاب، اللهم اهزمهم وزلزلهم» کښې دې. (۵) په دې کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم مشرکانو ته بددعا فرمائیلې او هم دغه مقصد د ترجمه هم وو.

**دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په بددعاکښې یو حکمت**: دلته تاسو ګورئی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم خودکافرانو اومشرکانو خلاف بدُعاء فرمائیلې ده چه دوی ماتی سره مخامخ شی ولې دَ هغوی د هلاکت او بربادئی بدُعاء ئې نه ده فرمائیلې.

دَ دې وجه دا ده چه په هزیمت او ماتی کښې دَ هغوی دَ ځانونو تلف کیدل نشته بلکه سلامتی ده، اوهمدغه سلامتی او عدم اتلاف دَ دې امر امید جوړیدلې شی چه هغوی په راتلونکی وخت کښې دَ کفر او شرك نه توبه کړی او په زړه او ځان سره اسلام کښې داخل شی او صحیح مقصد دَ نفوسو دَ هلاکت بدُعاء ختموی. یعنی که دَ هلاکت بدعاء ئې

---

۱) (الكواكب الدراری (ج۱۲ص۱۸۲) وعمدة القاری (ج۱٤ص۲۰٤) وشرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۸)-

۲) (فتح البارى (ج۶ص۱۰۶) وعمدة القاری (ج۱٤ ص۲۰٤) وشرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۸)-

۳) (حواله بالا-

٤) (انظر كشف البارى، كتاب المغازى )ص۲۷۵)-

۵) (عمدة القاری (ج۱٤ص۲۰٤)-

كړي وه نو دا صحيح او عظيم مقصد به نه وو حاصل شوې. د دې نه پس تاريخ همدغه ګواهي ورکوي چه د دې غزوه احزاب نه بچ وتونکي ډير مشرکان په اسلام مشرف شو او هغوي ته د صحابيت عظيم شرف حاصل شو لکه حضرت ابوسفيان رضي الله عنه. علامه قسطلاني هم دا حکمت ذکر کولو سره ليکي: ((وإنما خص الدعاء عليهم بالهزيمة والزلزلة دون أن يدعو عليهم بالهلاك لأن الهزيمة فيها سلامة نفوسهم وقد يكون ذلك رجاء أن يتوبوا من الشرك، ويدخلوا في الإسلام، والإهلاك الماحق لهم مفوت لهذا المقصد الصحيح))(١)

[٢٧٧٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(٢) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ فَقَالَ أَبُو جَهْلٍ وَنَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ وَنُحِرَتْ جَزُورٌ بِنَاحِيَةِ مَكَّةَ فَأَرْسَلُوا فَجَاءُوا مِنْ سَلَاهَا وَطَرَحُوهُ عَلَيْهِ فَجَاءَتْ فَاطِمَةُ فَأَلْقَتْهُ عَنْهُ فَقَالَ اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ لِأَبِي جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ وَعُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَلَقَدْ رَأَيْتُهُمْ فِي قَلِيبِ بَدْرٍ قَتْلَى قَالَ أَبُو إِسْحَاقَ وَنَسِيتُ السَّابِعَ قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ وَقَالَ يُوسُفُ بْنُ إِسْحَاقَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ وَقَالَ شُعْبَةُ أُمَيَّةُ أَوْ أُبَيٌّ وَالصَّحِيحُ أُمَيَّةُ [ر:٢٣٧]

## رجال الحديث

١- عبدالله بن ابي شيبه: دا ابوبکر عبدالله بن محمد بن ابي شيبه عيسى کوفي رحمه الله دې.(٣)

٢- جعفر بن عون: دا ابوعون جعفر بن عون بن جعفر بن عمرو بن حريث قرشي مخزومي رحمه الله دې. د دوي تذکره ((کتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه)) کښې تفصيل سره راغلې ده.(۴)

٣- سفيان: دا مشهور امام حديث ابوعبدالله سفيان بن سعيد بن مسروق ثوري کوفي رحمه الله دې. د دوي تذکره ((کتاب الإيمان باب علامة المنافق)) لاندې تيره شوېده. (۵)

۴- ابواسحاق: دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبيد سبيعي کوفي رحمه الله دې. د دوي حالات ((کتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان)) لاندې راغلي دى. (۶)

---

١) (شرح القسطلاني (ج۵ص١٠٨)-

٢) (قوله: عن عبدالله رضي الله عنه: الحديث مر تخريجه في کتاب الوضوء باب إذا ألقى على ظهر المصلى قذر...

٣) (د دوي حالاتو د پاره اوګورئ کتاب العمل في الصلاة باب لابرد السلام في الصلاة-

٤) (کشف الباري (ج٢ص۴۶٩)-

٥) (کشف الباري (ج٢ص٢٧٨)-

۶) (کشف الباري )(ج٢ص ٣٧٠)-

۵- عمرو بن میمون: دامخضرمی تابعی حضرت ابویحیی عمرو بن میمون ازدی رحمه الله دی.[1]

۶- عبدالله: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعود بن غافل بن حبیب هذلی رضی الله عنه دی. دَ ده مفصل حالات ((کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې تیرشوی دی.[2]

**قوله: قال: کان النبی صلی الله علیه وسلم یصلی فی ظل الکعبة:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی نبی کریم صلی الله علیه وسلم د کعبه په سورې کښې مونځ کولو.

په دې حدیث شریف کښې په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې دَ مکې دَ قریشو دَ سردارانو دَ طرف نه رواساتلې ظلمونو، زیاتو او شیطانو نه دَ یو بیان دې. مشهوره واقعه ده یو ځل نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ کعبه دَ سوری لاندې مونځ کولو نو ابوجهل دَ هغه ملګرو او چمچو هغوی صلی الله علیه وسلم په دې حالت کښې اولیدل نو ابوجهل اووئیل چه په مکه مکرمه کښې فلانکی کور کښې اوښ حلال شویدې دَ هغې لرې کولمې به څوك راوړی چه هغه دَ محمد (صلی الله علیه وسلم) په سټ باندې واچوی؟ نو دَ قوم یو بدبخت پاسیدو اوهغه لرې کولمې ئې راوړلې او هغه ئې دَ حضور صلی الله علیه وسلم په سټ مبارك باندې واچولې کوم وخت چه هغوی صلی الله علیه وسلم دَ سجدې په حالت کښې وو. دَ (کتاب الوضوء) په روایت کښې دی عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دا ټوله معامله ما کتلې خو هیڅ مې نشو کولې. افسوس چه ماسره دومره طاقت وی[3] او دَ مکې مشرکانو حضور صلی الله علیه وسلم سره ټوقې او مسخرې کولې. تردې چه حضرت فاطمه زهراء رضی الله عنها راغله او هغه لرې کولمې ئې دَ باباجان دَ سټ مبارك نه اخوا کړل نو په دې موقع حضور صلی الله علیه وسلم دَ دې مکې دَ مشرکانو خلاف بددعا اوفرمائیله دَکومې الفاظ چه دَ باب په حدیث کښې ذکر دی.

**قوله: فقال: أبوجهل وناس من قریش، ونحرت جزور بناحیة مکة:** نو ابوجهل او دَقریشو څه خلقو اووئیل دغه وخت دَ مکې مکرمې په یو ګوټ کښې اوښ حلال کړیشوې وو.دلته دَ باب په روایت کښې دا خو ذکر دی چه ابوجهل او څه قریشیانو خلقو اووئیل لیکن څه ئې اووئیل (یعنی مقوله) محذوف ده او هغه محذوف مقوله دا ده: ((هاتوا من سلا الجزور التی نحرت))[4] او په دې حذف باندې دلیل دَ(کتاب الوضوء) وغیره روایت دې په کوم کښې چه دا الفاظ دی: ((إذ قال بعضهم لبعض: أیکم یجیء بسلی جزور بنی فلان....؟))[5] او ((ونحرت جزور بناحیة مکة)) جمله، جمله معترضه حالیه ده.[6]

---

۱) (دَ دوی دَ حالاتودَ پاره اوګوری کتاب الوضوء باب إذاألقی علی ظهر المصلی قذر-

۲) (کشف الباری (ج۲ص۲۷۵)-

(۳) الصحیح للبخاری کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أوجیفة... رقم (۲۴۰)-

۴) (عمدة القاری (ج۱۴ص۲۰۵)-

۵) (الصحیح للبخاری کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أو جیفة....رقم (۲۴۰)-

۶) (عمدة القاری (ج۱۴ص۲۰۵)-

قوله: فأرسلوا فجاؤا من سلاها: نوهغوی سرې اولیګلو نوهغه دهغه لرې کولمې راوړلې.
مطلب دا چه ابوجهل، د هغه ملګرو او شیطانانو د مکې په یوغاړه کښې حلال کړیشوې اوښانو لرې کولمو د پاره سړې اولیګلو چه لاړو او هغه لرې راوړل.
لرې پسې تلونکې او راوړونکې هم یو سړې وو خو هغوی په دې عمل کښې شریك وو نو په دې وجه هغوی ټولوته نسبت اوکړیشو. د (کتاب الوضوء) په روایت کښې د حدیث الفاظ دا وارد شوی دی: ((فانبعث أشقى القوم، فجاء به....))(۱) چه د قوم بدبخت ترین سړې لاړو او هغه لرې کولمې ئې راوړې.
((السلی)) هغه جلئی ته وائی په کومه کښې چه بچې رااینغښتې شی نو که دا جلئی په خیته کښې اوشلیږی نو مور او بچې دواړه مری. (۲)

قوله: قال عبدالله: فلقد رأیتهم فی قلیب بدر قتلی: حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وائی ما دې د بدر په کوهی کښې مردار اولیدلو. د
حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د قول مطلب دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم سردارانو د قریشو خلاف مکه مکرمه کښې کومې خیرې کړې وې د هغې نتیجه په غزوه بدر کښې ښکاره شوه. نو پخپله حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هغه اووه کسان اوکتل چه هغه ټول د بدر په کوهی کښې مردار پراته وو. دغه شان الله تعالی د خپل نبی د بددعا عزت اوساتلو.
((قلیب))—بکسر اللام— هغه کوهی ته وائی د کوم چه غاړه نه وی، دا مذکر او مؤنث په دواړه قسمه استعمالیږی او د دې جمع قُلب، قُلُب او أقلبة راځی.(۳)
او قتلی د قتیل جمع ده اوپه معنی د مقتول ده او په ترکیب کښې د رأیت مفعول ثانی واقع کیږی.

قوله: قال أبو إسحاق: ونسیت السابع: ابواسحاق سبیعی رحمه الله فرمائی او مانه اووم هیر شو.
د پورتنی عبارت مقصد: په حدیث باب کښې به تاسو کتلې وی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د کومو کسانو خلاف بددعا فرمائیلې وه په هغې کښې د شپږو نومونه ذکر دی خو اووم نوم نشته. ابواسحاق سبیعی رحمه الله دا فرمائی چه اووم نوم مانه هیرشویدې. کله چه ابواسحاق سبیعی رحمه الله دا حدیث حضرت سفیان ثوری ته واورولو نو هغه د اووم نوم ذکر نه کړو او د نسیان تصریح ئې اوکړه. (۴)

---

۱) الصحیح للبخاری کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أو جیفة....رقم (۲۴۰)-
۲) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۲۰۵) وإرشاد الساری (ج۵ص۱۰۸) وجامع الأصول (ج۱۱ص۳۶۶) ومصباح اللغات مادة سلی-
۳ ) ( عمدة القاری (ج ۱۴ص۲۰۵) وإرشاد الساری (ج۵ص۱۰۸) وجامع الأصول (ج۱۱ص۳۶۶) ومصباح اللغات مادة قلب-
۴ ) (فتح الباری (ج۶ص۱۰۷) وعمدة القاری (ج ۱۴ص۲۰۵) وشرح القسطلانی (ج۵ص۱۰۸)-

اوس سوال دا پیداکیږی چه دا اووم سړی څوك دی، نود دی جواب دا دی چه هغه سړی عمارة بن ولید دی اودَ دی تصریح په (کتاب الصلاة) (۱) کښې دَ اسرائیل نه مروی روایت کښې موجوددی او دَ اسرائیل سماع دَ ابواسحاق نه ډیر په اوچته درجه باندی ده، ځکه چه ابواسحاق دَ اسرائیل نیکه دی او دی به هروخت هغه سره وو.اسرائیل پخپله فرمائی ((کنت أحفظ حدیث أبي إسحاق کما أحفظ سورة الحمد)) (۲)

**قوله: قـال: أبوعبدالله: قـال يوسف بن إسحاق عن أبي إسحاق: أمية بن خلف....وقـال شعبة: أمية أوأبي ،والصحيح: أمية:**

**د ذکرشوی تعلیق مقصد:** د امام بخاری رحمه الله مقصد د دی تعلیق نه دا دی چه دَ ابواسحاق سبیعی نه دا روایت یوسف بن اسحاق هم روایت کړیدی کوم کښې چه امیه بن خلف دی او شعبه هم روایت کړیدی کوم کښې چه امیه یا ابی دی، یعنی شعبه ته په دی کښې شك شویدی، خودَ پلار روایت نی کوم چه دَ سفیان ثوری رحمه الله نه دی په هغی کښې ابی دی نو امام بخاری رحمه الله دا فرمائی چه صحیح امیه دی نه چه ابی، ځکه چه ابی بن خلف خو پخپله حضور پاك ﷺ په غزوه احد کښې په خپلو لاسونو دوزخ ته رسولی وو. که هغه چرته په بدر کښې مردارشوی وی نو په غزوه احد کښې دَ وژلو به څه مطلب وی؟ (۳)

**دَ دواړو تعلیقاتو تخریج:** امام بخاری رحمه الله دلته دوه تعلیقات ذکر کړی دی، یو دَ یوسف بن اسحاق او بل دَ شعبه.دَ یوسف بن اسحاق تعلیق خو موصولاً امام بخاری رحمه الله په (کتاب الوضوء) کښې ذکر کړیدی.(۴) او دَ شعبه تعلیق موصولاً امام بخاری رحمه الله په (کتاب الجزیة الموادعة) او (کتاب مناقب الانصار) کښې روایت کړیدی. (۵) دَ دی نه علاوه امام بخاری رحمه الله هم دَ شعبه روایت موصولاً نقل کړیدی.

---

۱) (صحیح البخاری کتاب الصلاة باب المرأة تطرح عن المصلی شیئا من الأذی رقم (۵۲۰)-
۲) (فتح الباری (ج۱ص۳۵۱)-
۳) (عمدة القاری(ج۱۴ص۲۰۵) وإرشادالساری (ج۵ص۱۰۸)-
۴) (صحیح البخاری کتاب الوضوء باب إذا ألقی علی ظهرالمصلی قذر أو جیفة-
۵) (صحیح البخاری کتاب الجزیة والمواعدة باب طرح جیف المشرکین فی البئر.... رقم (۳۱۸۵) وکتاب مناقب الأنصار باب مالقی النبی صلی الله علیه وسلم وأصحابه من المشرکین بمکة رقم (۳۸۵۴)-

تنبیه: حافظ صاحب فتح الباری (ج۶ص۱۰۷) او تغلیق التعلیق (ج۳ص۴۴۸) علامه عینی عمدة القاری (ج۳ص۲۰۵) اودَ دی دواړو حضراتو اتباع کولو سره علامه قسطلانی رحمه الله ارشاد الساري (ج۵ص ۱۰۸) کښې دا وئیلی دی چه امام بخاری رحمه الله دَ شعبه تعلیق موصولاً (کتاب المبعث) کښې نقل کړیدی. لیکن دی ټولو حضراتو ته غالبا تسامح شویدی ځکه چه اول خو په صحیح بخاری کښې داسی څه کتاب نشته دَ کوم نوم چه (کتاب المبعث) وی دَ هغی طرف ته دَ تعلیق نسبت اوکړیشی. او دوئم لکه څنګه چه مونږ په تخریج کښې ذکرکړل، دا تعلیق مصنف رحمه الله په دوو مقاماتو کښې موصولاً ذکر کړیدی او په دی دواړو مقاماتو کښې د شعبه د شك تصریح موجود ده-

او دَ حدیث باقي تشریحات به انشاء الله (کتاب الوضوٴ) کښې راځی.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې ((اللهم علیك بقریش)) او په دې کښې هم هغه تقریر دې کوم چه دَ باب په نورو احادیثو کښې راغلې دې چه د الله تعالی نیول عام دی، که د شکست په ذریعه وی، که دَ زلزلې په ذریعه وی یا دَ نور قسم تکلیفونو او مشکلاتو په ذریعه وی (۱) دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په دې حدیث کښې هم دَ کفار قریش خلاف دَ رسول الله ﷺ بددعا قبوله شوه اودَ الله تعالی دَ طرف نه دَ هغوی سخت نیول اوشو.

**فائده:** دَ دې حدیث ټول رجال کوفیان دی، بیا په دې کښې دَ تابعی دَ تابعی نه روایت دې. ابو اسحاق سبیعی تابعی دې اوعمروبن میمون هم مخضرم تابعی دې چه دَصحابی نه روایت کوی[۲]

[۲۷۷۷] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا (۳) أَنَّ الْيَهُودَ دَخَلُوا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكَ فَلَعَنْتُهُمْ فَقَالَ مَا لَكِ قُلْتُ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا قَالَ فَلَمْ تَسْمَعِي مَا قُلْتُ وَعَلَيْكُمْ

[٥٦٧٨، ٥٦٨٣، ٥٩٠١، ٦٠٣٨، ٦٥٢٨]

## تراجم رجال

۱- سلیمان بن حرب: داابوایوب سلیمان بن حرب بن بجیل ازدی رحمه الله دې. دَ ده حالات اجمالاً ((کتاب الإیمان باب من کره أن یعود فی الکفر....)) لاندې تیرشوی دی. (۴)

۲- حماد: دا ابواسماعیل حماد بن زیدبن درهم ازدی بصری رحمه الله دې. دَ ده تذکره ((کتاب الإیمان باب ﴿وإن طائفتان من المؤمنین اقتتلوا فأصلحوا....)) لاندې راغلې ده. (۵)

۳- ایوب: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات ((کتاب الإیمان باب حلاوة الإیمان)) کښې راغلی دی. (۶)

---

۱) (عمدة القاری (ج ١٤ص٢٠٥) و فتح الباری (ج٦ص١٠٦)-
۲) (شرح القسطلانی (ج٥ص١٠٨)-
۳) (قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحدیث أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الأدب باب الرفق فی الأمر کله رقم (٦٠٢٤) وباب لم یکن النبی صلی الله علیه وسلم فاحشا ولا متفحشا، رقم (٦٠٣٠) وکتاب الاستئذان باب کیف یردعلی أهل الذمة والسلام رقم (٦٢٥٦) وکتاب الدعوات باب دلدعاء علی المشرکین رقم (٦٣٩٥) وباب ول النبی صلی الله علیه وسلم یستجاب الشافی الیهود، ولایستجاب لهم فینا رقم (٦٤٠١) وکتاب استتابة المرتدین باب إذا عرض الذمی وغیره بسب النبی صلی الله علیه وسلم ولم یصرح..... رقم (٦٩٢٧) ومسلم کتاب السلام باب النهی عن ابتداء أهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم؟ رقم (٥٦٥٦) والترمذی أبواب الاستئذان باب ماجاء فی التسلیم علی أهل الذمة رقم (٢٧٠١)-
٤) (کشف الباری (ج ٢ ص١٠٥)-
٥) (کشف الباری (ج٢ص٢١٩)-
٦) (کشف الباری (ج٢ص٢٦)-

۴-ابن ابی ملیکه: دا ابوبکر عبدالله بن عبیدالله بن ابی ملیکه تیمی قرشی رحمه الله دی. دَ دوی تذکره ((کتاب الإیمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله...)) په ذیل کښې تیره شوې ده.(۱)

۵-عائشه رضی الله عنها: دا ام المؤمنین حبیبة الرسول ﷺ حضرت عائشه بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنها ده، دَ دې حالات ((بدء الوحی)) په دوئم حدیث کښې تیرشوی دی.(۲)

**قوله:** أن الیهود دخلوا.....: دَ حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه یهود یوه ورځ نبی اکرم ﷺ له راغله او ونې وئیل چه ته دې مړشې نوماپه هغوی باندې لعنت اوملامتیا اوکړه. حضور ﷺ اوفرمائیل (اې عائشه) په تاځه اوشو؟ ماوئیل چه تاسو واونه ریده چه دې خلقو څه اووئیل؟وئې فرمائیل چه تا واونه ریدل چه ماځه اووئیل وعلیکم یعنی تاسوله دې مرګ راشی.

**دَ وعلیکم واو متعلق یو بحث:** علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَ عامو محدثینو روایت خو همدغه دې چه واو دې باقی وی لیکن ابن عیینه رحمه الله دَ ((علیکم) داکلمه بغیرد واو نه روایت کوله او همدغه صحیح هم دی.

دَ دې وجه دا ده که چرې واو حذف کړیشی نو دَ هغوی دا پورته ذکر شوې قول به بعینه په هغوی راواپس کیږی او دَ واو داخلولو په صورت کښې په صفت او بد دعا کښې اشتراک ثابتیږی. یعن څنګه چه دَ دې یهودیانودپاره به بددعا وی هغه شان به دَ حضور ﷺ دَ پاره هم وی (العیاذبالله) ځکه چه واو حرف عطف دې او دَ دوو څیزونو دَ یوځائ کولو او شریکولو دَ پاره استعمالیږی. (۳)

علامه قرطبی فرمائی چه دلته واو زائده دې او په زائده کیدلوکښې هیڅ اشکال نشته اودا هم وئیلې شوی دی چه استئنافیه دې اودَ واو استئنافیه دَ ماقبل سره ربط او تعلق نه وی نو په دې صورت کښې به مطلب داوی چه مرګ دې هم په تاسووی. په دې صورت کښې اشتراك بین الامرین نه دې، دَ هغوی هم دا رائې ده چه دَواو حذف کول په معنوی اعتبار سره احسن دې خودَ دې اثبات اصح او مشهور روایت دې. (۴)

علامه ابومحمد المنذری رحمه الله فرمائی چه دَ سام دوه تفسیرونه شوی دی مرګ او ستړیوالې، کومو حضراتو چه دَ سام تفسیر په مرګ سره کړیدې دَ هغوی په نزد دَ واو په اثبات کښې هیڅ خرابی نشته او کومو حضراتو چه دَدې تفسیر سآمه (خفګان او ستړیوالې) سره کړیدې نود هغوی په نزد دَ واو حذف بهتر دې.(۵)

---

۱) (کشف الباری (ج۲ص۵٤۸)-
۲) (کشف الباری (ج۱ص۲۹۱)-
۳) (عمدة القاری (ج۱٤ص۲۰٦)-
٤) (حواله بالا-
۵) (حواله بالا-

دَ حدیث باب نوره تشریح به انشاء الله (کتاب الأدب) (۱) او (کتاب الاستئذان) کښې راځي.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:** دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت ((وعلیکم)) نه حاصلیږي. ځکه چه دَ دې معنی دا ده چه تاسو دې هم مره شئی او دا دَ نبی کریم ﷺ دَ طرف نه دَ یهودیانو خلاف بددعا وه. (۲)

اودَ دې حدیث په بعض طرق کښې داهم راغلی دی ((یستجاب لنا فیهم، ولایستجاب لهم فینا))(۳) چه زمونږ دعاګانې خودَ هغې خلاف قبلیږي ولې دَ هغوی دعاګانې زمونږ خلاف نه قبلیږي. دَ دې طریق نه دا معلومه شوه چه دَ مشرکانو خلاف بددعا کول جائز دی. سره دَ دې چه بددعا کونکی (داعی) ته دا ویره وی چه هغوی هم دَ ده خلاف بددعا کوی. (۴)

((وهذا آخر ما أردنا إیراده هنا من شرح أحادیث کتاب الجهاد والسیر من صحیح البخاری رحمه الله، للشیخ المحدث الجلیل سلیم الله خان حفظه الله ورعاه ومتعنا الله بطول حیاته بصحة وعافیة، وقد وقع الفراغ من تسویده، وإعادة النظر فیه، ثم تصحیح ملازم الطبع بیوم الثلثاء ۲۰ جمادی الأولی ۱۴۲۶ هجری الموافق ۲۸ یونیو ۲۰۰۵م، والحمد لله الذی بنعمته تتم الصالحات، وصلی الله علی النبی الأمی وآله وصحبه وتابعیهم وسلم علیه مادامت الأرض والسموات، رتبه وراجع نصوصه وعلق علیه حبیب الله محمد زکریا عضو قسم التحقیق والتصنیف والأستاذ بالجامعة الفاروقیة، ووفقه الله تعالی لاتمام باقی الکتب کما یحبه ویرضاه وهو علی کل شئ قدیر، ولا حول ولا قوة إلا بالله العلی العظیم، ویلیه إن شاء الله))

باب هل یرشد المسلم أهل أو یعلمهم الکتاب؟

................................

د ترجمې کمپوزنګ ،او سیټنګ نه نن د ګل په ورځ
دریمه ذوالقعده ۱۴۲۸ھ مطابق ۱۲ نومبر ۲۰۰۷ فارغ شو

---

۱) (کشف الباری کتاب الأدب (ص ۳۹۳ و ۳۹۹)-
۲) (عمدة القاری (ج ۱٤ ص ۲۰۶)-
۳) (صحیح البخاری کتاب الدعوات باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: یستجاب لنا فی الیهود.... رقم# ٦٤٠١) ومسلم کتاب السلام باب النهی عن ابتداء أهل الکتاب بالسلام..... رقم (٥٦٦٠) غیر أنه من روایة جابر بن عبدالله رضی الله عنهما-
٤) (فتح الباری (ج ٦ ص ۱۰۷)-

